# فکري پوهنه

(دویم چاپ)

له نویو زیاتونو سره

- فکري جګړه
- پردي معیارونه
- ډیموکراسي کفر ده، که اسلام؟
- امریکایي اسلام
- معاصر فکري ارتداد
- د کابل مسیحي پوهنتون

ليکوال: مولوي عبدالهادي "مجاهد"

بسم الله الرحمن الرحيم

(دويم چاپ)

له نويو زياتونو سره

- فکري جګړه
- پردي معيارونه
- ډيموکراسي کفر ده، که اسلام؟
- امريکايي اسلام
- معاصر فکري ارتداد
- د کابل مسيحي پوهنتون

ليکوال: مولوي عبدالهادي "مجاهد"

# د کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| دکتاب نوم : | فکري پوهنه |
| لیکوال : | مولوي عبدالهادي ( مجاهد ) |
| کمپوزر : | ( حقمل ) |
| دچاپ کال : | ۱۳۸۹ هـ ش ( ۲۰۱۰ ) م |
| طبع : | دویمه |
| د چاپ شمیر: | ( ۲۰۰۰ ) ټوکه |

# اهداء

دا کتاب هغو تنکیو میړنیو زلمیو ته اهداء کوم چې په لږه تجربه، او کمو وسائلو، خو په قوي ایمان او د الله تعالی پر ذات په محض توکل ئې د صلیب د لښکرو رسیدلي پاخه جنرالان د پوځې جګړې په ډګر کې په ګونډو کړل، خو د فکري جګړې ډګر ئې لا په مخکې هماغسې نافتحه شوی پاتې دی.

عبدالهادي (مجاهد)

# فهرست

## پـردي مـعـيـارونـه ۶۳

# ډيموکراسي کفر ده، که اسلام؟ ۸۸

## امریکایي اسلام ۱۷۱

# د دوهم چاپ سریزه

الحمدلله رب العالمین، و الصلاة و السلام علی إمام الهداة المرسلین، و علی آله و أصحابه الذین أناروا الدنیا بنور الدین، و علی من تبعهم بإحسان و نشر الهدی إلی یوم الدین اجمعین.
ما دا ګومان نه کاوو چې د (فکري پوهنې) کتاب ته دې د افغاني ټولنې د علماؤ، طلابو، محصلینو، لوستوخلکو، او منورینو په منځ کې دومره مقبولیت اوتأثیرحاصل شي لکه چې په لومړي چاپ کې ور ته حاصل شو. دا هرڅه د الله تعالی په خاص فضل، او بیا له اسلامي فکر سره زمونږ د ملت د کلك تړاو او له هغه څخه د دفاع د احساس له برکته رامنځته شول.
د (فکري پوهنې) کتاب چې څنګه په لومړي ځل له چاپه راووت په ډیره لنډه موده کې په بازارکې خلاص شو، ځکه چې د صلیبي یرغل په خلاف په روانه هر اړخیزه مبارزه کې زمونږ د ملت علماء، دعوتګر، د فکر او نظر خاوندان، او مجاهدین د مسلح جهاد ترڅنګ د فکر او فرهنګ په ډګرکې د غرب د فکري یرغل د مقاومت وسایلو او فکري ادبیاتو ته شدید ضرورت لري، او دغه ډول کتابونوته ځوانان او له دین، ملت، او وطن څخه مدافع با احساسه خلك ډیر تږي دي. او دهرې ورځې په تیریدو یې دغه تنده نوره هم ځکه زیاتیږي چې نور د اسلامي نړۍ د لوستو خلکو په ذهنونو او فکرونوکې د غربي فلسفې ادبیاتو، او د ډیموکراسۍ، بشري حقوقو، مساوات، روشنفکرۍ، سولې، ترقۍ، او نورو په سلګونو پوچو شعارونو، او بې حقیقته مفاهیمو خپل ځای له لاسه ورکړی دی. د ملت ځوانانو او با احساسه خلکو ته نور د غرب په فلسفه کې پرته له دوکې، دروغو، تعصب، ظلم، خیانت، اختلاس، زبیښناك، او تنګ نظرۍ، نورڅه په نظر نه ورځي.

د امت مخلص بچیان غواړي چې یوځل بیا په ریښتیني ډول د اسلام شریعت، او د اسلامي فکر مفاهیمو او فکري ادبیاتو ته راوګرځي، او دغه احساس په افغاني ځوانانوکې تر بل هرچا زیات لیدل کیږي، خو ستونزه داده چې افغاني ځوانانو ته افغاني علماؤ او مفکرینو په معاصرو اسلامي موضوعاتو یا ډیرې لږي لیکنې کړي دي، او یا هم ځوانانو ته په پراخه پیمانه ندي رسیدلي، چې دغه ستونزه شاید ډیر اسباب ولري.

خو اوس ددې وخت رارسیدلی چې د نوي نسل مجاهدینو او ځوانانو ته له غرب سره د مقابلې په ډګرکې ښې ډیرې لیکنې وشي، او په پراخه پیمانه ور ورسول شي. په دې هکله زه یوځل بیا په ټینګه ددین له علماؤ او د تعلیمي ادارو او مؤسساتو له چلوونکو څخه غوښتنه کوم چې په خپلو درسونو او تعلیمي نصابونو کې د اسلامي فکر معاصرو مفاهیمو ته ځای ورکړي، او پدې ډول د غرب د سیکولر او الحادي مفاهیمو د سیلاب مخه ونیسي. او په همدې مقصد دادی مونږ یوځل بیا د (فکري پوهنې) کتاب له نویو زیاتونو سره چاپوو.

د (فکري پوهنې) په دویم چاپ کې لاندې بدلونونه راغلي دي:

١. د کتاب ژبې ته بیا له سره کتنه شوې ده، د توان ترحده یې مطبعي او ژبنۍ غلطۍ اصلاح شوې دي. هڅه شوې چې دکتاب ژبه ډیره علمي نه، بلکه ډیره عام فهمه وساتله شي، تر څو هغه خلك هم وربانديې ښه پوه شي چې له شرعي علمي اصطلاحاتو سره ډیرآشنا ندي.

٢. د (امریکایي اسلام) په مضمون کې د افغانستان په تعلیمي نصاب کې د منفي لاسوهنې او له هغه څخه د جهادي او اسلامي مفاهیمو د ویستلو د شاهد په توګه د مجاهدینو د وخت او د امریکایانو تر یرغل د وروسته وخت د لومړي ټولګي د کتابونو محتوی په مقارنوي ډول راوړل شوې ده. چې لاسوهنې یې تشخیص شوي، او تقریبا پر هر مضمون یې یوه مختصره تبصره شوې ده. ترڅو عامو

خلکو ته هم معلومه شي چې غربيان او داخلي ملګري يې څنګه کوښښ کوي چې زمونږ د ملت د نوي نسل له ذهنونو څخه اسلامي مفاهيم وباسي، او پرځای يې د غربي ژوند او فلسفي ارزښتونه ورته معرفي کړي.

۳. په کتاب کې د (معاصرفکري ارتداد) په نامه يومکمل مضمون ور زيات شوی دی. فکري ارتداد هغه ارتداد دی چې خاوندان يې په فکـري لحـاظ د کفـر د معاصـرو ډولونـو لکـه ډيموکراسـۍ، ليبراليزم، کمـونيزم، ګلوبلايزيشـن، نشـنليزم، هيـومنزم او نـورو کفري نظرياتو منونکي وي، د اسلامي نظام او دشريعت د تطبيق پـه کلکـه مخالفـت کـوي، او د اسـلامي حکومـت د جوړيـدو د مخنيوي په هدف يې له کفارو سره لاسونه يوکړي. خو لدې هرڅه سره بيا هم په اسلامي ټولنه کې اوسيږي، او ځانونه مسلمانان هم بولي.

دا چې دغه موضوع يوه ډيره مهمه، خطرناکه، او حساسه موضوع ده، او په څيړلوکې يې ډير قلموال د افراط او يا تفريط ښکار شوي دي، چې ځيني يې د هر چا د تکفير مرحلې ته رسيدلي، او ځينې نور يې بيا صريح کفر ته هم کفر نه وايي، او د مرجئهؤ لاره يې نيولې ده. دغه موضوع بايد په معاصراسلامي فکرکې دداسې علماؤ په قلم امت ته وړاندې شي چې د اسلام په حقيقي روح او هم د معاصرکفر په اشکالو او ډولونو ښه خبر وي، او د کره شرعي دلائلو په رڼا کې يې په اړه موقف ونيسي.

له نيکه مرغه پدې اړه د اوسنۍ زمانې د ستر داعي، او خبيرعالم علامه (ابوالحسن علي ندوي رحمه الله) مشهوره علمي او فکري مقاله (ردة لأبابکرلها) د هغه په مشهورکتاب(إلي الإسلام من جديد) کې په عربي ژبه مخې ته راغله. ددې لپاره چې علامه ندوي رحمه الله د مسلمان شرق او د کافر غرب ترمنځ د فکری کشمکش په اړه پراخه مطالعه لري، او پدې ارتباط يې ډيرکتابونه هم ليکلي دي، او له بل

لوري نوموړی د اهل سنت والجماعت ټولو فکري مکاتبو ته یو منلی معتدل شخصیت، او له الله تعالی څخه ویریدونکی عالم دی، نو غوره مو وبلله چې د موضوع په اړه د خپله څه لیکلو پرځای د هغه مقالې ته په خپل کتاب کې ځای ورکړو، چې پدې کار سره به مو له یوې خوا ددې مهمې موضوع په اړه خپل ملت ته د سالم او جدي موقف د خپلولو توصیه کړې وي، او له بلې خوا به مو موضوع خپل مؤمن ولس ته دداسې یو ستر عالم او دعوتګر په قلم وړاندې کړې وي چې خلك یې په اعتدال او دیانت پوره باور لري. د یادولو وړ ده چې علامه ندوي رحمه الله هم دغه موضوع زیاتره له فکري اړخه څیړلې ده، نه د شرعي حکم د بیان او فتوی له اړخه، ځکه چې د شرعي حکم بیان یې تحقیقي بحث ته ضرورت لري، او مونږ ته هم دلته د موضوع فکري اړخ اهمیت لري.

یوه بله خبره هم د یادولو وړ ده، او هغه دا چې کله چې د(فکري پوهنې) لومړی چاپ خپور شو، د هیواد د ډیرو سیمو(دري ژبو) علماؤ، طلابو، د پوهنتونونو محصلینو، او عامو خلکو یې(دري) ژبې ته د ترجمې مکرره غوښتنه وکړه، چې مونږ هم د هغوئ دې غوښتنې په پام سره د(فکري پوهنې) کتاب (دري) ژبي د (دانستیهای از فکر اسلامي) په نوم ترجمه کړ، چې پر چاپولو یې کار روان دی، او إن شاءالله تعالی چې په نږدې راتلونکي کې به د مینه والو لاسونو ته ور ورسیږي.

په پای کې یوځل بیا له علماؤ، د فکر او نظر له خاوندانو، او د اسلامي حریم له فکري مدافعینو څخه هیله لرم چې د کفر او ګمراهۍ د معاصرو اشکالو په هکله دې نوي نسل ته بنې ډیرې،کره، او روښانه لیکنې وکړي، ترڅو د غرب د فکري سیلاب مخه ونیسي، او راتلونکي نسلونه د هغوئ په دامونو کې له ښکیل کیدلو څخه وژغوري. او همدارنګه په آخر کې بیا هم ددې خبرې یادونه کوم چې که پدې کتاب کې ما حق بیان کړی وي نو دا به د الله تعالی له لوري پر ما د هغه فضل او احسان وي، اوکه چیرې زه په کوم حکم او دریځ کې

خطا شوی يم دا به زما دکم علمۍ نتيجه وي، نه دا چې زه به پر غلطۍ ټينګار کوم. هيله ده چې د اسلامي فکر استاذان ما خپلوکمزوريو او تيروتنو ته متوجه کړي، او پدې کار سره هم خپل مسؤليت رفع کړي، او هم پر ما خپله مهرباني او زړه سوی ولوروي. والسلام

دکفر د ماتې، او د اسلام دسرلوړۍ په هيله.

عبدالهادي(( مجاهد ))

بسم الله الرحمن الرحیم

# دلومړي چاپ سریزه

## څو مهمې خبرې

الحمدالله رب العلمین والصلاة والسلام علی اشرف الانبیاء و المرسلین وعلی آله و اصحابه ومن اتبع سنته الی یوم الدین اجمعین،

قال الله تعالی: لَتُبۡلَوُنَّ فِيٓ أَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡ وَلَتَسۡمَعُنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ مِن قَبۡلِكُمۡ وَمِنَ ٱلَّذِينَ أَشۡرَكُوٓاْ أَذٗى كَثِيرٗاۚ وَإِن تَصۡبِرُواْ وَتَتَّقُواْ فَإِنَّ ذَٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ ٱلۡأُمُورِ ١٨٦ ﴾ آل عمران: ۱۸۶

دغه کتاب په حقیقت کې د پنځو مهمو مقالو مجموعه ده چې له (فکري جګړه) (پردي میعارونه)، (امریکایې اسلام)، (ډیموکراسي کفر دی که اسلام؟) او (دکابل مسیحي پوهنتون) څخه عبارت دي. د کتاب مقالې که څه هم دموضوع په لحاظ سره جلا جلا دي، خو د هدف په لحاظ ټولې د یوه هدف وضاحت کوي، او هغه دا چې کفار او په ځانګړي ډول غربیان څنګه د عسکري جګړي تر څنګ د دین، فکر، عقیدې، اخلاقو، او فرهنګ په ډګر کې هم د مسلمانانو پر خلاف په یوه لویه هر اړخیزه فکري جګړه اخته دي، او پدې جګړه کې ترعسکري جګړې مخکې هم دي.

۱. ددغه ډول یو کتاب لیکلو ته مې ځکه ضرورت احساس کړ چې زمونږ ملت د جګړې، قربانیو، او دښمن ته دماتې ورکولو په مجال

کې د (استاذۍ) نړیوال شهرت لري، خو له دښمن سره د فکري جګړې په هکله ئې لاتر اوسه د مجاهدینو او مدافعینو په ذهن کې یو واضح تصور او روښانه منهج نشته، او نه تر اوسه چا د دښمن له فکر او نظر څخه په پوره ډول خبرکړي دي. او دا ځکه چې د اسلام په خلاف د فکري جګړې، او د دښمن د خطرناکو پلانونو او طرحو په هکله نه زمونږ په دیني، او نه هم په دنیوي، تعلیمي نصابونو کې څه تدرسیږي، ددغه ډول فکري زده کړې د نشتوالي ښایي بیلابیل عوامل وي، خو نتیجه ئې دا راوتلې چې که څه هم چې زمونږ ملت د تل لپاره یرغلګر نه دی منلي، خو د یرغلګرو د افکارو د خوریدو مخنیوی ئې هم ندی کړی، چې دغو پردیو افکارو بیا هر ځل یو نوی نوی مصیبت زیږولی دی.

ددې لپاره چې دا ځل بیا له دغه ډول مصیبت سره مخ نشو، او له فتحې وروسته بیا دوبر په ټغر کښیننو، او دچارو واګې مو بیا د داسې چا لاس ته ورنشي چې دښمن ئې دهماغې ورځې لپاره له اوسه تیاروي، او په ملت کې (ذهن سازي) ورته کوي، په پورتنیو مهمو اساسي موضوعاتو مو لیکنه وکړه، او دا دی خپل ملت ته ئې د مسؤلیت درفع کولو او قضاوت لپاره وړاندې کوو، هیله ده چې د ملت زړه سواندي او دردمن بچیان ئې په غور ولولي او په رڼا کې ئې د واردو شوو افکارو، اشخاصو، فکري ډلو، او تنظیمونو په هکله مناسب دریځ خپل کړي.

۲. ددغه کتاب مخاطب د افغانستان ټول مؤمن ملت دی، خو په خاص ډول ئې له معلمینو، مدرسینو، امامانو، خطیبانو، د پوهنتون له محصلانو، د مکتب او مدرسې له طالبانو، د سنګر له مجاهدینو، او د فکر او نظر له خاوندانو د لوستلو هیله لرم. ځکه چې همدغه خلک د ټولنې د دین، ایمان، عقیدې، اخلاقو، تمدن، ملي او تاریخي ارزښتونو ساتونکي او مدافعین دي. که چیرې دغه خلک له خپل دین، ملت، او هیواد سره وفادار پاتې شي ټول ملت به په آزادۍ، سرلوړۍ، او عزت کې ژوند تیروي، او که-الله دې نه کړي - دغه خلک د پردیو افکارو، نظریاتو،

عقائدو، او پردي فرهنګ ښکار شول، د دوئ له امله په ټول ملت له اجتماعي ذلت او بدبختۍ سره مخامخ کیږي.

۳. دجهاد له قیادت او د دیني مدارسو او مکاتبو له استاذانو څخه مې هیله ده چې مجاهدین، طلاب، او د نوي نسل ځوانانو ته ددغه کتاب، او یا دې ته د ورته کتابونو د لوستلو جدي توصیه وکړي، تر څو د دښمن پر خلاف چې خطرناک پلانونه لري آګاهانه جهاد او مبارزه وکړي، او هم په پوره بصیرت د خپل ملت وګړي د اسلام د دښمنانو په دسیسو او طرحو خبر کړي.

۴. دغه کتاب زما د ډیرو کلونو د تدریس، دعوت، مطالعې، دافکارو او نظریاتود مقارنې، او دجهاد او مبارزې له ډګر څخه دحاصلو شوو تجربو او معلوماتو خلاصه ده چې دسلګونو کتابونو، مجلو، او د زرګونو صفحو له لوستلو وروسته په لاس راغلې ده. ددغو مقالو، په لیکلو کښې مې د ډیرقدرمنو علماؤ او د اسلامي فکر د قیادتونو له تالیفاتو، تجاربو، او توصیو څخه استفاده کړې ده، خو هغه پدې ډول چې دهغوئ له کتابونو مې اغیزه او انګیزه اخیستې، او بیا مې دهمدغه تاثر او عمومي انګیزې په رڼا کې خپل افکار او معلومات چې حق راته ښکاره شوي دي لیکلي دي. او کله کله مې د هغوئ افکارو او مفاهیم پرته لدې چې هغوئ ته یې منسوب کړم رانقل کړي دي. ددې کار علت دا ؤ چې زمونږ د ټولنې علماء اودفکر او نظر خاوندان په فکري لحاظ ډیر سره ویشلي دي. ځینې ئې له یو فکر او مفکر څخه متاثره دي، او ځینې نورئې بیا له بل فکر او مفکر څخه، خو په عین وخت کې بیا په خپل منځ کې دومره اختلافونه او حساسیتونه هم لري چې یواځې په یوه کتاب د مخالف مفکر یا مؤلف دنوم شتون ددې سبب ګرځي چې اصلاً هغه کتاب ونه لولي. که څه هم چې علمي ذوق او انصاف دا تقاضا کوي چې د مسلمانو مفکرینو او علماؤ کتابونه دې په پراخه سینه ولوستل شي، ښه

شی دې ورڅخه واخستلی شي، او له ناسم افکار دې ئې د شریعت په رڼا کې رد شي.

د پورتنۍ ملاحظې په نظرکې نیولو سره ما ډیر مراجع نه دي ذکر کړي، بلکه افکار مې د لوستونکو مخې ته ایښې. که د منلو وړ وي ودې ئې منې، او که د ردولو وي رد دې ئې کړي. په اشخاصو دې حکم او قضاوت نه کوي، بلکه په افکارو او نظریاتو دې قضاوت وکړي. او بله خبره دا وه چې زما د استفادې مراجع اکثره په نورو ژبو کې ول، چې زمونږ په محیط کې په عام ډول نه پیداکیږي. او که پیدا شي دهر چا د پوهیدو وړ نه دي.

**۵**. او په پای کې دا یادونه کووم چې که زه په دې کتاب کې پرحق یم، او حق مې لوستونکو ته وړاندې کړی وي، نو دا به یوائې د الله فضل او لاربښوونه وي، او که زه په کوم ځای، یا په کوم حکم کې خطا شوي یم دا به زما تقصیر او ناپوهي وي چې د ریښتیني اسلامي فکر له استاذانو، او د دین له علماؤ څخه خپلې غلطۍ ته د متوجه کولو هیله لرم. نور تاسې او دا هم دکتاب متن، والسلام.

عبدالهادي (مجاهد)

# فکري جګړه

د ملتونو د دائمي تسخیرولو او د هغوئ دهیوادونو پرته له جګړي د نیولو لپاره فکري جګړه تر عسکري جګړي ډیره کاریګره او مؤثره ده، ځکه چې عسکري جګړه مقاومت، حساسیتونه، او بالمثل غبرګونونه راپاروي چې د جګړي د اوږدیدلو او د جنګي مصاریفو او تلفاتو د زیاتیدلو سبب ګرځي، چې دا هر څه بیا وروسته د یرغلګرو په ماتې تمامیږي، که څه هم چې ډیره موده وروسته وي. تاریخ ثابته کړې چې پوځي فتحه او تسلط هیڅکله دائمي نشي پاتې کیدی تر هغه چې فکري فتحې د پوځي فتحې ځای نه وي نیولی.
خو فکري تسخیر د عسکري تسخیر پر خلاف د تل او یا ډیرې اوږدې مودې لپاره پاتې کیږي. د فکري تسخیر تداوم په دې پورې اړه لري چې فاتح فکر څومره په حقه دي، او څومره د مفتوحې سیمې لپاره له ځانه سره د خیر، عدل، معقولیت او انسانیت، پیغام لري.
اوس چې صلیبي غرب د امریکا په مشرۍ پر افغانستان یرغل کړی، او غواړي افغانستان خپله یوه مستعمره، او افغانان د آزادۍ اوډیموکراسۍ په غولوونکو نومونو خپل غلامان وګرځوي، نو همدې د فکري جګړې اهمیت ته په پام سره ئې دخپلې عسکري جګړې ترڅنګ په پراخه پیمانه یوه لویه فکري جګړه د افغانانو د ذهنونو د فتح کولو لپاره هم روانه کړې ده.
امریکا په افغانستان کې دعسکري جګړې د پرمخ بیولو لپاره یوائې څلور پنځه مؤسسې په کار اچولي چې دامریکا له پوځ، ناټو، ایساف، افغاني امیتی قواؤ، او جاسوسي ادارو څخه عبارت دي، خو د فکري جګړ ې لپاره بیا امریکا او ملګرو ئې تقریباً څلور زره ناپوځي مؤسسې په کار اچولي چې د افغانانو د ژوند په دیني، سیاسي، اجتماعي،

کلتوري، رواني (روحي)، تعلیمي، اقتصادي، او نورو بیلا بیلو اړخونو په مسلسل ډول کار کوي، ځکه چې امریکایان پدې پوهیږي چې یوه ورځ به له افغانستان څخه په پوځي لحاظ وتلو ته اړ کیږي، نو له همدا اوسه باید په افغانستان کې خپله فکري جګړه پداسې فعال او مؤثر ډول پرمخ بوځي چې فکري فتح ئې بیا د عسکري ماتې ځای ونیسي، لکه چې همدغه تجربه انګریزانو او فرانسویانو تر دوئ مخکې هم په خپلو اسلامي مستعمراتو کې عملي کړې وه، چې دهغو هیوادو پر آزادیدلو د لسګونو کلونو تر تیریدلو وروسته په یوه کې ئې هم تر اوسه اسلامي نظام ندی راغلی.

## د فکري جګړې تعریف:

فکري جګړه هغه جګړه ده چې کفار ئې د مسلمانانو د تسخیرولو او دهغوئ د شریعت، عقیدې، فکر، عرفونو او عنعناتو، سلوک، اخلاقو، او دژوند د اسلامي بڼې د له منځه وړلو لپاره د ناپوځي وسائلو له لارې ددې لپاره پرمخ بیايي چې مسلمانان له خپل ځانګړي تشخص او پیژنګلوی څخه محروم، او په هر څه کې ئې د غرب په تقلید اخته کړي،. تر څو دکفارو په خلاف دجګړې تصور هم په ذهن کې ونه لري.

په فکري جګړه کې د مسلمانانو فزیکي وجود هدف نه ګرځولی کیږي، بلکه دهغوئ دین، فکر، ټولنیز عنعنات، شخصي او اجتماعي اخلاق او رواني (روحي) کیفیت دهدف په حیث تر ضربې لاندې نیول کیږي. ځکه چې دا هغه عوامل دي چې د ټولنې افراد له خپل فزیکي او معنوي وجود څخه د دفاع، او د یرغلګر په مقابل کې د مقاومت لپاره دجګړې په صف کې دروي. خو هر کله چې دغه عوامل په تدریج سره په سیستماتیک ډول له منځه یوړل شي، د دښمن په مقابل کې مقاومت په خپله له منځه ځي، چې په نتیجه کې دښمن له هر ډول مالي او ځاني تلفاتو خوندي پاتې کیږي او هدف هم پرته له جګړې لاسته ورځي.

## د فکري جګړې وسائل:

لکه ځنګه چې په پوځي جګړه کې پوځي وسائل لکه پوځیان، توپ، ټانګ، طیاره، بم، بارود، ګولۍ، ټوپک، پوځي ټکنالوژي، او پوځي استحکام، د ماهرو او روزل شویو پوځي افسرانو لخوا کاریږي، همدا ډول په فکري جګړه کې فکري وسائل لکه: معلم،. کتاب، مکتب، پوهنتون، علمي تحقیقات، کتابخانې، اخبارونه، مجلې، ژورنالیزم، ادبیات، اجتماعي علوم (سوشل ساینس) صحي خدمات لکه شفاخانې، کلینکونه، تفریحي وسائل لکه پارکونه، کلبونه، لامبوځایونه، دسمندر ساحلونه، رسنۍ لکه راډیوګانې، تلویزونونه، سینماګانې، تیاترونه، انټرنیټ، سټلایټ، دفلم جوړونې کمپنۍ، سیاست او سیاسي شخصیتونه او سیاسي احزاب، جنس (Sex) او په هرڅه کې دښځې استعمال، او دې ته ورته نور وسائل د ماهرو او روزل شوو خلکو لخوا په سیستماتیک ډول کاریږي. دا ټول هغه وسائل دي چې فکر متاثره کوي، د ملتونو فکري مسیر وربدلوي، او دکفارو لخوا په پوره مهارت د مسلمانانو پر خلاف استعمالیږي.

د اسلام او مسلمانانو په خلاف د فکري جګړې میدان دومره پراخ دی چې د انساني ژوند ټول اړخونه ئې نیولي دي، او د غرب په زرګونو مؤسسې ورکښې په کار اخته دي.

## دفکري جګړې تاریخ:

دحق او د باطل تر منځ فکري جګړه تر عسکري جګړې هم اوږد تاریخ لري. له هماغې اولې ورځې چې د آدم علیه السلام او ابلیس دښمني شروع شوې ابلیس چې د باطل ممثل دی د آدم علیه السلام په خلاف ئې له فکري جګړې کار اخیستی، او دآدم علیه السلام دمغلوبولو لپاره ئې له فکري وسائلو کار اخستی. ابلیس چې کله پدې پوه شو چې آدم ئې دښمن دی، او په هغه باندې په زرو غلبه نشي حاصلولی، نو ئې له فکري وسائلو لکه: د نصحیت تظاهر، له آدم علیه السلام

سره دخواخوږۍ د عوی، او بیا دخپلې دعوي د رېښتنې ښکاره کولو لپاره له قسمونو څخه کار اخستل پیل کړل، او په درواغجنو قسمونو ئې آدم علیه السلام ته وسوسه  ورواچوله، تر دې چې هغه او د هغه ښځه ئې وښویول، اوله جنت څخه ئې راوویستل، الله تعالی  دآدم او ابلیس  ترمنځ د فکري جګړې جریان داسې بیانوي.

﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَاكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَاكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴿١١﴾ قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ۖ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ ﴿١٢﴾ قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُونُ لَكَ أَن تَتَكَبَّرَ فِيهَا فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ الصَّاغِرِينَ ﴿١٣﴾ قَالَ أَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٤﴾ قَالَ إِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴿١٥﴾ قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم مِّن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَن شَمَائِلِهِمْ ۖ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ ﴿١٧﴾ قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا ۖ لَّمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿١٨﴾ وَيَا آدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿١٩﴾ فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطَانُ لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وُورِيَ عَنْهُمَا مِن سَوْآتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهَاكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَٰذِهِ الشَّجَرَةِ إِلَّا أَن تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ ﴿٢٠﴾ وَقَاسَمَهُمَا إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ النَّاصِحِينَ ﴿٢١﴾ ﴾

الأعراف: ١١- ٢١

**ترجمه:** (څه شي منع کړې ته چې سجده دې ونه کړه کله چې امر وکړ ما تا ته!؟ ابلیس وویل زه له آدم څخه غوره یم. زه دې له اوره پیداکړی یم او هغه دې له خټې پیداکړی. الله ورته وویل نو کوز شه له دغه آسمان یا جنت څخه، ندی لائق تا ته چې لویي وکړې پدې ځای کې، نو ووځه بیشکه چې ته ئې له ذلیلانو. وویل ابلیس: مهلت راکړه ماته تر هغې ورځې چې مخلوق بیرته راژوندی کولی شي. الله ورته وویل: بیشکه ته له مهلت ورکړ شوو څنې ئې (تراول پوکي پورې) وویل: ابلیس نو قسم دی په ګمراه کولو ستا مالره (په سبب د آدم) چې هرو مرو به کښینم دوئ ته ستا په سمه لار کې، او خامخا به راځم دوئ ته له مخې د دوئ او له شا د دوئ او له ښیوطرفو د دوئ او کیڼو طرفو د دوئ، او نه به مومې ته اکثر د د وئ شکر ایستونکي. الله ورته وویل: ووځه لدې ځایه غمجن رټلی شوی. هر څوک چې ستا لاره غوره کړي لدوئ څخه خامخا به ډک کړم جهنم له تاسې ټولو څخه، او وویل الله ﷻ ای آدمه: اوسه ته اوښځه ستا په جنت کې، او خورئ تاسې دواړه له هر ځایه او هر شي څخه چې خوښه مو وي. او مه نږدې کیږئ تاسې دواړه دغې ونې ته، (اوکه ورنږدې شئ) نو شئ به تاسې دواړه له ظالمانو څخه (په خپلو ځانونو) نو وسوسه واچوله دې دواړو ته شیطان د دې لپاره چې ښکاره کړي دوئ دواړوته هغه چې پټ کړی شوي وو د دوئ له عورتونو. او ابلیس ورته وویل: نه یاست منع کړي تاسې رب ستاسې لدې ونې مګر ددې لپاره چې نشی تاسې دواړه پرښتې، او یا چې نشئ تاسې دواړه له تل پاتې کیدونکو په جنت کې. او سخت قسم ئې وکړ دوئ ته چې بیشکه زه تاسې دواړو ته له نصیحت کوونکو څخه یم).

په پورتنیو آیاتونو کې وینو چې شیطان له آدم علیه السلام سره په خپلې دښمنۍ کې له هرې لارې او وسیلې څخه دکار اخیستلو سخت قسم یادوي. او مؤمنانو ته په سمه لاره کې دکمین نیولو خبره کوي، او بیا وروسته د آدم علیه السلام د تیر ایستلو لپاره له قسمونو، او د نصیحت کولو له تظاهر څخه کار اخلي، اوخپله دښمني له آدم علیه

السلام سره د پستې ژبې په کارولو پرمخ بيائې، چې دا ټول فکري وسائل دي.
همدغه ډول د تاريخ په اوږدو کې د باطل پلويانو تل د انبياؤ په خلاف په خپلو مبارزو کې د جنګي وسائلو تر څنګ له فکري وسائلو څخه کار اخيستی، کله ئې په انبياؤ پسې پوچ او بيځايه تبليغات کړي، کله ئې هغوئ ته ليوني، کم عقل، کوډګر ويلي، او کله ئې په بيلا بيلو غولوونکو خبرو او وسائلو خلک د انبياؤ په خلاف دجنګ په صف کې درولي دي. او کله ئې هم د مؤمنانو پر خپل دين او پيغمبر د شکمن کولو هڅې کړي دي.
همدارنګه کله چې قريشو وليدل چې قرآن په خلکو تاثير کوي، دحق دعوت ئې زړونو او ذهنونو ته رسيږي، او دقناعت په نتيجه کې په رسول ﷺ ايمان راوړي، هغوئ ګومان کاوه چې که چيرې د حق دعوت همدغه ډول خلکو ته له کوم مزاحمت پرته ور ورسيږي کيدی شي ټول قريش مسلمانان شي، نو ځکه ئې فيصله وکړه چې بايد د قرآن په مقابل کې له لغو خبرو او چټياتو کار واخلي. او يا هم د قرآن د مجلس په مقابل کې د اشعارو، کيسو، او د پخوانيو بادشاهانو دخرافي نکلونو مجالس جوړ کړي، او خلکو ته ووايې چې راشئ، زمونږ کيسې، شعرونه، او افسانې دمحمد ﷺ ترقرآنه خوندورې د ي. لکه چې همدغه کار به د قريشو يو مشر (مالک بن النضر) تر سره کاوه. الله تعالی فرمايې ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَا تَسۡمَعُواْ لِهَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ وَٱلۡغَوۡاْ فِيهِ لَعَلَّكُمۡ تَغۡلِبُونَ ﴿٢٦﴾ ﴾ فصلت: ۲۶

ترجمه: او وايې هغه خلک چې کافران شوي دي غوږ مه ږدئ دغه قرآن ته (چې محمد صلی الله عليه وسلم ئې لولي) او شورماشور واچوئ (په وخت د لوستلو د قرآن کې چې نور خلک ئې وانه وري. دغه ټول ناپوځي وسائل او طريقې وې چې د قرآن د پيغام د خپريدلو د مخنيوي

لپاره ئې په کار اچول. نن هم دحق د دعوت او آواز په مقابل کې په ملیاردونو د باطل غږونه د ډول ډول تبلیغاتو شورماشور جوړوي، تر څو د نړۍ خلک دحق آواز  وانه وري.  خو فرق ئې له پرون سره دا دی چې  پرون د باطل آوازونه یوازې دخولې په زور پورته کیدل، او نن د راډیو، تلویزیون، سټیلایټ، انټرنټ، مطبوعاتو، او مبتذلو ادبیاتو په زور پورته کیږي. او خلک د حق ددعوت له اوریدلو  ایساروي.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په  زمانه کې هم د مدینې د یهودو علماؤ کوښښ وکړ چې مسلمانان په اسلام باندې شکمن کړي. او هغه داسې ؤ چې د اسلام تر راتګ دمخه به د مدینې عربو یهودو ته د داسې خلکو په سترګه کتل چې د آسماني دین علم ورسره دی، له وحې او انبیاؤ سره ئې تړاو دی، او د پخوانیو پیغمبرانو د علم او معرفت وارثان دي. نو له همدې امله به ئې هغوئ ته د قدر او احترام په سترګه کتل.

یهودو وغوښتل چې د مدینې د عربو له دغه باور څخه سوء استفاده وکړي، او هغوئ د اسلام په اړه په شک کې واچوي، نو فیصله ئې وکړه چې د مسلمانانو پر خپل دین د شکمن کولو پخاطر به دسهار له مخې ایمان راوړو او دهماغې ورځې په مازدیګر کې به بیرته یهودیت ته راوګرځو، پدې کار سره به عرب داګومان وکړي چې مونږ خو اهل کتاب یو،  د دین، وحې، نبوت، او الهي احکامو د پیژندلو تجربه لرو، دا چې مونږ له اسلامه بیرته راوګرځیدو، نو ښائي اسلام به هغه حق دین نه وي چې په مخکنیو کتابونو کې ئې وعده شوې وه، نو پدی کار به دمدینې عرب په مونږ باور وکړي، او زمونږ پر پله به پل کیږدي، او له اسلامه به مرتد شي، دلته هم یهودو د اسلام په خلاف یوه فکري وسیله چې (دین او ایمان) دی استعمال کړه، الله تعالی د دوئ د دغې دسیسې په هکله فرمائې:

﴿ وَقَالَت طَّآئِفَةٌ مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ ءَامِنُواْ بِٱلَّذِيٓ أُنزِلَ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَجۡهَ ٱلنَّهَارِ وَٱكۡفُرُوٓاْ ءَاخِرَهُۥ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُونَ ﴿٧٢﴾ ﴾آل عمران: ٧٢

**ترجمه:** (وويل: یوې ډلې د اهل کتابو ایمان راوړئ پر هغه کتاب چې نازل شوی پر هغو خلکو چې ایمان ئې راوړی، د سهار له مخې، او بیا کافر شئ په آخر دهمدغې ورځې کې، کیدای شي چې هغوئ (مسلمانان) له اسلامه وګرځي)

دغه دسیسه نن هم د اسلام په خلاف په بیلا بیلو شکلونو کی په کار اچول کیږي، نن هم په اسلامي نړۍ کې د دښمن د فکري غلامانو یو لوی لښکر د استاذانو، فیلسوفانو، دکتورانو، څیړونکو، لیکوالو، شاعرانو، هنرمندانو، او ژورنالستانو په شکل کې وجود لري چې له بیلابیلو لارو، او په بیلا بیلو ډولونو، او د بیلا بیلو فکري وسائلو په کارولو مسلمانان د اسلام په اړه شکمن کول غواړي، او خلکو ته اسلام، د ارتجاع، تروریزم، وحشت، او د تاویخوالي ددین په نامه معرفي کوي، او په اسلامي عقایدو او احکامو ئې بی باورۍ ته هڅوي.

دغه خلک دورځې له مخې دخلکو په وړاندې لکه د یهودو د دسیسې ځان مسلمان معرفي کوي، خو وروسته بیا په پټه د اسلام په خلاف په کار اخته وي.

د فکري جګړې یوه بله هڅه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې هغه وه چې نږدې وو یهود دهغې له لارې د مدینې د انصارو تر منځ یوه لویه خونړۍ جګړه رامنځته کړي. او هغه داسې چې یوه ورځ د یهودو یو لوی سپین ږیری مشر (شاس بن قیس) د اوس او د خزرج د قبیلو مسلمانان ولیدل چې په خپلو کې ئې په مینه او محبت مجلس کاوه. پداسې حال کې چې تر اسلامه دمخه همدغه دوه قبیلې په خپلو کی په لسګونو کاله جنګیدلې وې، او ښه ډیرئې یو له بل څخه مړه کړي ول. خو د اسلام په منلو ئې پخواني هر څه سره هیر کړل، او یوه

نوې دوروروليې او محبت دوره ئې پيل کړه. په (شاس بن قيس) دغه حالت ښه ونه لګيده، او عزم ئې وکړ چې مسلمانان بيرته په خپلو کې سره وجنګوي. ددې کار لپاره ئې يوه خطرناکه فکري وسيله انتخاب کړه. او هغه دا چې يو زلمی يهودی هلک ئې په چل د اصحابو په منځ کې کښيناوه، او هغه ته ئې ويلي ؤ چې د مسلمانانو په مجلس کې د (بعاث) دجګړې چې د اوس او دخزرج تر منځ ډيره پخوا تيره شوي وه، هغه اشعار ووايه چې دوئ په جګړو کې يو د بل په خلاف ويلي ول. پدې سره به دهغوئ په ذهنونو کې هماغه پخوانيې د جنګ خاطرې را تازه شي، او يو ځل بيا به يو د بل په خلاف جګړې ته و هيځيږي. شاس همدا طرحه عملي کړه، او نتائج ئې هم هماغه ډول راووتل لکه چې ده اټکل کړي ول، خو د الله ﷻ رحمت دا وشو چې تورو ته تر لاس کولو د مخه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته خبر وررسيد، هغه صلی الله عليه وسلم له خپلو مهاجرو اصحابو رضی الله عنهم سره راغی. او په وعظ او نصحيت ئې د دوئ تر منځ د نښتونکې جګړې په اور اوبه توی کړې، او د يهودو دسيسه ئې شنډه کړه.

همدغه ډول په بيلا بيلو وختونو کې کفارو هڅې کړې چې مسلمانان د عکسري جګړې پر ځاې په فکري جګړې مغلوب کړي. دغه فکري جګړي کله د يهودی عبدالله بن سبا په شکل کې، او کله هم د نورو فکري ډلو لکه زنادقه ؤ، روافضو، او نورو په شکل کې رواني وې، تر دې چې صليبي غرب له مسلمانانو سره په خپلو عسکري جګړو کې له مسلسلو ماتو وروسته ديوې خطرناکې وسيلې په حيث دعسکري جګړو پر ځاى د اسلامي امت په خلاف وکارولې.

دغرب لخوا په منظم ډول د مسلمانانو په خلاف د فکري جګړې د په کار اچولو پلان د فرانسې بادشاه نهم (لويس) هغه وخت طرحه کړ چې نوموړی په (۱۲۵۰م) کال کې په مصر کې د منصورې په جګړه د فرانسوي لښکر تر تباه کيدو وروسته د مسلمانانو په لاس اسير شو، او بيا وروسته د ډيرې لويې فديې په بدل کې خوشې شو.

نهم (لویس) دخپل بند په وخت کې پدې غور وکړ چې ولې مسلمانان د مادي او پوځي وسائلو له کموالي سره سره بیا هم په کفارو هر وخت غالبیږي؟ هغه د اوږده تفکیر په پای کې دې نتیجې ته ورسیده چې د مسلمانانو د قوت سرچینه په مادیاتو کې نه، بلکه د دوئ په دین، عقیده، اخلاقو، او معنویاتو کې ده. او تر څو ئې چې دغه سرچینه تازه او رڼه وي، مسلمانان به تل د دښمن په مقابل کې زورور وي.
دفرانسې پادشاه چې کله له خوشې کیدو وروسته بیرته فرانسې ته ورسیده، هلته ئې د فرانسوي ولس پوځي، سیاسي، او مذهبي مشران او مخور را ټول کړل، او له اسلامي امت سره ئې دجګړې د نوعیت په اړه دخپلې وینا په ترخ کې داسې ورته وویل: (که غواړئ چې مسلمانانو ته ماتې ورکړې نو یوازې د وسلې جګړه مه ورسره کوئ، ځکه چې تاسې د وسلې په جګړه کې دهغوئ په وړاندې ماتې خوړلې ده، تاسې د هغوئ د عقیدې په خلاف وجنګیږی، ځکه چې دهغوئ د قوت سرچینه د هغوئ په عقیده کې ده) .
تر دې وروسته د غرب سیاسي، فکري او پوځي زعامت فیصله وکړه چې نور باید د مسلمانانو په خلاف د پوځي جګړو تر څنګ فکري جګړه هم روانه کړي. او ددغې جګړې لپاره ئې دغرب په کلیساګانو، پوهنتونونو، سیاسي او دپلوماتیکو مراکزو کې د اسلام، اسلامي فکر، اواسلامی تمدن د زده کړې او څیړنې مراکز جوړ کړل. دغه مراکز وروسته د ختیځ پوهانو او ختیځ پوهنې (Orientalism) او مسیحي تبلیغ (missionary) (په شکلونو کې راښکاره شول.
دغو مراکزو په منظم ډول د اسلامي نړۍ فکري او تمدني وضعیت ته توجه وکړه، او د مسلمانانو په نوو نسلو نو کې ئې فکري تاثیر ګذاري پیل کړه. دغه فکري تاثیر ګذاري د عصري مکتبونو، پوهنتونونو، تعلیمي مشاورینو، په غرب کې د مسلمانانو د بچیانو د روزلو، معاصر مطبوعاتي بهیر، او غرب پلوو سیاسي جریاناتو او ګوندونو په شکل کې راڅرګنده شوه، او نتیجه ئې د داسې یو نسل په شکل کې

راووته چې یواځې نومونه ئې د مسلمانانو دي، نور ئې د ژوند ټول سیاسي، فکري، اخلاقي، ټولنیز، پوځي، اقتصادي، ذوقي او ادبی اړخونه د غربي تصوراتو او ارزښتونو پر بنسټ ولاړ دي، او ټوله توجه ئې دې ته ده چې څنګه اسلامي نړۍ، او اسلامي امت دغرب له غوښتنو سره سم عیار کړي، که څه هم چې پدې لاره کې د لکونو مسلمانانو د وینو بهولو ته ضرورت هم پیښ شي.

## د فکري جګړې اهداف

غرب د لاندې اهدافو لپاره په اسلامي نړۍ کې د عسکري جګړې تر څنګ فکري جګړه پیل کړې ده، او په هغې باندې هر کال په ملیاردونو ډالره مصرفوي، او په ملیونونو کارپوهان او متخصصین ئې په دغه فکري جګړه کې د بیلا بیلو فکري، فرهنګي، سیاسي، او تعلیمي مؤسساتو له لارې په کار اچولي دي.

**اول هدف– په مسلمانانو کې دغرب په مقابل کې د مقاومت روحیه له منځه وړل:**

غربیان پدې پوهیږي چې تر څو دمسلمانانو په ذهنونو کې د حریت احساس وي، او دجهاد، هجرت، شهادت، او قربانۍ فرهنګ ئې د فکر منځپانګه تشکیلوي، تر هغه پورې به په روحي او معنوي لحاظ ځان د هر یرغلګر مقابلې ته تیار بولي. او پدې لاره کې به هر ډول مالي او ځاني قربانیو ته حاضریږي. خو که یو ځل ئې دغه مفاهیم له فکر څخه د فکري جګړې دوسائلو له لارې وویستل شي، بیا که هر څومره په مادي وسائلو او پوځي امکاناتو سمبال هم شي، د دښمن مقابلې ته نه تیاریږي، لکه چې اوس همدغه روحیه د ټولو غرب ځپلو اسلامي ټولنو په ځوانانو او پوځونو کې لیدل کیږي.

د اسلام په تاریخ کې ګورو چې مسلمانان هر وخت د لږو افرادو، او کمزورو پوځې وسائلو په درلود لو د زورورو دښمنانو مقابلې ته په میړانه تیار شوي دي، او د الله په فضل ئې جګړې هم ګټلې دي، ځکه چې په هغه وخت کې په مسلمانانو کې په اجتماعي ډول د مقاومت روحیه ژوندۍ او معنویات ئې سرشاره او څپاند ول، خو اوس د اسلامي هیوادونو په میلیونونو پوځونه د لوړو پوځي مهارتونو او پرمختللو جنګي وسائلو سره سره بیا هم د دښمن په مقابل کې د دریدلو توان نه لري، بلکه اصلاً نه غواړي د دښمن په مقابل کې ودریږي. بلکه دا ورته ښه ښکاري چې د خپلو ملتونو په خلاف د یرغلګر دښمن په صف کې ودریږي. دا ځکه چې فکري جګړې له هغوئ څخه دمقاومت روحیه سلب کړې ده. هغوئ پداسې ډول روزل شوي چې باید داسلام د دښمنانو داهدافو لپاره کاروکړي.

## دوهم هدف- مسلمانان د اسلام په دین، تمدن، او انساني ارزښتونو شکمن کول:

صلیبی غرب غواړي چې مسلمانان دې په دین، عقیده، اخلاقو، فکري ارزښتونو، ټولنیزوعادتونو، او مناسباتو کې ددوئ په څیر وي، او په هر څه کې دې دغربیانو تقلید وکړي. پدې کار به له یوې خوا د غربیانو په خلاف د مسلمانانو په زړونوکې کرکه او کینه ورکه شي، او د هغوئ د استعماري پلانونو مخالفت به نه کوي. او له بل لوري به ټوله اسلامي نړۍ دغربي مصنوعاتو لپاره په لوی استهلاکي او مصرفي مارکیټ بدله شي، ځکه چې د مسلمانانو د ژوند ضرورتونه به هم په هغه صورت کې د دوئ په څیر وي، دا چې مسلمانان به ئې خپله نشي جوړولی، او یا به ئې په ښه کیفیت او ارزانه بیه بازار ته نشي عرضه کولي، نو ټول مارکیټ به دغرب د صنعت پر مخ خلاص وي.

خو په اسلامي نړۍ او اسلامي امت کې اسلامي شريعت، اسلامي عقيدې، او اسلامي تمدن د غرب ددغو اهدافو دتحقق مخه نيولې ده، ځکه چې مسلمانان دخپل دژوند هر څه بايد د خپل شريعت مطابق، او د خپلې عقيدې په رڼا کې د اسلامي ژوند دود، او اسلامي تمدن له غوښتنو سره سم عيار کړي چې دا کار بيا له مسلمانانو څخه يو بيل ملت او جلا امت جوړوي، چې هر څه ئې بايد له صليبي غرب څخه مختلف وي. ځکه چې اسلام خپل پيروان له کفارو سره له مشابهت څخه منع کوي، او د خپل دين په اصولو او ادابو يې ټينګ پاتې کيدلو ته تشويقوي.
ددې لپاره چې غرب د مسلمانانو او کفارو تر منځ دغه جلا والی له منځه وړی وي کوښښ کوي د فکري جګړې له لارې داسلامي امت بچيان په خپل دين، عقيده، اخلاقو، تمدن، او لوړو انساني ارزښتونو شکمن کړي. او په ډول ډول منفي تبليغاتو د اسلام حقانيت او د شريعت افاديت تر پوښتنې لاندې راولي. پدې لار کې ئې د فکري جګړې ټول وسائل لکه مکتب، پوهنتون، نصاب، فرهنګ، ميډيا، اقتصادي شرکتونه، څيړونکي، شاعران او اديبان او بالآخره هر څه په کار اچولي، تر څو مسلمانان پر خپل دين بدګومانه کړي، او د سيکولريزم، ليبراليزم، ماډرنيزم، ډيموکراسۍ، او ګلوبلايزيشن له لارې ئې په هر څه کې د غرب دخبرې منلو ته ورواړوي.

## دريم هدف- غربي ټولنو ته د ريښتني او مکمل اسلام د رسيدو مخنيوی:

دغرب حکومتونه او مسيحي کليسا ګانې په دې ښه پوهيږي چې اسلام دخپل فطريت او معقوليت له امله په هره سيمه او ملت کې دمنل کيدلو وړتيا لري. خو پدې شرط چې په ريښتني او مکمل ډول وروړسيږي. دنړۍ د ډيرو هيوادونو لکه دهندوستان، بنګال، برما، تايلند، ماليزيا، اندونيزيا، فلپاين، برونائي، او د منځنۍ افريقا د ډيرو هيوادونو خلکو اسلام د دعوت له لارې منلی دی. هلته هيڅ فاتح

لښکر ندی ورغلی چې د پوځي فتحې په نیتجه کې ئې هلته اسلام خپور کړی وي، بلکه خلکو په خپله د اسلام معقولیت، حقانیت، او افادیت لیدلی، او بیا ئې منلی دی

په صلیبي غرب کې اوس همدا ویره خپره ده چې که اسلام په ریښتني او مکمل ډول غربي ټولنو ته چې دمسیحیت له نامعقولیت او استبداد څخه ستړې شوې دي ور ورسیږي، لیرې نده چې د غرب معقول او با سواده خلک به ئې چې دحق موندنې په تلاش کې دي ومني، په یومخیز ډول به مسیحیت او مادیت پریږدي، او اسلام ته به مخ ورواړوي، چې بیا به ددغې څپې مخه نیول ورته ناممکنه وي، ځکه چې همدا اوس په غرب کې ډیر خلک د اسلام په اړه په مطالعه او څیړنو بوخت دي، او په زرګونو ئې په هر کال کې مسلمانیږي.

ددې لپاره چې غربیانو اروپا او امریکا ته د ریښتني او مکمل اسلام د رسیدو مخه نیولې وي لاندې درې کارونه ئې تر سره کړي دي:

**الف**: د غرب حکومتونه او کلیساګانې کوښښ کوي چې غربي ټولنو ته اسلام په مسخ شوي او تحریف شوي شکل کې ور معرفي کړي. اسلام ورته د تیرې زمانې داسې یو دین معرفي کړي چې له تورې، قتل، جنګ، لاس او پښو پریکونې، او پرخلکو له مذهبي تسلط پرته بل څه نه پیژني. نه نظام پیژني، او نه پرمختګ. نه سوله او سوله یز ژوند پیژني، او نه تمدن. نه انساني عواطف پیژني، او نه هم د بشري ژوند فطري تقاضاوې. د ټولنو په ژوند کې تغییر دعقل، علم، فرهنګ، او ذهني قناعتونو په وسیله نه، بلکه د تورې، ټوپک او سوټې په زور راولي.

دغرب میډیا، سیاسي او دیني قیادتونه ئې په نه ستړي کیدونکي ډول د اسلام په خلاف په دغه ډول زهر جنو تبلیغاتو لګیا دي، او په دې لار کې هر کال په ملیاردونو ډالره مصرفوي. تر څو غربي ټولنې د اسلام له منلو ایسارې کړي.

ب: دغرب سیاسي، فکري، او دیني قیادتونه کوښښ کوي له خپل هر ډول سیاسي، اقتصادي، پوځي، او نړیوال نفوذ څخه په استفادې د اسلامي نړۍ حکومتونه دې ته مجبوره کړي چې په خپلو هیوادونو کې داسې تعلیمي نصابونه رائج کړي چې په هغو کې حقیقي اسلام ځای ونه لري. علماء، دعوتګران، دیني مدارس، اسلامي تنظیمونه، چاپخانې، او نور جهتونه چې د اسلامي دعوت لپاره کار کوي تر شدید فشار لاندې وساتې، وئې تړي، و ئې وژني، او یا ئې دومره کمزوري او په خپل ځان مصروف کړي چې غرب ته دصحیح اسلام له رسولو عاجز پاتې شي، ټولې شتمنۍ، مادي او معنوي وسائل ورڅخه په بیلا بیلو نومونو او بهانو مصادره کړي، او بالآخره ئې په خپلو هیوادونو کې دفقر، ذلت، او مشکلاتو ژوند ته اړ کړي، تر څو نورو خلکو ته د دعوت توانایي له لاسه ورکړي. همدغه وجه ده چې په اکثره اسلامي هیوادونو کې په اسلامي تنظیمونو ډول ډول بندیزونه لګول کیږي، او دفعالیت مخه ئې نیول کیږي. او ددې په مقابل کې عامو خلکو ته داسې څه د اسلام په نامه معرفي کیږي چې هغه یا اصلاً اسلام نه وي، او یا د اسلام یو مسخ شوی شکل وي چې سلیم فطرت ورڅخه نفرت کوي.

ج: غرب که له یوې خوا غربي ټولنو ته د ریښتني اومکمل اسلام مخه نیسي، له بلې خوا هغه ډلو، تنظیمونو، او حرکتونو ته په غرب کې د فعالیت اجازه ورکوي چې یا خو اسلام په اوښتې او تحریف شوې بڼې خپروي، او په خپله هم په اسلامي ټولنو کې دمنحرفو او کفري ډلو په حیث پیژندل کیږي، لکه: قادیانیان، بهایان، بابیان، منحرف صوفیان، او داسې نور. او یا هم هغه ډلې دي چې صحیح اسلام خو په ناقصه او نیمګړې بڼه خلکو ته وړاندې کوي، د اسلام او لویات، فرایض، واجبات، جهاد، ولاء اوبراء، اسلامي نظام، د اسلام حاکمیت، د فساد مخنیوئ، کافي شرعي علم، له جهادي حرکتونو سره همدردي، او له جهاد او مجاهدینو سره مالي مرسته، او حتی هغوئ

ته دعائې هم دخپل دعوت له نصاب او فرهنګ څخه ددې لپاره ويستلې ده چې کفار ورڅخه ناراضه نشي، او کفري هيوادونو ته ئې دورتګ له ويزو څخه مرحوم نه کړي. که دغه خلک له خپل همدغه جداوجهد سره دمجاهدينو تر څنګ ودريږي، او د اسلامي مبارزينو ملاوروتړي، يقيناً به مجاهدين په لسوکلونو کې اسلامي دعوت ته دومره څه وکړي چې دغه ډلې ئې په يوه پيړۍ کې هم نشي کولی.
غرب ځکه دغو ډلو ته د فعاليت اجازه ورکوي چې د دوئ له دعوت څخه دغرب نظام، استعماري پلانونو، کفري تمدن، او نړيوال استکبار ته هيڅ صدمه نه رسيږي، او په عين وخت کې له مسلمانانو څخه په اسلامي هيوادونو کې د بالمثل مسيحي دعوت د اجازې غوښتنه هم لري. او دا ويره هم پرخپل ځای موجوده ده چې مکار غرب به له دغه ډول ساده لوحه ډلو څخه د جهاد او مجاهدينو په خلاف استفاده هم وکړي.
په مجموع کې دا هر څه دفکري جګړې د اهدافو دتحقق لپاره تر سره کيږي.
## څلورم هدف: د اسلامي نړۍ لپاره جعلي او دپرديو په لاس جوړ شوي قيادتونه رامنځته کول:
د فکري جګړې له اهدافو څخه يو هم اسلامي هيوادونه او مسلمانې ټولنې له صالحو قيادتونو څخه محروموول، او پر ځای ئې دجعلي، د پرديو په لاس جوړ شويو، او پردي پالونکو قيادتونو معرفي کول، او نوي نسل ته هغوئ د (ماډل) او نمونې په حيث وړاندې کول دي.
غربيان پدې پوهيږي چې تر څو په اسلامي امت کې مخلص، اصيل، له الله ﷻ څخه ويريدونکي، او له خپل امت سره وفادار قيادتونه موجود وي، تر هغه پورې به په اسلامي نړۍ کې د غرب ارمانونه نه تر سره کيږي، له همدې امله غرب پرله پسې هڅه کوي تر څو د مسلمانانو مخلص قيادتونه، يا شهيدان کړي، او يا ئې بنديان، تبعيد، او بدنامه کړي. ډول ډول توطيې او دسيسې ورته جوړوي تر څو يې په ټولنه کې

تاثير له منځه يوسي. کله توورونه ور پوري کوي، کله ئې اتباع اوملګري انشعابونو او انشقاقونو ته تشويقوي، او کله ئې د بې لارې کولو هڅې کوي، او کله ئې هم جوړجاړي او مصالحت ته رابولي.
خو د مخلصو قيادتونو پر ځاى بيا په ټولنه کې هغو اشخاصو او جهتونو ته رشد ورکوي، او تر شا ئې دريږي چې د غرب پر لاره ځي، او غواړي مسلماني ټولنې هم د غرب پر لار رواني کړي. دغه ډول غرب ځپلو قيادتونو ته په لاندې ډګرونو کې امکانيات برابروي، رشد ورکوي، او په خپله ميډيا کې ئې ځلوي:
**اول– ديني ډګر:** په ديني ډګر کې مخلص علماء، دعوتګران، اجتماعي مصلحين له منځه وړي، او يا ئې تاثير محدود وي، او د فعاليت ساحه ئې ورتنګوي، خو په مقابل کې ئې هغه علماء، مفتيان، خطيبان، درباري ملايان، او پيران چې دغرب د اهدافو لپاره کار کوي، ډيموکراسي د ژوند لپاره د نظام په حيث مني، او سيکولر يزم د ژوند د بنې او عقيدې په حيث قبلوي، رامنځته کوي. دولتي وظائف ورکوي، دوينا او تاثير لپاره رسنۍ په اختيار کې ورکوي، تر څو دحقيقي اسلام پرځاى چې الله ﷻ ئې غواړي، خلکو ته هغه مسخ شوي، بې تاثيره، بې حکومته او بې نظامه اسلام ورمعرفي کړي چې امريکا ئې غواړي.
**دوهم– سياسي ډګر:** په سياسي ډګر کې دمؤمنو سياسي قيادتونو چې د الله ﷻ دمخلوق لپاره دالله دنظام پلي کيدل غواړي مخه نيول کيږي، او پرځاى ئې خائن، درواغجن، ډران، خرڅ شوي، معامله ګر، او منافق قيادتونه قدرت ته رسول کيږي، تر څو د دوئ له لارې د اسلامي نظام دنفاذ مخه ونيول شي، او مسلمان ملتونه د تل لپاره دغرب په سياسي غلامۍ کې پاتې شي.
**دريم– پوځي ډګر:** په پوځي ډګر کې هم غرب هغه پوځي مشران رامنځته کوي چې ذهن او فکر ئې دوئ د اسلام په خلاف ورجوړ کړى

وي. او بیا وروسته د همدغو مسلطو پوځیانو په لاس اسلامي حرکتونه او د اسلامي فکر لرونکي له منځه وړي.
**څلورم- فکري ډګر**: په فکري ډګر کې هم غرب په اسلامي نړۍ کې دهغو اشخاصو او جهتونو تر شا دریږي چې دغربي ډیموکراسۍ، لیبرالیزم، سیکولریزم، هیومنیزم، او نورو نا اسلامي نظریاتو او افکارو د خپرولو لپاره کار کوي، غرب دغه خلک تمویلوي، سیاسي احزاب ورته جوړوي، او قدرت ته ئې رسوي، او د دوئ په وسیله د مسلمانو مفکرینو مخه نیسي.
**پنځم- اجتماعي ډګر**: په اجتماعي او د ځوانانو په ډګر کې هم غرب هڅۀ کوي د ټولنې هغه لاابالي، لنډغر، لویدلي، او بې معنویته اشخاص لکه ډمان، سندرغاړي، نڅاګر، کرکټیان، او د فلمونو ممثلین ټولنې او ځوانانو ته د نمونې او ماډل په حیث وړاندې کړي، خو د هغوئ حیثیت په ټولنه کې دومره اوچت کړي چې نور خلک ئې تقلید وکوي، او په لاره ئې روان شي.
همدا ډول هغو شکمنو، بې هویته او دخیلو اشخاصو ته داجتماعي خدمتو د تر سره کولو مؤسسې ورجوړوي، او د غرب لویې مؤسسې فنډونه او وسائل په اختیار کې ورکوي، تر څو په مسلمانو ټولنو کې د خیر پالونکو او اجتماعي شخصیتوو په حیث تبارز وکړي. خو د دوئ په مقابل کې د ټولو اسلامي مؤسساتو د فعالیت مخه نیول کیږي. او کار کوونکې ئې تر ډول ډول فشارونو او بندیزونو لاندې نیول کیږي.
دا ټول هر څه ددې لپاره ترسره کیږي تر څو په ټولنه کې داصیلو او مخلصو قیادتونو مخه ونیول شي، او پر ځای ئې جعلي، او د پردیو په لاس جوړ شوي شخصیتونه قیادت ته ورسیږي چې دغه خلک بیا په اسلامي ټولنو کې د غرب د اهدافو لپاره کار وکړي. او حاکمیت ته د اسلام د رسیدو مخنیوی وکړي، چې همدا د غرب له لویو اهدافو څخه دي

# د فکري جګړې خطر

د غرب فکري جګړه دغرب ترعسکري جګړې ډېر خطرناکه ده. ځکه چې غربیانو په خپلو عسکري استعماري جګړو کې یوازې زیرمې غلا کولې، کورونه ئې ورانول او خلک ئې وژل، چې دې هر څه به د مسلمانانو په زړونو کې نوره هم د دوئ په اړه کرکه زیاتوله، په خپل اسلام به نور هم ټینګیدل، او د مقاومت لپاره به تیاریدل، که څه هم چې جګړه به په پیړیو پیړیو اوږده شوه.
خو د فکري جګړې خطر پدې کې دې چې د غې جګړې مسلمانان د غرب په زهرجن تمدن ولړل. په مسلمانانو کې ئې الحادي نظریات، بې دینه فرهنګ، او لویدیلی اخلاق خپاره کړل، نوی نسل ئې له اسلامي مفاهیمو سره داسې نا آشنا کړ چې د اسلام شریعت، عقائد، تاریخ، او تمدن هر څه ورته پردي ښکاري. په هر څه کې د غرب په فلسفه او معیارونو باندې باور لري. او تقلیدئې کوي. فکري جګړې ئې وجدان او ضمیر ته داسې ماتې ورکړې ده چې اوس د غرب هر څه ورته حق او صحیح ښکاري، او دهغه خپلول ترقي او تمدن ګڼې. او هر څه چې د غرب خلاف دي هغه ته ارتجاع، حماقت، او بیرته پاتې والی وایې.
غرب د فکري جګړې په نتیجه کې په اسلامي هیوادونو کې داسې یو نسل رامنځته کړ، حکومتونه او دچارو واګې ئې وروسپارل چې دغرب د استعمار ښه ځای ناستي ثابت شول. ددغه نسل افکار، نظریات، دژوند اخلاقي، اجتماعي، سیاسي، او اقتصادي فلسفه ئې له مستعمرینو څخه هیڅ فرق نه لري. د مسلمانو پرګنو په ځپلو او تعذیبولو کې تر مستعمرنیو هم ډیر سخت زړي دي.
په فکري جګړه کې د مسلمانو هیوادونو دغه ماتې خوړلي نسل اسلام او مسلمانې نړۍ ته دومره تاوان ورورساوه چې دچنګیز تر غمیزې وروسته هیڅکله هم ورته پدې پیمانه نه ؤ رسیدلی. دغه ماتې خوړلي نسل د مسلمانانو د ژوند ټول معیارونه پر دي کړل چې نور تفصیل ئې دهمدې کتاب په (پردي معیارونه) فصل کې لیکل شوي دي.

## دفکري او عسکري جګړې ترمنځ توپیرونه

دفکري او عسکري جګړې تر منځ څو مهم توپیرونه موجوددي چې هغو ته په پام سره سړي ته د فکري جګړې اهمیت او خطرناکتوب ورمعلومیږي. چې څو مهم توپیرونه ئې په لاندې ډول دي.

**١ – عسکري جګړه ښکاره، خو فکري جګړه پټه روانه وي:**
پر هر هیواد یا ولس باندې چې بل هیواد یا ولس عسکري یرغل وکړي، د تر یرغل لاندې راغلي هیواد او ولس ټول خلک ورباندې خبریږي، او په یو نه یو ډول د یرغلګرو مقابلې ته ځان آماده کوي. دعسکري جګړې غږ په ټول هیواد کې خپریږي. په ځوانانو، زړو، ښځو،. نرو، دولتي او ولسي خلکو کې د دفاع او مقاومت حس راویښیږي، یا جنګ کوي، او یا دجنګ له سیمې ځان یوې بلې دامن سیمې ته رسوي.
خو فکري جګړه د عسکري جګړې پرخلاف دومره مخفي روانه وي چې دولس ډیر لږ خلک ئې احساسوي، او په خطرباندي ئې پوهیږي، ځکه چې فکري دجګړه د وارني، توپ، ټانګ، او بم په شکل کې نه وي روانه، بلکه د مکتب، نصاب، فرهنګ، ادبیاتو، سیاسي تشکلاتو، اقتصادي فعالیتونو، سپورټ، موډ، او فیشن په شکلونو کې روانه وي. عام خلک تر هغه ددغي جګړي په جریان نه پوهیږي چې تر څو ئې خطرناکو عواقبو او آثارو د هیواد او ولس دخلکو د ژوند مسیر وربدل کړي نه وي. همدغه وجه ده چې په مسلمانو ولسونو کې ډیر لږ خلک د فکري جګړي احساس کوي، او مقاومت ته ئې پورته کیږي. هغوئ که هر څومره خلکو ته چیغې ووهي چې هیواد او ولس له یوه نامرئې توپان سره مخ کیدونکی دی، خلک ئې تر هغه وختنه په وینا باور نه کوي تر څو توپان ټول په مخ کړي نه وي. له همدې امله غرب هم په اسلامي هیوادونو کې د عسکري جګړې پر ځای فکري جګړې ته

ترجیح ورکوي. ځکه چې پدې جګړه کې ئې ځوک مقاومت ته نه راپورته کیږي.

**۲ – په عسکري جګړه کې مقابل لوري هم عسکري وي، خو په فکري جګړه کې مقابل لوري بې دفاع ولسي خلک وي:**

عسکري جګړه د داسي دوو طرفو تر منځ پیښیږي چې دواړه مسلح وي. که یو ئې د بریدتوان لري، بل ئې د دفاع توان لري. که یوطرف ټانګ لري، بل طرف ماین لري. که یو طرف طیاره لري، بل طرف راکټ لري. که یو طرف یرغل کوي، بل طرف ورته کمین نیسي. دواړه طرفونه له جنګي مهارتونو څخه برخمن وي.

خو په فکري جګړه کې بیا د ولس عام، بې دفاع، او بې وسائلو خلک هدف ګرځول کیږي، دمثال په ډول: په فکري جګړه کې یو طرف مکتب، نصاب، معلم، پوهنتون، او مادي امکانیات لري، خو بل طرف دولس عام وګړي دي چې له یادوشویو وسائلو هیڅ نه لري، پرته لدي چې په خپله ورتسلیم شي، او خپل اولادونه ورتسلیم کړي بله هیڅ چاره نه لري.

همدا ډل یو طرف راډیو، تلویزیون، اخبار، مجله، سینما، تیاتر، فلمي کمپنۍ، او د رسنیو ماهرین او متخصصین لري، خو مقابل طرف چې عام ولس دی، له دغه ډول وسائلو هیڅ نه لري، پر ته له دې چې د دښمن پیغام واوري، او ورڅخه متاثر شي، د مقابلي لپاره ئې هیڅ نشي کولي.

په دغه نابرابره فکري جګړه کې یوې خواته ماهر، مکار، ژبور، او دخلکو په عمومي سایکالوژۍ (نفسیاتو) پوه یرغلګر دي، او بلې خوا ته بې سواده، غریب، ناتوانه، ماشومان، ښځینه، تنکي ځوانان، او پیغلې دي چې ډیر زر او په آسانه له تبلیغاتو څخه متاثره کیږي. ځکه چې هغوئ د دښمن د پروګرامونو، تبلیغاتو، نشراتو، او پیغام تحلیل او ارزونه نشي کولي، له همدې امله غرب دغه سنګر ښه په قوت سره

د داسې چا په مقابل کې اشغال کړی چې هغه اصلاً له خپل ځان، خپلې عقیدې، او خپل فکر او فرهنګ څخه په دفاع قادر نه دي.

## ۳- عسکري جګړه زمکه اشغالوي، خو فکري جګړه عقل، فکر، او فرهنګ اشغالوي:

په عسکري جګړه کې دښمن دیوه هیواد زمکه اشغالوي چې ازادول ئې ورڅخه په آسانه ممکن دي، د اسلامي نړۍ ډیر هیوادونه د غربیانو لخوا اشغال شوي ول، خو اوس په ظاهری ډول دهغوی له تسلط څخه آزاد دي. همدا ډول افغانستان له انګریزانو څخه آزاد شو، وروسته روسانو اشغال کړ، چې له هغوئ څخه هم آزاد شو، اوس امریکایانو نیولی چې له هغوئ څخه ئې هم ډیرې سیمې آزادې شوې دي..

خو په فکري جګړه کې دښمن هڅه کوي د مسلمانانو فکر، عقل، عقیده، او فرهنګ اشغال کړي. او کله چې دچا فکر، عقل، او عقیده اشغال شي، هغه بیا هیڅکله د خاوري د آزادی فکر نه کوي، هغه بیا دښمن ته دوست، تخریب ته ئې تعمیر، غلامۍ ته ئې آزادي، او ذلت ته عزت او سرلوړي وایې.

غربې استعمار په تیرو دوو سوو کلونوکې وکولی شول چې په اسلامي نړۍ کې د ډیرو خلکو او په خاص ډول دحاکمې طبقې ذهن او عقل اشغال کړي، هغوئ ئې په غربي فکر، عقیدې، او غربي مادي فرهنګ وروزل، پدې ئې قانع کړل چې د اسلام تر حاکمیته ورته د کفر حاکمیت، او د کفري قوانینو تنفیذ غوره دی. له همدې امله په هغو اسلامي هیوادونو کې چې د غرب روزل شوي شاګردان ئې اداره کوي، تر آزادۍ وروسته هم هیڅکله د اسلام نظام نافذ نه شو. دغه خلک نه یواځې دا چې د اسلام نظام نه نافذوي، بلکه د اسلام د نظام دنافذولو مطالبه هم دهغوئ په قاموس کې جرم ګڼل کیږي. هر څوک چې د اسلام د نظام د نافذیدلو مطالبه کوي هغه وژل کیږي، تړل کیږي، او یا ئې په دعوت او فعالیت بندیزونه لګول کیږي. او دا ټول د داسي چا له لاسه

کیږي چې ځانونو ته مسلمانان هم وایې، او نومونه ئې هم د مسلمانانو دي، خو فکرونه ئې د دښمن لخوا اشغال شوي دي.
د خاورې آزادول آسانه دي، خو د پردیو لخوا د اشغال شوو فکرونو، او عقلونو، آزادول ډیر ګران کار دی. مونږ افغانانو، کمونستانو ته پوځي ماتې ورکړه، خو یوازې دګوتو په شمیر یو څوکمونستان مو له کمونیزم څخه علني توبې ویستلو ته تیار نه کړای شول. هماغه کمونستان چې پرون دیو ډول اروپایې نظریاتو منونکي ول، نن د بل ډول اروپایې الحادي نظریاتو منونکي دي، له همدې امله غرب هڅه کوي د مسلمانانو د خاورې پر ځای دهغوئ فکر اشغال کړي. ځکه چې د فکرونو اشغال له یوې خوا بې خطره دي، او له بلې خوا ئې نتائج هم سل فیصده د دښمن په ګټه راوځي، او د ډیرې مودې لپاره په اسلامي نړۍ د غرب د سیاسي او فکري تسلط تضمین ورکوي.

## ۴ – عسکري جګړه جنګي وسائل او ودانۍ له منځه وړي، خو فکري جګړه ایمان، عقیده، عزم او اراده له منځه وړي.

په عسکري جګړه کې دښمن کوښښ کوي چې د مسلمانانو جنګي وسائل، پوځیان، پوځي او دولتي ودانۍ بمبارد کړي، په توپونو ئې وولي، او یا ئې وسوځوي، تر څو پوځي قوت له دفاع او حرکت څخه وغورځوي. جنګي وسائل که هر څومره تخریب شي، او یا له منځه لاړ شي، خو چې دجګړې او دفاع اراده په زړونو کې موجوده وي، او د الله تعالي ﷻ په نصرت باندې ایمان او باور موجود وي، او دمسلمانو پوځیانو په زړونو کې د بري معنوي وسائل لکه ایمان، تقوي، د مسؤلیت احساس، د امیر طاعت، او د وحدت احساس موجود وي، که پوځي وسائل ئې هر څومره هم لږ، او یا کمزوري وي، بیا هم دښمن ته نه تسلمیږي، د ناتوانې په صورت کې ښائې تیښتې ته په تسلیمیدولو ترجیح ورکړي، تر څو د سبا ورځې لپاره بیا ځان جګړې ته تیار کړي. خو دښمن ته وسله په زمکه نږدي.

خو په فکري جګړه کې دمقاومت معنوي عوامل لکه ايمان، عقيده، عزم، او دمقاومت اراده له منځه وړل کيږي. په هغو مسلمانو هيوادونو کې چې خلکو ئې په فکري جګړه کې ماتې خوړلې ده، دکافي جنګي وسائلو او حتی داتوم بم له درلودلو سره سره بيا هم د دښمن په مقابل کې د دريدلو توان نه لري، او دجګړې تر شروع کيدلو دمخه ئې د اسلام دښمنانو ته د تسلميدلو اعلان کړی وي، نه يوازې دا چې د دښمن په مقابل کې مقاومت نشي کولی، بلکه په ډيره بې شرمۍ دخپل دين او ملت په خلاف د دښمن په صف کې دريږي، او هغه څه کوي چې دښمن ئې ورڅخه غواړي.
په فکري جګړې کې دماتې په صورت کې ډيرې وسلې، جنګې مهارتونه، کافي شمير پوځونه، ښه ډير مادي وسائل، او قوي اقتصاد، دا هر څه د کافر دښمن په مقابل کې د ثبات، دفاع، او مقاومت عوامل نشي کيدی، تر څو چې د جنګياليو په زړونو کې ايمان، له الله ﷻ ويره، د اسلام پر حقانيت باور او عقيده، او له کفر څخه کرکه او نفرت وجود ونه لري.
ددې لپاره چې د مسلمانانو پوځونه دنصرت له معنوي عواملو څخه بې برخې وي، غرب په ټولو اسلامي هيوادونو کې هڅه کوي چې د مسلمانانو پوځونه، دفاعي او امنيتي قواوې، او استخبارات په مکمل ډول له دين، عقيدې، او اسلامي روحيې، څخه محروم وروزي. ددغې بې دينې روزنې نتيجه دا ده چې نن تقريباً د ټولې اسلامي نړۍ د هيوادونو پوځونه د صليب تر بيرغ لاندې د اسلام او خپلو ملتونو په خلاف په جګړو اخته دي. ځکه چې فکري جګړې ئې ايمان، عقيده، او اسلامي احساس له منځه وړی دی.

**۵ – دعسکري جګړې د وراني بیاودانول لږ وخت غواړي، خو د فکري جګړې د وراني بیا ودانول پیړۍ غواړي:**
په عسکري جګړه کې که ښارونه، کلي، پلونه، سړکونه، او نور عامه تاسیسات وران شي، کیدی شي هغه د لسوپنځه لسو کلونو په اوږدوکې تر هغو پخوانیو هم ښه جوړ شي، ځکه چې ورځ په ورځ ټکنالوژي ترقي کوي، او د ودانۍ نوي نوي وسائل او مواد ایجادیږي. او هم د انسانانو صنعتي تجربه ترقي کوي. وران ښارونه ښائې تر پخوانیو په ښه نقشه او ډیزاین جوړ شي، وران پلونه، سړکونه، مکتبونه، پوهنتونونه، شفاخاني، باغونه، ویالې، او نهرونه ښائې د نوو معلوماتو او عصري تعمیراتي تجربو په کارولو تر پخوانیو هم په ښه کیفیت جوړ شي.
خو هغه فکرونه، عقیدې، او اخلاق، چې د فکري جګړې په ترڅ کې وران شوي وي، دهغو جوړول، اصلاح کول، بیرته دحق معیارونو ته راګرځول خورا ډیر وخت، ډیر پروګرامونو، ډیرو نشراتو، صابرو او ماهرو دعودتګرانو، استاذانو، مصلحینو، د تعلیم او تربیې هر اړخیزو اصلاح شوو نصابونو، او د ډیرو پیسو مصرف ته ضرورت لري. او دغه کار په زماني لحاظ هم ډیر اوږده وخت او مسلسلو هڅو ته ضرورت لري.
ډیر اسلامي هیواداونه له انګریزانو آزاد شول، خو له انګریزیت څخه لا د لسګونو کلونو په تیریدلو هم نه دي خلاص شوي. ډیر هیوادونه له فرانسې څخه خلاص شول، خو د خلکو افکار، نظریات، نظام او د ژوند ټول اړخونه یې دنیمې پیړۍ له تیریدو وروسته هم له فرانسویت څخه ندي خلاص شوي.
همدا ډول ډیر اسلامي هیوادونه له روسیې څخه خلاص شول، خو په خلکو او نظام کې ئې لاتر اوسه اسلام ندی راغلی، او هر څه په هماغه روسي نظام، او د کمونیزم په الحاد وهلې فلسفه باندې چلیږي. او په نږدې راتلونکي کې دا تصور هم نشي کیدلې چې دغه هیوادونه دې په

ربښتیا د حقیقی اسلام غیربړ ته راوګرځي. کیدای شي سلګونه کلونه وغواړي چې په دغو هیوادونو کې دې اسلام حاکم شي، او یا ئې دخلکو الحاد وهلي فکرونه بیرته په اسلامي مفاهیمو روښانه شي. دا هر څه په دې دلالت کوي چې د فکري جګړې تخریب د عسکري جګړې تر تخریبه ډیر دوامدار او خطرناک وي.
د فکري جګړې او عسکري جګړې تر منځ نور ډیر توپیرونه هم شته، خو ددی لپاره چې بحث ډیر اوږد نشي د همدغو څو مثالونو په یادولو اکتفا کوو.

## فکري جګړه د علامه اقبال (رح) له نظره

د مسلمانانو او د غرب تر منځ د فکري جګړي په هکله د اقبال فکر او نظر ځکه د اعتبار وړ دی چې نوموړی ددغې جګړې له میدان څخه راغلی دی. هغه ددغې جګړې ټول مراحل او پړاونه لیدلي، ددغې جګړې اور ئې لیدلی. او هم ئې ددغې جګړې د مقابل لوري له جنګیالیو سره شپې او ورځې تیرې کړې دي. هغه ددغې جګړې د پلان جوړوونکو په نیتونو او ارادو هلته په غرب کې خبرشوي، او بیا ئې په خپلو اشعارو او نظریاتو کې خپل امت ته ددغې جګړې د خطرونو خبرداری ورکړي دی.
اقبال په خپل وطن کې له غربي مستشرقینو زده کړه کړې. دهغوئ نظریات ئې معلوم کړي، وروسته بیا غرب ته تللی، په اروپا کې ئې د غرب له فکري رهبرانو او فیلسوفانو سره وخت تیرکړی، او دهغوئ نظریات ئې د اسلام په رڼا کې څیړلي دي. هغه له غرب څخه ډیر څه زده کړي، خو د غرب په دام کې ندی ښکیل شوي. هغه دده په وینا لکه ابراهیم علیه السلام دوخت د نمرود له اوره سلامت راوتلی لکه چې وایې

طلسم عصر حاضر را شکستم ربودم دانه و دامش گسستم
خدا داند که مانند براهیم به نار او چه بې پروا نشستم

اقبال یوازې له دغې فکري جګړې روغ راوتلی، خو نور خلک ئې ډیر ولیدل چې څنګه ددغې جګړې قرباني شول. هغه وایي:

ما همه افسونی تهذیب غرب کشتهٔ افرنگیان بې حرب وضرب

هغه ددغې جګړې قربانیانو ته چې په غرب مین دي، په هر څه کې د غرب تقلید کوي، او په لاره ئې ځې، بیرته خپل ځان ته د راګرځیدلو توصیه کوي، او د (خودی) درس ورکوي، هغوئ ته وائې چې تاسې غرب په حقیقي شکل نه دی پیژندلی، یوازې دهغه له (خُم) څخه د څو جامونو په څښلو له ځانه بیخوده شوي یاست. لکه چې وایي:

بیا اقبال جامی از خمستان خودی درکش
تو از میخانهٔ مغرب زخود بیگانه می آیي

وروسته هغه د غرب له ریښتني شکل څخه پرده پورته کوي، او غولیدلو مسلمانانو ته د غرب د فلسفي حقائق ورښکاره کوي:

یورپ از شمشیر خود بسمل فتاد زیر گردون رسم لادینی نهاد
گرگی اندر پوستین بره ئې هر زمان اندرکمین بره ئې
مشکلات حضرت انسان ازوست آدمیت را غم پنهان ازوست
درنگاهش آدمي آب وگل است کاروان زندگي بې منزل است
علم اشیا خاک مارا کیمیاست آه! در افرنگ تاثیرش جداست

هغه پدې هکله چې څنګه غرب په خپله ملګرتیا کې له جبرائیل صفته نیک انسان څخه هم ابلیس جوړوي. او څنګه له علم څخه د انسانیت د تباهۍ وسله تیاروي وایي:

علم ازو رسواست اندر شهرودشت    جبرئیل از حبتش ابلیس گشت
دانش افرنگیان تیغ بدوش    در هلاک نوع انسان سخت کوش
آه! از افرنگ و از آیین او    آه! از اندیشهٔ لادین او

اقبال په غرب تیروتلو د فکري جګړې قربانیانو ته د غرب دبشر دوستۍ او حقوق پیژندنې په هلکه وایي:

شرع یورپ بی نزاع قیل وقال    بره را کردست برگرگان حلال
کشتن بی حرب وضرب آیین او    مرگها از گردش ماشین او

اقبال نه یوازې دا چې خلکو ته د غرب حقیقت بربنډوي، بلکه د غرب په فکري دام کې دلویدلومسلمانانو، او د غرب د فکري جګړې د قربانیانو هغه تصویر هم وړاندې کوي چې څنګه غربي ډوله تعلیم غیرتي مسلمان د غرب په نانځکو بدل کړل، او د اسلام هر څه ئې ورڅخه واخیستل، هغه وایي:

حکمت ارباب دین کردم بیان    حکمت ارباب کین را هم بدان
حکمت ارباب کین مکراست وفن    مکر وفن؟ تخریب جان تعمیرتن
حکمتی از بند دین آزاده ئې    از مقام شوق دور افتاده ئې
مکتب از تدبیر او گیرد نظام    تا به کام خواجه اندیشد غلام
شیخ ملت با حدیث دلنشین    برمراد او کند تجدید دین
وای قومی کشتهٔ تدبیر غیر    کار او تخریب خود تعمیر غیر
میشود درعلم وفن صاحب نظر    از وجود خود نگردد باخبر
از حیا بیگانه پیران کهن    نوجوانان چون زنان مشغول تن
در دل شان آروزها بی ثبات    مرده زایند از بطون امهات
دختران او به زلف خود اسیر    شوخ چشم وخود نما و خورده گیر

ملـتـی خاکســتر او بـی شــرر صبـح او از شـام او تـاریـک تـر
هر زمـن انـدر تـلاش سازوبـرگ کـار او فـکر معـاش و ترس مرگ
منعمان او بخیل و عیـش دوسـت غـافـل از مغـزند و اندربند پوست
قـوت فـرما نـروا مـعبـود او در زوال دیـن و ایـمـان سـود او
ازحـدامـروز خود بـیـرون نجست روز گارش نقش یک فردا نـه بست
از نیـاکـان دفـتری انـدر بـغـل الامــان از گــفتـه های بـی عـمل
دیـن او عـهـد وفا بـستن بـه غیر یعـنـی از خـشت حـرم تعمیر دیر

حکیم او فیلسوف اقبال وروسته دانګریزي ډوله تعلیم او مکتب له منفي تاثیر نه سرټکوي او ددغه مکتب روشن فکره خو تاریک ضمیره بچیان دا ډول را معرفي کوي:

درعـجم گردیـدم هـم در عـرب مصـطـفی نـا یاب ارزان بولهب
این مسلمان زاده روشـن د مـاغ ظلـمـت آبـاد ضمیرش بی چراغ
درجوانی نرم و نازک چـون حریر آرزو درسیـنـۀ او زود مـیــر
ایـن غـلام ابـن غـلام ابــن غـلام حـریـت انـدیـشـۀ او را حـرام
مکتب ازوی جذبـۀ دیـن درربـود از وجـودش ایـن قدردانم که بود
این زخود بیگانه این مست فـرنگ نان جو میخواهد از دست فرنگ
از فرنـگـی مـیخرد لات و مـنـات مـؤمـن و انـدیشـۀ او سـومنات
دیـن و دانـش را غـلام ارزان دهـد تـابـدن را زنـده دارد جـان دهد
گـرچه بر لـبـهای او نـام خـداست قـبـلـۀ او طـاقـت فرمانرواست

دغرب دمادي فلسفي په زهرو خبر، دتجربې خاوند اقبا ل، مسلمانانو ته د غرب د فکر دخپلولو له خطر څه خبردرای ورکوي، او ورته وايې چې هر څوک چې يوځل دغرب د فکر په زهرو زهرجن شو هغه بیا د مسلمانانو دکار نه پاتې کیږي.

هوشــمندی از خم او مــی نخــورد    هر که خورد اندر همین میخانه مرد

ځینې غرب ځپلي خلک چې اصلاً د علم او رواج تر منځ فرق نشي کولی،
ګومان کوي چې که چیرې دوئ هم د غربیانو رواجونه خپل کړي، او خپل شکل، مظهر، لباس، او فیشن دهغوئ په څیر جوړ کړي، ګوندې دوئ به هم د غربیانو په څیر په علم او فن کې پرمخ ولاړ شي، او شرق به هم د غرب په څیر دمادي پرمختګونو لوړو پوړنو ته ورسوي، اقبال ددغه خام خیا ل او ځان غولنې په هکله دغرب مینانو ته وایي:

شرق را از خود برد تـقلـید غـرب    بـایـد ایـن اقـوام را تـنـقـید غرب
قـوت مغــرب نه ازچنــگ و ربــاب    نــی ز رقـص دخـتران بی حجـاب
نــی زسحر ساحـــران لالــه روست    نی زعریان ساق نی از قطع موست
مـحـکمی او را نه از لادینی است    نــی فـروغـش از خط لاتـینی است
قــوت افـرنـگ از علـم وفـن است    از همـین آتش چراغش روشن است
حـکمت از قطع و بریدجامه نست    مـانـع عـلـم وهـنـر عـمامه نیست
علـم وفـن را ای جوان شوخ وشنگ    مـغـز مـی بایـد نـه مـلبوس فرنگ
اندرین ره جز نگه مطلوب نیست    ایــن کـلـه یا آن کله مطلوب نیست
فـکر چالاکـی اگر داری بـس است    طبـع درّاکی اگر داری بـس اسـت

اقبال په پای کې د اسلامي امت بچیانو ته توصیه کوي چې نه د غرب ګوهر دخپلولو دی، او نه ئې مشک د بویولو دي. ځکه چې ګوهر ئې صاف نه دی، او مشک دهوسۍ له نافې څخه نه، بلکه د سپي نه نو څخه راوتلي دي، هغه وایي:

ګوهرش تفدار و در لعلش رگ است    مشک این سودا گراز ناف سگ است

خو د غرب سیکولر (بې دینه) غلامان بیا هم د اسلامي نړۍ ځوانانو ته د غربیانو د پیروۍ توصیې کوي او د غرب فرهنګ ورته د لوړ انساني فرهنګ په حیث ورمعرفي کوي.

## د فکري جګړې مخنیوی

د پوځي جګړې مخنیوی کله په پوځي غلبې، او کله هم په صلحې اومتارکې سره کیږي. خو فکري جګړه بیا هغه جګړه ده چې په هیڅ صورت صلحه او منځګړتوب نه مني، او نه ورکښې دصلحې لپاره ځای شته. فکري جګړه یوازې دفکري غلبې په صورت کې دریږي او بس. او تر څو چې یوطرف پر بل طرف کې په مکمل ډول غالب شوي نه وي، تر هغه به دغه جګړه روانه وي.
په فکري جګړه کې نه اسلام صلح او منځګړتوب مني، او نه کفر. په هغه وخت چې رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کې د شرک او کفر په خلاف په یوازې ځان فکري جګړه پیل کړې وه، د مکې کفار په دغې جګړې کې له رسول الله ﷺ څخه ډیر تنګ شول. مشران ئې د رسول الله ﷺ تره ابوطالب ته راغلل تر څو د دوئ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر منځ منځګړتوب وکړي، او رسول الله ﷺ د دوئ د شرکي افکارو او نظریاتو په خلاف له مبارزې څخه ایسار کړي. ابوطالب هم په ډیرې مهربانۍ د کفارو دغه غوښتنه رسول الله ﷺ ته وړاندې کړه. رسول الله ﷺ چې د ددغې فکري جګړې د توقف له خطرناکو عواقبو ښه خبروو، خپل تره ته ئې داسې و فرمایل: (**والله یاعم لو وضعواالشمس في یمیني والقمر في یساري علی ان اترك هذا الامرافعلت حتی یُظهره الله او اهلك دونه**)) (قسم مې دې په الله وي ای تره! که کافران لمر زما په ښي لاس، او سپوږمۍ زما په کیڼ لاس کې راته کیږدي ددې لپاره چې زه دا کار پریږدم، تر هغه به ئې پرې نږدم چې یائې الله پر کفر غالب کړي، او یازه په دې لارکې ومرم).

که د رسول الله ﷺ دغه دریځ ته وګورو نو وینو چې هغه مبارک پداسې وخت کې دخپلې فکري مبارزې د دوام قسم یادوي چې دی په میدان کې یوازې ولاړ دی، او حتی چې تره ئې هم دده تر څنګ نه دریږي، خو بیا هم هغه مبارک فرمایي: چې که کافران ناممکن شرطونه چې د لمر او د سپوږمۍ په لاسونو کې ورته اېښودل دي، هم ورته ممکن کړي، بیا هم د دوئ له فکري دښمنۍ څخه لاس نه اخلي. دا پدی دلالت کوي چې په اسلام کې د کفر په خلاف په فکري جګړې او دښمنۍ کې سوله او منځګړتوب ځای نه لري، په عسکري جګړه کې رسول الله ﷺ صلحه کړې ده، خو په فکري جګړه کې ئې هیڅکله نه ده کړې.

همدغه ډول کفار هم تر هغه د مسلمانانو له دښمنۍ څخه لاس نه اخلي تر څو ئې هغوئ له خپل دین، فکر، او ملت څخه چې اسلام دی ویستلي نه وي. الله فرمایي: ﴿ وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ﴾ البقرة: ۱۲۰

**ترجمه:** (هیڅکله به یهود او نصاری له تا څخه خوښ او راضي نشي تر هغه چې د د وئ د ملت (دین) پیروي ونه کړې.

همدارنګه الله فرمایي: ﴿ وَلَا يَزَالُونَ يُقَٰتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ ٱسْتَطَٰعُوا۟ ﴾ البقرة: ۲۱۷

**ترجمه:** (هیشه به وي دوئ (کافران) چې جګړه به کوي له تاسې سره تر هغې چې تاسې له خپل دین څخه مرتد کړي، که دوئ په دي کار و توانیږی.) پدې د واړو آیتونو کې په صراحت سره معلومیږي چې کفار به تر هغه وخته د مسلمانانو په خلاف په جګړه کې وي، چې تر څو ئې د مسلمانانو دین، فکر، او نظریات نه وي وربدل کړي، یعنې د دوئ عسکري جګړې به هم د فکر لپاره وي. اصلي جګړه به فکري وي، خو کیدای شي چې عسکري جګړې هم د دغې فکري جګړې لپاره دوسائلو په حیث استعمال شي.

دا چې فکري جګړه په هيڅ صورت سوله او منځګړتوب نه مني، نو ددغې جګړې مقابله او مخنيوى به څنګه او په څه شکل کوو؟ او بيا په خاص ډول مونږ افغانان به ئې د خپل ديني، فکري، سياسي، علمي، او اجتماعي وضعيت په پام کې نيولو سره څنګه کوو؟ پدې هکله يوه طرحه د اسلامي فکر او نظر دخاوندانو په خدمت کې په لاندې څو تدبيرونو کې وړاندې کوو

## اول تدبير- دحکومت دچارو واګي تر لاسه کول:

په اسلامي نړۍ کې د ننه، او له هغې څخه د باندې چې د مسلمانانو په خلاف د فکري جګړې تر شا څوک ولاړ دي، هغه ټول نظامونه او حکومتونه دي. او کوم وسائل چې پدغه جګړه کې په کار اچول کيږي لکه مکتبونه، پوهنتونونه، څيړنيز مراکز، راډيوګانې، تلويزونونه، وزارتونه، قوانين، سياسي او پوځي فشارونه، په مليياردونو ډالر، او په مليونونو روزل شوي متخصصين، او ماهر کارکوونکي، او نور وسائل چې تقريباً ټول ئې دهغو حکومتونو په واک کې دي چې د اسلام او مسلمانانو په خلاف ئې دغه خطرناکه فکري جګړه پيل کړې ده، او پر مخ ئې بيايي

په اسلامي هيوادونو، او بيا په خاص ډول افغانستان کې ددغو وسائلو مقابله او يا مخنيوى د افرادو او تنظيمونو له توان څخه وتلى کار دى. تر څو چې نظام اوحکومت د اسلامي فکر دخاوندانو لاس ته نه وي ورغلى، او تر څو ئې چې د افغانستان د ټولو ديني، سياسي،پوځي، اداري، اجتماعي، مالي، کلتوري، او تعليمي، چارو واګي له مفسدو، سيکولرو، ديموکراتو، ليبرالو، کمونستو، نشنلستو، غرب ځپلو عناصرو، او د اروپايي افکارو د منونکو، له کرغيړنو منګولو نه وي اخيستي، تر هغه پورې د اصلاح انفرادي هڅې بې ګټې، او يا بې مطلوبې ګټې دي.

دحاکميت له سطحې څخه ليرې هڅو او دعوت په تيرو نوي کلونو کې وښودله چې يوازې د دعوت او طاغوتانو ته د عذرونو، او زاريو، له

لاړې د اسلامي نړۍ په یو هیواد کې هم اسلامي نظام رامنځته نه شو. ځکه چې یوازې دعوت د قرآن او د رسول الله ﷺ له طریقې څخه خلاف کار دی. رسول الله ﷺ دیارلس کاله یوازې دعوت وکړ، یوازې د اتوسوو په شاو اوخوا کښې خلک مسلمانان شول. خو بیا هم د کفر او جاهلیت نظام همغه ډول په ځای ولاړ وو. خو کله چې رسول الله ﷺ په مدینه منوره کې حکومت او نظام جوړ کړ، او دحکومت د چارو واګې ئې ترلاسه کړې، تر لسو کلونو په کمه موده کې نه یوازې اسلام د عربو په ټوله جزیره کې خور شو، بلکه د عربو تر جزیرې د باندې ئې هم د کفر د لویو لویو امپراطوریو د زوال زمینه برابره کړه.

مونږ په افغانستان کې تر هغه د غرب د فکري جګړې مخنیوی نشو کولی، چې تر څو مو د بالمثل وسائلو د لرلو توان نه وي پیداکړي. او دا کار به هغه وخت ممکن وي چې خپل نظام او حکومت د غرب له غلامانو او بریڅو خلاص کړو، او په ریښتني معنی ئې د اسلام د دین په اساساتو ودروو. نه دا چې نوم ئې اسلامي حکومت وي، او چارې ئې ټولې د کفر، او معاصر جاهلیت په قوانینو چلیږي.

د طالبانو د حکومت تجربې وښودله چې اسلامي اداره چې که څه هم چې په مادي لحاظ کمزوري هم وي د فساد، ظلم، او کفري نظریاتو په مخنیوي کې تر قوي بې دینه حکومت ډیره مؤثره وي. همدغه سبب ؤ چې ټوله کفري نړۍ د داسې یو حکومت په مقابل کې د جګړې لپاره راپورته شوه چې تر اوسه ئې لا پښې هم په زمکه نه وې ټینګې شوې. ځکه چې کفار پدې پوهیږي چې که یوځل په کوم اسلامي هیواد کې یو حقیقي او واقعي اسلامي نظام او حکومت منځته راشي، هغه به حتماً د نورو مسلمانو ملتونو لپاره د یو مثال او ماډل حیثیت غوره کوي چې هغوئ به ئې هم په خپلو هیواد ونو کې دقائمولو هڅه کوي.

نو ددې لپاره چې ملت مو د غرب له فکري جګړې او په دین نه ولاړو نظریاتو څخه ژغورلی وي، باید د (حکومت) او (تاثیر ګذارۍ) ټول فرصتونه او وسائل د غرب ځېلو، سیکولرو عناصرو له لاسه خلاص

کړو، او د الله ﷻ د دين دحاکمولو لپاره ئې په خپل لاس کې ونيسو، او پدې لار کې له هيڅا سره د اسلام په سر معامله ونه کړو.
د تيرو اتياوو کلونو تاريخ ثابته کړه چې تر څو پورې د غرب په فکر روزل شوې عناصر په قدرت کې وي، تر هغه به د اسلامي فکر منسوبين يا وژلی کيږي، يا به په زندانونوکې وي، او يا به هم له تبعيد او نورو ډول محدوديتونو او بنديزونو سره مخ کيږي.

## دوهم تدبير- دتعليمي نصابونو اصلاح:

په اسلامي نړۍ کې د تعليم دوه ډوله نصابونه رائج دي چې يو ئې د ديني، او بل ئې ددنياوي تعليم نصاب دی. دغه د واړه ډوله نصابونه اساسي اصلاح ته ضرورت لري چې بايد په لاندې ډول وي:

## ۱- د دنياوي تعليمي نصاب اصلاح:

دنياوي تعليمي نصاب ددې تر څنګ چې بايد دمعاصرو تحقيقاتو او څيړنو په رڼا کې دمؤثر (تقديم) Presentation او عصري (طريق تدريس) Method په شکل کې تدوين شي، له غربي فلسفې،اخلاقو، فرهنګ، او فکري تاثيراتو څخه هم بايد په ټوله معنی پاک شي. ځکه چې مونږ ديو مؤمن ملت په حيث د خپل رب، خپل دين، او خپل ملي تشخص په وړاندې التزامات لرو، چې هغه زمونږ د ژوند ټول اړخونه احتوا کوي. مونږ که ضرورت لرو هغه يوازې د غرب علمي او صنعتي تجربې ته دی، نه د غرب اخلاقو، د ژوند فلسفې، او دهغه الحادي کلتور ته. ټول هغه مفاهيم چې د غرب د مشاورينو په اشارو، او يا د هغوئ دشاګردانو لخوا په رسمي تعليمي نصاب کې ځای په ځای شوي دي بايد د خبيرو، او داسلامي فکر په ټولو اړخونو د پوهو اشخاصو لخوا تصفيه شي، او په ځای ئې سوچه اسلامي افکار په تعليمي نصاب کې شامل کړای شي. خو دا پدې معنی نده چې د اسلامي مدرسو ديني عربي کتابونه، او يا د صرف او نحوی اختصاصي کتابونه چې له نن څخه تقريباً اته سوه يا زر کاله پخوا د هماغې زمانې

د شعوري او ذهني کیفیت، او علمي سويي په نظر کې نیولو سره دهماغې زمانې خلکو ته لیکل شوي ول راواخیستل شي او پرته له کوم تسهیل، ترجمې، او نوي تدوین څخه دې د مکتب په نصاب کې شامل کړای شي. بلکه دیني او لغوي مسائل باید په (سیستماتیک) ډول ددي زمانې د رواني (روحي) علمي، اجتماعي، لغوي وضعیت، او عرفونو په نظر کې نیولو سره په مناسب ډول او تدرج ته په پام سره په ټول نصاب کې له اول صنف څخه نیولې تر پوهنتون پورې داخل کړای شي. داسې نه چې پرته له کومې مقدمې، تدریج، او مخکنۍ ذهن جوړونې نابېره (قوانین زرادي) او یا (شرح زنجاني) دمکتب په اوم یا اتم صنف کې داخل شي، پداسې حال کې ددغو کتابونو مدرس په خپله هم پدې هم قادر نه وي چې د زرادي قواینن دې د صنف شاګردانو ته په تخته باندې په منظم ډول ولیکي، او شرح ئې کړي.

٢ – د دیني زده کړو د نصاب اصلاح:

د دیني زده کړو نصابونه د هرې زمانې دغوښتنو، ضرورتونو، سیاسي اواجتماعي شرائطو، او د مسلمانانو د موجوده وضعیت په پام کې نیولو سره جوړیږي، او د زمانې او حالاتو له بدلون سره په دیني نصاب کې دمضامینو بدلون هم ضروري وي. او همدغه له انبیاؤ او امتونو سره د الله تعالی سنت هم دي. الله ﷻ د هرې زمانې پیغمبر او امت ته جلا جلا شریعت او منهج چې په اصولو کې سره متحدول رالیږلی دی. که داسې نه وي نو هماغه د آدم علیه السلام صحیفې به ئې تر قیامته په انسانو مقررې کړې وای، او د بیلا بیلو صحیفو او کتابونو نازلو لو ته به ضرورت نه ؤ. خو دا کار حکیم او علیم رب ځکه نه دی کړی چې د هرې زمانې بیلې غوښتنې او شرائط وي.

همدغه ډول زمونږ په شریعت کې دناسخ او منسوخ فلسفه هم ده، د دې په څنګ کې دا هم ګورو چې په (مکي عهد) کې شریعت یوه بڼه درلوده، په (مدني عهد) کې ئې بیا بله بڼه غوره کړه. د رسول الله تر وفات وروسته بیا د صحابه ؤ کرامو داجتهاد دلیل هم په شریعت کې

ور اضافه شو. وروسته بیا د اجماع، قیاس، او نورو شرعي دلائلو اضافه دفقهي مذاهبو په شکل کې رامنځته شوه. دا ټول بدلونونه پداسې شکل کې راتلل چې د شریعت اصل ورکښې محفوظ پاتې کیده. دا هر څه ددې خبرې دلیل دي چې د هرې زمانې حالات بیل نصاب او بیل مضامین غواړي.

آیا په اوسنۍ زمانه کې به ډیره عجیبه نه وي چې اسلامي نړۍ، او مسلمان امت راڅخه د کمونیزم، الحاد، مادیت، ډیموکراسۍ، لیبرالیزم، نشنلزم، او ګلوبلایزیشن، بلا په خوله کې نیولی وي، او مونږ اوس هم په خپل دیني تعلیمي نصاب کې د زرو کلونو پخوانیو کلامي او فلسفي فرقو او مذاهبو په هکله معلومات تدریسوو؟!

ولې ددغې زمانې هغه فلسفې، نظریات، او مذهبي فرقې، تر ګو زار لاندې نه نیسو چې د میلیونونو مسلمانانو ایمان او عقیده ئې ورخرابه کړې، او لا ورخرابوي ئې.

آیا زمونږ په کومه دیني مدرسه، یا کوم دیني تعلیمي نصاب کې د معاصر کفر د اشکالو، او انواعو، په هکله مضامین تدریسیږي؟ آیا مونږ پرون د کمونیزم دنظریاتو او نن د غربي (لادینه) سیکولر نظریاتو، د خپریدو مخنیوی وکولی شو؟ که مو نه وي کړی، نو باید له خپل تعلیمي نصاب څخه ټول هغه زاړه، بې ضرورته، او اضافي ګرامري مضامین وباسو، او پرځای ئې خالص شرعی مضامین، او هغه مضامین چې معاصر اسلامي فکر ته ئې شدید ضرورت دی لکه سیرت او اسلامي تاریخ، سیاسي او اجتماعي علوم، او د اسلامي نړۍ د اوسني وضعیت، او دهغه دموجودو مشکلاتو په اړه مضامین وراضافه کړو. تر څو دنن ورځي دمدرسې طالب د نن او د سبا ورځې د فکري، عقائدي، سیاسي، او اجتماعي چیلنجونو مقابله وکړای شي.

**دریم تدبیر- مساجد د فکري جګړې د مقاومت په سنګرونو بدلول:**

دیوی محتاطی اندازې په اساس د اوسني افغانستان په ښارونو، کلیو او بانډو کې تقریباً څلور لکه (۴۰۰،۰۰۰) مسجدونه وجود لري. او په هر مسجد کې یو تن امام هم د امامت په وظیفه مصروف دی. دغه څلور سوه زره مسجدونه که په حقیقي معني د دعوت په مرکزونو تبدیل شي، او امامان ئې په واقعي ډول د الله ﷻ دین ته دخلکو د رابللو، او دخلکو د فکري، عقیدوي، فقهي، او اخلاقي مشکلاتو د حل کولو استعداد او صلاحیت په ځان کې پیداکړي، هیڅ اجنبي فکر، او وارداتي ګمراهي به ونشي کولي چې د افغانستان خلک، او بیا په خاص ډول په لکونو ځوانان له اسلام څخه پرته په نورو نظریاتو قانع کړي.

خو دا تریخ حقیقت باید ومنو چې کمونیزم د همد ومره ملایانو او امامانو له شتون سره سره بیا هم د کلیو او ښارونو په لکونو ځوانان له اسلام څخه منحرف کړل، او په خپل صف کې ئې ودرول. همدا ډول سره له دې چې زمونږ ملت د جهاد، هجرت، قربانیو، شهادتونو، او په پراخه پیمانه له شرعي مفاهیمو او علومو سره د نږدیوالي یوه اوږده دوره هم تیره کړه، خو بیا هم غربي مؤسساتو، او غربي فکري جهتونو وکولی شول چې زمونږ د ملت یوه لویه برخه خلک پر افغانستان د امریکا په یرغل کې، او تر هغه وروسته د امریکایانو تر څنګ ودروي، او پدې ئې قانع کړي چې د صلیب تر بیرغ لاندې د اسلام او مسلمانانو په خلاف وجنګیږي.

زمونږ په لکونو امامان، خطیبان، قاریان، او د شرعي علم منسوبین ولې د وارداتي کفري افکارو له مقاومت او بې اثره کولو عاجز دي؟ ولې د دوئ له پراخ شتون سره سره دملت په لکونو بچیان کله د کمونیزم تر بیرغ لاندې دریږي، او کله هم د غرب د صلیب تر بیرغ لاندې؟

دغه کار ډیر علتونه لري چې ځیني مهم ئې دا دي:

## الف: د دعوت د احساس نشتوالی:

د افغانستان په ډیرو علماؤ، امامانو، ملایانو، او د مدرسو په طالبانو کې د دعوت د احساس نشتوالی لیدل کیږي. هغوئ ځانونه یوازې مدرسین، دمساجدو امامان، او د کتابونو لوستونکي ګڼې. که څوک پوښتنه ترې وکړي ځواب ورته وایي، او که ئې ونه کړي. دوئ په چا پسې نه ورځي. او نه له خپله انده د ټولنې د افرادو د اجتماعي پوهاوي لپاره دعوتي پروګرامونه جوړوي، او نه هم د اجتماعي او اخلاقي فساد په خلاف منظمه او مسلسله مبارزه خپل مسؤلیت ګڼي.

دا مشکل له دي ځایه راولاړ شوی چې زمونږ په دیني تعلیمي نصاب کې صرف، نحو، منطق، بلاغت، شعر، شاعري، د (نفحة الیمن) او (مقامات حریري) په څیر د لفظي صنعت له تکلف څخه ډکې خرافي کیسې او نکلونه د ادب په نامه لوستل کیږي، خو د دعوت د طریقې، اسالیبو او د فردي، اجتماعي، سري او علني دعوت د کړنلارې په هکله یو کتاب هم نه لوستل کیږي. همدارنګه د رسول الله ﷺ او د نورو پیغمبرانو د دعوت د تاریخ، تجربو، مشکلاتو، کامیابیو، او په بشري ټولنو د هغوئ د احسانونو په هکله یو کتاب څه چې یو مضمون هم نه لوستل کیږي. د رسول الله ﷺ اصحابان چې تر انبیاؤ وروسته غوره خلک دي، او بشریت ته د دعوت د استاذانو نړیوال حیثیت لري، د هغوئ د تاریخ او دعوت په هکله هم هیڅ کتاب نه لوستل کیږي. او حتې چې د فقهي مذاهبو د امامانو، او د اسلامي شریعت د تدوینوونکو علماؤ د تاریخ، جد اوجهد، او قربانیو په هکله هم کوم کتاب په رسمي ډول په تعلمي نصاب کې شامل نه دی.

نو ښکاره خبره ده چې که په نصاب کې د دعوت مضمون وجود ونه لري، نو دنصاب په فارغانو کې به د دعوت احساس له کومه ځایه راشي؟.

البته دا خبره د هیرولو نه ده چې په اوسني وخت کې هم ځینې علماؤ په فوق العاده ډول اسلامي فکر، دعوت، او د ټولنې اجتماعي پوهاوي ته ډير لوی لوی خدمتونه کړي دي. خو دهغوئ فیصدي ښائي په هرو لسو، شلو زورو کې یو وي.

## ب- د امامت لپاره دنااهلیت ستونزه:

زمونږ په اکثره مساجدو کې داسې خلک هم په امامت ګومارل شوي چې په ریښتني معنی دامامت استعداد او اهلیت نه لري، نه کافي شرعي علم لري، نه په قرآن او حدیث پوهیږي، او نه ورکښې د بلاغ او بیان صلاحیت شته. ځینې ئې په موروثی ډول امامان شوي دي، او ځینې نورو ئې د امامت منصب د ځېني مادي ګټو لپاره اشغال کړی، پرته لدې چې د امامت او دعوت حق ادا کړي.

دخلکو صلاح او ګمراهي ورته دومره اهمیت نه لري، لکه څومره چې ورته دزکاتونو، صدقاتو، سرسایو، عشرونو، دقربانۍ د پوستکو، او شکرانو اخیستل اهمیت لري. دغه ډول امامان نه یوازې دا چې په خپله د دعوت وظیفه نه تر سره کوې، بلکه نور علماء او داعیان هم په خپل مسجد او کلي کې د دعوت لپاره نه پریږدي، عام خلک او جاهلان د مخلصو دعوتګرو په خلاف راپاروي، او په دعوتګرو پوري ډول ډول تورونه او تهمتونه تړي. دغو امامانو ته د کلي دخلکو عرف او عادت، رواج او عنعنې د شریعت تر احکامو ډیر اهمیت لري. ځکه چې د کلي د رواجونو پالل ئې د وظیفي د دوام ضمانت ورکوي، خو د شریعت دهغو احکامو بیانول چې دخلکو له رواجونو سره اختلاف لري ښائې دده د شړل کیدلو سبب شي. دغه ډول ملایان نه یوازې دا چې دمعاصرو فکري فتنو، او ارتدادونو مقابله نشي کولي، بلکه په خپلو خرافي عقایدو، او غیر شرعي اعمالو د دین د بدنامولو، او د دین دښمنانو ته دوسلې د په لاس ورکولو سبب هم ګرځي.

اسلامي حکومت باید دغه ډول حرفوي امامان د امامت له عظیم او خطرناک منصب څخه لیري او په ځای ئې اهل، او د دین په روح خبر، عالمان د امامت لپاره وټاکي.
ددي لپاره چې مساجد مو په ریښتني ډول د اسلامي علومود زده کړې په مراکزو او د فکرې جګړي د مقاومت په سنګرونو بدل شوي وي، او په امامانو او خطیبانو کې قیادي صلاحیتونه، او د فکري او عقائدي فتنو د مخنیوي لیاقت او استعداد پیدا شوي وي، اسلامي نظام باید د امامانو او خطیبانو د روزلو لپاره هم د داسې مسلکي روزنې فرصتونه رامنځته کړي لکه د مفتیانو، قاضیانو، او معلمینو د روزنې لپاره چې رامنځته شوي دي.
دغه فرصتونه ښائې د پوهنتون په چوکاټ کې د دعوت او امامت د فاکولتې په شکل کې وي. او یا ددې کار لپاره یوه خاصه عالي مدرسه، اکاډمي او یا په کوم بل نامه علمي روزنیز مراکز پرانستل شي.
د امامت منصب په اصل کې دنبوت د منصب میراث دی. تر هغه وخته چې په دغه منصب اهل او با استعداده علماء ټاکل کیدل، مسلمانې ټولنې له هر ډول اجتماعي او فکري انحراف څخه په امن وې. ځکه چې امام به لږ تر لږه پنځه وخته په شپه او ورځ کې د ټولنې د افرادو له هر ډول حالاتو څخه ځان خبراوه، او د شریعت په رڼا کې به ئې د خلکو د فکري، اخلاقي، عقیدوي، فقهي، او حتی اجتماعي مشکلاتو د حل د راویستلو هڅه کوله.
خو له کومي ورځې چې دغه منصب ته په کم نظر وکتل شول، له هماغې ورځې د ملت او امام ترمنځ روحي رابطه کمزورې شوه، چې دغه کمزوري بیا د اسلام دښمنانو په خپله ګټه وکاروله، او د ټولنې د افرادو په افکارو او اذهانو ئې تاثیر وکړ.
که چیرې یو ځل بیا مساجد د عبادت ترڅنګ د علم، فکر، اخلاقو، اجتماعي اصلاحي تفکر، او د دښمنانو د دسیسو او توطیو د شنډولو مراکز وګرځي، او د زړه سواندو علماؤ او دعوتګرو امامانو لخوا

ورکښې اسلام ته هر اړخيز دعوت شروع شي، وبه وينو چې څنګه د ټولنې فکري قيادت د اسلام دښمنو اشخاصو او جهتونو له لاسه ووځي، او بيرته د صالحو خلکو لاسته ورځي.

ددې بحث په پای کې ويلی شو چې فکري جګړه تر عسکري جګړې ډيره خطرناکه، او آثار ئې د عسکري جګړې تر آثارو ډير دوامداره دي. همدارنګه د فکري جګړي مقابله هم د عسکري جګړې تر مقابلې ډيره ګرانه ده، او ډير صبر او خورا پراخ او هر اړخيرز تخطيط او تنظيم ته ضرورت لري.

په عسکري جګړه کې دکوم ملت پاتې راتلل دهغه ملت د دائمي له منځه تللو په معنی نشي کيدی. خو که چيرې کوم ملت په فکري جګړه کې ماتې وخوري، او له خپل دين، فکر، عقيدې، اخلاقو، ملي ارزښتونو، او تاريخ څخه دفاع ونشي کولي، نو دا په حقيقت کې د دغه ملت دمعنوي او فکري مړينې په معنی ده، چې خطرناک عواقب لري. د فکري جګړې په اړه دغه څو خبرې له ډيره وخته زما په ذهن کې وې چې دا دی دخپل ملت، دزړه سواندو مخلصو بچيانو په مخکې مې کيښودې، هيله ده چې هغوئ مې دغې خطرناکې جګړې ته متوجه کړي، او خپل مسؤليت مې تر يوه حده رفع کړي وي.

# پردي معيارونه

## د مسمانانو د بيرته پاتې اصلي عوامل

پداسې حال کې چې مسلمان دهغه حق دين منونکي دي چې الله ﷻ له هغه پرته بل دين نه مني ﴿ إِنَّ ٱلدِّينَ عِندَ ٱللَّهِ ٱلْإِسْلَـٰمُ ﴾ آل عمران: ١٩ ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَـٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴿٨٥﴾ ﴾ آل عمران: ٨٥

او پداسې حال کې چې مسلمان هيوادونه د ودانې نړۍ په منځ کې موقعيت لري چې په سياسي، اقتصادي، او ستراتيژيک لحاظ له ډير اهميت څخه برخمن دي، او پداسې حال کې چې مسلمانان د شمير په لحاظ ورځ په ورځ زياتيږي، او د ژوند وسائل ئې هم ښه کيږي، خو بيا هم مسلمان هيوادونه د تيرو پنځو سوو کلونو راهيسې کله د يوه يرغلګر او ښکيلاګر هيواد او کله دبل ترسلط او يا تهديد لاندې وخت تيروي، او مسلمانان د نړۍ په ولسونو کې په وروسته پاتې ولسونو کې شميرل کيږي.

دغه بد حالت ډير اسباب او عوامل لري چې تر ټولو اصلې او لوی عامل يې د مسلمانانو د خپل دين په مزاج او غوښتنه ځان نه پوهول دي.

په هغه وخت کې چې مسلمانان دخپل دين په مزاج او غوښتنو پوهيدل، اود نړۍ او انسانيت چاروته ئې د (خپل) فکر په رڼا کې کتل، سم او ناسم کارونه ئې په خپلو معيارونو معلومول، او د خپل ځان لپاره ئې اهداف او د پرمختګ لاره په خپله ټاکله، په هغه وخت کې مسلمانان تر ټولو غښتلي او پياوړي خلک ول. له هسپانيې نيولې

تر چین پورې د دوئ بیرغ رپیده. او د نورې نړۍ خلکو به کوښښ کاوه چې لدوئ څخه دین او یا تمدن زده کړي.
خو کله چې د بیلا بیلو عواملو په نتیجه کې د مسلمانانو اجتماعي تفکر بدل شو، خپل معیارونه او تګلاره ئې پریښوده، او د نورو معیارونه او تګلارې ئې خپلې کړې. نتائج هم معکوس راووتل. قیادت او سیادت د مسلمانانو له لاسه لاړ، او کرار کرار مسلمان هیوادونه او ولسونه یو په بل پسې د پردیو تر واکمنۍ لاندې راغلل. او دغې پردۍ واکمنۍ په مختلفو لارو او پلمو مسلمانان له خپلې ارادې، آزادۍ، دین، تمدن، ژبو، تاریخ، او فرهنګ څخه محروم کړل. چې ددغه محرومیت ژوندي مثالونه د مسلمانانو د سیاسي، اجتماعي، پوځي، تقنیني، علمي، فرهنګي او اقتصادي ژوند په بیلابیلو ډګرونو کې په لاندې ډول وینو:

### ۱ – د حاکمیت ډګر:

دولسونو او هیوادونو سیاسي او ټولنیزې چارې په داخل کی او له نورې نړۍ سره بین المللی دوه اړخیز روابط دهر هیواد د حاکمانو او حاکم نظام له لوري پرمخ بیول کیږي. د همدغه اهمیت له امله د حاکم او د حاکمیت د څرنګوالي ټاکل په اسلام کې شرعي او عقیدوي موضوع ده. او اسلامي شریعت د حاکم د ټاکلو لپاره د داسې لارو چارو د خپلولو امر کړی چې په نتیجه کې ئې صالح حاکم او عادل حاکمیت رامنځ ته شي. د اسلام فقهاؤ دحاکم د تعین او عزل (ټاکلو او لیرې کولو) لپاره د شریعیت په رڼا کې داسې معیارونه او قیود وضع کړي چې په عملي کولوئې اسلامي ټولنه د حاکمیت په ډګر کې له ټولنیز اضطراب څخه د تل لپاره په امان پاتې کیږي.
په اسلام کې د حاکم له اساسي او مهمو مسؤلیتونو څخه د اسلامي شریعت نافذول، له هیواد او دین څخه دفاع کول، دوګړو د فردي او اجتماعي حقوقو تامین، او په نړیواله توګه دمسلمانانو له حقوقو څخه دفاع ده. دا چې ددغه ډول حاکم په شتون کې دنړیوالو کفري هیوادونو

اهداف په اسلامي نړۍ کې نه پوره کيدل، نو ئې په مختلفو لارو چارو په اسلامي نړۍ کې د حاکم او حاکميت لپاره نوي معيارونه په مسلمانانو وروتپل. چې په نتيجه کې ئې داسې نظامونه او حاکمان په اسلامي نړۍ مسلط شول چې د نړيوالو کفري هيوادونو ګټو ته دخپلو هيوادونو او ولسونو پر ګټو ترجيح ورکوي. چې دغه ډول حاکمان په لاندې ډولونو کې ليدلای شو:

## الف- شاهي حکومتونه:

شاهي حکومتونه که اسلامي نظام تطبيق کړی ښائي تر ديموکراتيکو حکومتونوغوره وي ځکه چې دهرحاکم په مړينه به په هيوادونو کې نوي نوي اضطرابونه نه راځي. خو اوس چې کوم شاهې نظامونه په ځينو اسلامي هيوادونو کې حاکم دي ټول د استعماری هيوادنو لخوا په خلکو تپل شوي دي. او له همدې امله تل کوښښ کوي چې د استعماري هيوادونو د مصالحو په تامين هغوئ له ځانه راضي وساتي. تر څو د ډير وخت لپاره په قدرت کې پاتې شي. که څه هم چې دا کار ورته د استبداد، ظلم، او اسلام دښمنۍ په قيمت تمام شي.

بله دا چې په دغه ډول شاهي کورنيو کې واک په موروثي شکل له يوه شخه بل ته په اتوماتيک ډول ليږدي. او دې ته نه کتل کيږي چې آيا په راتلونکي حاکم کې د صالح او اهل حاکم وړتيا شته او که نه؟ ډير ځلې خو داسې هم پيښيږي چې استعماري هيوادونه په شاهي کورنۍ کې تر ټولو يو بی کفايته او نا اهله شخص انتخاب کړي. تر څو په پوره بې پروايۍ دخپل دهيواد او ولس ګټې له پامه وغورځوي. او په ټول حماقت د پرديو په اشارو وچليږي.

د نن شاهي نظامونه د مسلمانانو لخوا ندي رامنځته شوي. غربيانو حاکم کړي دي.دغه حکام خپل هيوادونه او ولسونه د زور او اجبار له لاري په هغو طريقو چلوي چې غربيانو ورته ټاکلي. او که څوک ددغه ډول مفسدو حاکمانو پر خلاف د اعتراض غږ پورته کړي په ډيرې بې رحمۍ وهل، تړل، شړل، او وژل کيږي. دغرب دبشري حقوقو

سازمانونه هم ددغه ډول (مترقي؟! حاکمانو له ظلم او استبداده سترګې پټوي. او هم دغه ډول چارې په بيلا بيلو نومونو ستايي. او دفاع ورڅخه کوي.
د شاهی کورنيو غړي او وليعهدان اکثره د غرب له تعليمي مؤسساتو او پوهنتونونو فارغ شوي وي. او فکري معيارونه ئې هم دغربيانو په څير وي. له خپلو ولسونو څخه دومره پردي شوي وي چې د ژوندپه هر څه کې دخپلو هيوادونو له خلکو مختلف وي. دخپل دين او قوم اخلاقي ارزښتونه ورته دغربي ارزښتونو په مقابل کې هيڅ اهميت نلري.

## ب: کودتائي حکومتونه:

دوهم ډول حکومتونه په اسلامي نړۍ کې هغه کودتايي حکومتونه دي چې د پرديو لخوا د روزل شويو او پالل شويو متنفذو خلکو او جهتونو په لاس رامنځته شوي دي. ددغه ډول حکومتونو تر شا استعماري هيوادونه په پوځي او سياسي لحاظ ولاړ وي. لکه څنګه چې د پرديو لخوا رامنځته شوي وي هماغه ډول د پرديو لپاره په خپلو خلکو او هيوادونو حکومت هم کوي. دغه حکومتونه دخپل حاکميت د بقا لپاره داسې نظامونه او قوانين جوړوي چې په هر حالت او شکل کې د دوئ دحاکميت استمرار تامين کړي. دې ته هيڅ پام نه کوي چې دغه ډول نظامونه او قوانين دخلکو له دين، اخلاقو، ملي ارزښتونو، مدني ژوند او نورو طبيعي غوښتنو سره سمون لري او که نه. دغه ډ ول کودتايي نظامونه تر هرڅه دمخه له ټولو هغو خلکو زندانونه ډکوي چې دخپل زوال خطرورڅخه احساسوي. او که کله له يوه ملي پاڅون سره مخ شي نو بيا دوسلې او ځواک بی دريغه استعمال ته مخه اړوي. او که په دې هم چاره ونشي نوبيا پردي پوځونه خپل هيواد ته راوبولي. او هر څه دهغوی په اختيار کې ورکوي. اسلامي نړۍ په شلمه ميلادي پيړی کی له دغه ډول حکومتونو ډيره ګړيدلې اولاتر اوسه کړيږي. داهرڅه ځکه

پيښيږی چې په اسلامي نړۍ کې د حاکميت اوحکومت معيارونه پردي دي.

## ج: پوځي حکومتونه:

په اوسنۍ اسلامي نړۍ کې ډير ځله داسې پيښيږي چې کله هم ملکي او يا د غربيانو په اصطلاح (جمهوری) حکومتونه د استعماري حکومتونو د مصالحو په تامين کې پاتې راشي، د خطرناکو فيصلو له کولو څخه عاجزشي، او دا ويره ورته پيدا شي چې کيدای شي واک د اسلامي او ملي ځواکونو لاس ته ورشي، او د دغه ډول حالت د راتللو په صورت کې به دهغوئ ټول ښکيلاکي مصالح په خطر کې ولويږي، نو هماغه وي چې بيا د پوځي کودتا ګانو لپاره لاره هواره کړي چې دکودتا په نتيجه کې پوځي حکومت رامينځته کيږي چې دغه پوځي واکمن بيا ټول هغه قوانين او نظام له منځه وړي چې کيدای شي تر يو حده به اسلامي او ملي مصالح ورکې خوندي وو. استعماري قوتونه دغه ډول پوځي حکومتونو ته وظيفه ورکوي چې د خپل ولس په خلاف وجنګيږي. او خپلو خلکو ته چې داستعمار او غلامۍ مخالفت کوي، پردي، د هيواد او سولې دښمنان ووايي، او استعماري يرغلګرو او مداخله ګرو هيوادونو ته د دوستانو لقب ورکړي، او له هغوئ سره د (دوستۍ) (امنيت) او (ستراتيژيکو) تړونونو په نامه د غلامۍ او ذلت معاهدې امضاء کړي. او دهغو آزادي غوښتونکو چې په هيواد کې د دغه ډول پوځي واکمنو مخالفت کوي، دله منځه وړلو کوښښ کيږي.

دغه ډول پوځي واکمن د هيواد ټولی ملکي ادارې، پوځ، د اقتصاد ملي منابع، او هر څه د پرديو په غلامي کې دخپلې بقا پخاطر استعمالوي. او ولس ته له حساب ورکولو ځان لوړ ګڼي.

اکثره دغه ډول پوځي حکومتونه په هغو هيوادونو کې رامنځته کيږي چې هلته ولسونه په اسلامي روحيه عيار وي. او اسلامي اوجهادي حرکتونه واک ته د رسيدلو په درشل کې وي. دغه شومه تجربه څو څو

ځله په تيرو تقريباً سلو کلونو کې په اسلامي هيوادونو کې تکرار شوې ده.

## د: جمهوري او انتخابي حکومتونه:

جمهوري او انتخابي حکومتونه که څه هم په سطحي نظر تر استبدادي شاهۍ، کودتايي او پوځي حکومتونو ښه ښکاري، خو په حقيقت دغه ډول حکومتونه تر ټولو خطرناک دي. او منفي آثار ئې تر ټولو دوامداره وي. او دا ځکه چې دغه حکومتونه د غربي ډيموکراسۍ، غربي جمهوري اصولو، او غربي سياسي ارزښتونو په بنا را منځته کيږي، چې د اسلامي نړۍ له ديني، ملي، خلاقي، او سياسي اصولو او ارزښتونو سره په ټکر کې دي، چې په لاندې ډول يې ليدلای شو:

١. دغربي ډيموکراسۍ پر بنسټ ولاړ انتخابات انسانانو ته دعلم، تجربې، عقل، دينداری او امانتدارۍ په معيار نه ګوري، بلکه ټولو وګړو ته په يوه سترګه ګوري. د مثال په ډول د حاکم په انتخاب او د قانون په تصويب کې د سترعالم او قانون پوه درايې او د داسې يو شخص درايې ترمنځ چې کثافات ټولوي او تشنابونه پاکوي هيڅ تفاوت نشته. يا په بل عبارت د يو شيخ الحديث يا مفتي اعظم او ديوه داسې چا درايې ترمنځ هيڅ تفاوت نشته چې په ملي سطحه په خيانت، غدارۍ، او هر ډول بداخلاقۍ پيژندل شوې وي. دواړه يوازي يوه يوه رايې استعمالولی شي، پرته لدې چې دې خبرې ته وکتل شي چې عالم او مفتي اعظم يا قاضي القضاة دهيوادد مصالحو په تشخيص کې تر يوه بد اخلاقه او فاسد انسان څومره غوره دی.

٢. د غربي ډيموکراسۍ پر بنسټ ولاړ انتخابات د هيواد هر وګړي ته دا حق ورکوي چې د رياست او يا بلې وظيفې لپاره کانديد شي. که څه هم چې هغه د هري عقيدې لرونکی وي. يا په بل عبارت لکه څنګه چې د صالحو کانديدانو پر مخ د کانديديدلو دروازه خلاصه ده، همدا ډول د فاسدو او مفسدو پر مخ هم دکانديديدلو

دروازه خلاصه ده. بلکه په اوسنۍ اسلامي نړۍ کې تقریباً نوی فیصده د مصلحو خلکو پر مخ د کاندیدیدلو دروازې تړلې دي، او هم پر اسلامي احزابو په بیلا بیلو بهانو بندیزونه لګول شوي، او کار کوونکي ئې له فعالیت څخه منع کیږي. ډیر ځلې داسې هم پیښ شوي چې اسلامي جهتونه او احزاب په انتخاباتو کې بریالي شوي خو وروسته بیا دهغوئ حکومتونه دپوځ او یا کودتاه ګانو له لارې له واکه لیرې شوي، او په مسؤلینو ئې زندانونه ډک شوي دي.

۳. دغربۍ ډیموکراسۍ پر بنسټ ولاړ حکومتونه فیصلې روا او ناروا، یا صلاح او فساد ته په کتلو سره نه کوي، بلکه هلته د اکثریت رایې ته کتل کیږي، هرڅه چې اکثریت خوښ کړل هماغه روا او صلاح ده، که څه هم چې د الله ﷻ د دین له احکامو سره سل فیصده مخالف هم وي. د مثال په ډول که اکثریت رایه ورکړي چې یو نارینه له بل نارینه سره، یا دوه ښځې یوه له بلې سره نکاح کولی شي، یا دا چې (سود) دې جائز شي، او یا دا چې ښځه دې خپل خاوند ته طلاق ورکړی شي، او هم یا دا چې دالله ﷻ شریعت ته دې د ژوند او دولت په چارو کې ځای نه وي، دا هرڅه قانون ګڼل کیږي، او دهغه مطابق فیصله کیږي.

په بل عبارت داسي ویلای شو چې غربي ډیموکراسي دا نه مني چې قانون او شریعت دې دالله ﷻ له خوا وي، بلکه هغه تشریع او تقنین خپل حق ګڼي. روا کول او ناروا کول د انسان حق ګڼي، او دحق او ناحق لپاره معیاورنه هم په خپله ټاکي.

۴. تجربې او مشاهدې دا ثابته کړې چې په اسلامي نړۍ کې ټول هغه حکومتونه چې ځانته جمهوري یا ډیموکراتیک حکومتونه وایې دغرب په لیکه روان دي. او په خپلو ولسونو ئې غربي نظامونه او قوانین تحمیل کړي دي. او هم له دغو وراد شویو قوانینو څخه د زور او زندان په مټ دفاع کوي، دالله ﷻ د دین په خلاف ئې علني

جګړه اعلان کړي، او مسلسلې هڅې کوي چې د هيواد په هيڅ قانون کې هيڅ اسلامي ماده پاتې نشي، او که پاتې هم شي دهغې د عملي کيدلو په مخ کې دومره شرايط او نور قانوني خنډونه راولاړکړي چې دهغې مادې د شتون افاديت ورختم کړي. ددغه ډول جمهوري او ډيموکراتيکو حکومتونو حکام تل دا هڅه کوي چې څرنګه غربي فرهنګ په خپلو خلکو مسلط کړي. په دې لاره کې د وينو بهولو ته هم تيار دي، دا هرڅه د خپلو ولسونو په خلاف په داسې حال کې کوي چې ځانته ملي او ولسواکه حکومتونه هم وايي، خو که دولس اکثريت ورڅخه د دين او هيواد د ملي او معنوي ارزښتونو د ساتني مطالبه وکړي نو بيا د ارتجاع، بنسټ پالنې او... په نوم ځپل کيږي.

په لنډه ويلای شو چې په اسلامي نړۍ کې دا هر څۀ ځکه کيږي چې مسلمانان د حاکميت په ډګر کې دخپلو معيارونو له لرلو څخه محروم کړای شوي دي. او هر څه ئې د پرديو په ميعار او تله تلل کيږي.

## ۲- د تعليم ډګر:

دولسونو دترقۍ او زوال راز په تعليم او تربيه کې نغښتی دی. هر هغه ولس چې د تعليم او تربيې په ډګر کې تر نورو مخکې وي، هغه په مادي پرمختګ کې هم تر نورو مخکې وي. او هر کله چې تعليم او تربيه د ولس له عقائدو، افکارو، نظرياتو، او اجتماعي فرهنګ سره همغږې وي نو بيا ئې ولسونه په منلو او خپلولو کې هيڅ مشکل او حساسيت نه ښيي. او په ډيره بيړه اوپه پراخه پيمانه خپريږي. د حالاتو او شرائطو د بدلون په نظر کې نيولو سره وده هم کوي. چې په هر پړاو کې د ولس، هيواد، او سياسي حاکميت د ارتقا سبب ګرځي.

خو که چيرته تعليم او تربيه د هيواد دخلکو د دين، اخلاقو، سياسي او اجتماعي فرهنګ ترجمانه نه وي، بلکه د بل چا لخوا او د بل چا د اهدافو د تر سره کولو لپاره دبل قوم او دين په سياسي، فکري، او اجتماعي بنسټونو ولاړه وي، او په مسلمانې ټولنې دجبر په صورت کې

ورتپل شوې وي. او ددغه ډول تعليمي نصاب او نظام په نيتجه کې را لوی شوي نسل عملاً دا ثابته کړې هم وي چې د خپل دين او عقايدو په هکله نه يوازي بی اعتنا دي، بلکه ښکاره دښمني هم ورسره کوي. دا ئې هم ثابته کړې وي چې دخپل هيواد او ولس پرګټو د بل استعماري هيواد ګټو ته ترجيح ورکوي. له خپل تاريخ ځخه کرکه لري، خو د غرب په تاريخ وياړي. او خپل خلک په زوره د کفري هيوادونو غلامۍ ته اړ باسي. نو بيا به طبيعي وي چې دولس د فکراو فرهنګ ساتونکي ددغه ډول واردو شويو او پرديو نصابونو او نظامونو په خلاف راپورته شي.

کيدای شي ځينې خلک داسې فکر وکړې چې اوسنيو حاکمو نظامونو ځکه غربي ډوله تعليمي نظام او نصاب خپل کړی چې په مادي ډګر کې پرمختګ وکړي. او د غرب دتعليم او ټکنالوژۍ له تجربې ځخه استفاده وکړي. دا خبره تر ډيره حده معقوله ده. خو پدې هکله لاندې دوه مهمې خبرې ديادولو وړ دي.

١. مونږ که ضرورت لرو نو هغه دغرب علومو او تخنيک ته دی، نه د غرب فرهنګ، اخلاقو، نظرياتو، دين او دژوند فلسفې ته. خو په اسلامي نړۍ کې وينو چې د تعليم او تربيې وزارتونه د غرب د علومو له خپلولو دهغه د فرهنګ خپلولو ته ډير ليواله دي. او په دې ډګر کې هر کال په لس ګونه ميليونه ډالره مصرفوي. که دغه درانه مصارف د غربي فرهنګ او اخلاقو د ترويج په ځای د علومو په ترويج، دلابراتوارونو په رامنځته کولو، او د تعليمي سامان آلاتو او وسائلو په اخستلو مصرفيدلای، نو پايله به ئې تر اوسنې حالت ډيره غوره وه.

٢. که دا ومنو چې د غرب د تعليمي نظام او نصاب خپلول د پرمختګ سبب ګرځي، او د پرمختګ په صورت کې به هيوادونه آزاد، او ولسونه دخپلې ارادي خاوندان شي، خو دا هم په عمل کې نه ليدل کيږي. ډير اسلامي هيوادونه ښه لوړ صنعتی معيار ته

ورسیدل، ښې درنې وسلې او پوځي تجهیزات ئې هم جوړل کړل، ځینو ئې اتوم بم هم جوړ کړ، خو بیا ئې هم نه هیواد ونو ریښتنې آزادي و لیدله، او نه ئې خلک دخپلې ملي ارادې خاوندان شول. له هر څه سره د استعماري هیوادونوپه خدمت کې پاتې دي. او دا لدې امله چې تعلیمي نصاب ئې خپلو لوستونکو ته د آزادۍ او خپلې سیاسي او ملي ازادې پیغام نه لري.

د اسلامي نړۍ دتعلیم وزارتونو په تعلیمي نصاب کې د تعلیم معیار یوازې دومره ایښی چې لوستونکي ئې یوازې حکومتي ماموریت ورباندې وکولی شي او بس. دا چې تعلیمي معیارونه دې دومره لوړوي چې په لوستونکي کې ئې ابتکاري صلاحیتونه پیداکړي، او علم دې له نظریې څخه عمل ته واړوي ډیر لږلیدل کیږي. همدا سبب دی چې سره له دې چې په اسلامي نړۍ کې په میلیونونو ځوانان په مکتبونو او پوهنتونو کې عصري علوم لکه کیمیا، فزیک، ریاضی، بیالوژي، جیولوژي، او نورعلوم زده کوي، خو تقریباً یوازې یوفیصد ئې په دغو علومو کې د عمل ډګر ته راوځي. او له پاتې نورو څخه ئې زده کړې نظریات هم بیرته هیر شي.

که په شلمه پیړۍ کې په اسلامي نړۍ کې دعصري تعلیم بهیر ته وګورو نو وینو چې څومره چې دعصري تعلیم لمن خوره شوې په هماغه اندازه ددغه ډول تعلیم لرونکي له دین، معنویت، اسلامي اخلاقو او تهذیب څخه هم لیرې شوي دي. دا سمه ده چې دعصري تعلیم په درلودونکو کې هم د اسلامي فکر ځینې ستر ستر پوهان رامنځته شوي. خو هغوئ دعصري تعلیم د پانګې او محتوی دخپلولو په نیتجه کې نه، بلکه له دغه نصاب او نظام څخه دباندې په بل چاپیریال کې د اوسیدو، اوله مسلمانو مفکرینو څخه د تاثر په نتیجه کې رامنځته شوي دي.

که په شلمه پیړۍ کې د اسلامي نړۍ سیاسي او تحریکي بهیرته وګورو، نو بیا هم وینوچې ټول سیکولر(لادینه) او یا الحاد ته مائل (چپي) احزاب او دهغوئ پلویان ټول دهمدغه عصري تعلیم دمحیط

چې له ديني روح څخه تش دی زيږنده دي. او دا هم ټولو مسلمانانو وليدل چې اسلامي نړۍ ددغو احزابو او دهغو له حاکميتونو څومره وکړيده. دهمدغه بې معنويته عصري زده کړې خاوندانو په اسلامي نړۍ کې په لکونو مسلمانان په منځنۍ آسيا، افغانستان، عربي او فريقايي هيوادونو کې پدې خاطر ووژل، او يا يې په زندانونو کې بند کړل چې هغوئ د معاصر جاهليت وارد شوي قوانين او نظامونه نه منل. او دخپلو اسلامي او ملي نواميسو او ارزښتونو په ساتلو ئې ټينګار کاوه. او له هغو څخه د دفاع په لاره کې هر ډول قربانيو ته حاضريدل.
که په يوه ژور نظر د اسلامي نړۍ تعليمي بهير ته وګورو نو وبه وينو چې د تعليم په ډګر کې هر څه دغرب له لوري په ډيزاين شوې طرحه روان دي. او نتائج ئې هم په هماغه بڼه کې راڅرګنديږي چې غرب ئې غواړي. دغه ډول تعليمي انحراف له مسلمانو پوهانو او نظامونو څخه يو هر اړخيز سنجول شوی او انقلابي علاج غواړي. خو دا چې په اسلامي نړۍ تپل شوي پردي پالونکي حاکميتونه ددغه ډول جزری علاج په مخ کې خنډ واقع کيږي نو طبيعی ده چې لومړی بايد د امت ريښتيني او مجاهد بچيان ددغه خنډ د له منځه وړلو لپاره راپورته شي، که څه هم چې دغه کار به ديوی عبوري مرحلې لپاره په اسلامي هيوادونو کې يو څه اضطراب رامنځته کړي چې د تدبير، ثبات او استقامت په نتيجه کې به په خپله له منځه ځي.

## د تقنين او نظام ډګر:

نظام او قوانين هغه څه دي چې د ټولنو او فرادو حقوق، وجايب او مسؤليتونه تعينوي. او په ټولنو کې د فساد او اضطراب مخه نيسي.
خو د نظام جوړول او دقوانينو تصويب بايد د ټولنې د دين، فرهنګ، اخلاقي او معنوي ارزښتونو، سياسي، اجتماعي، اقتصادي، تاريخي او طبيعي واقعيتونو او حقائقو په رڼا کې او د ټولنی درواني کيفيت په نظر کې نيولو سره تر سره شي، تر څو داسي نشي چې غوښتنې او

ضرورتونه يو ډول وي  او نظامونه او قوانين بل ډول رامنځته شي، چې پدې حالت به بيا د ټولنې او قوانينو تر منځ جګړه او کشمکش يوه طبيعي نتيجه وي. له يوې خوا به خلک دخپلو ديني، اخلاقي، اجتماعي، سياسي او نورو ارزښتونو د خوندي پاتې کيدلو لپاره مبارزه کوي، او له بلې خوا به نظام له خلکو څخه د قوانينو د تطبيق او رعايت دغوښتنې په لاړ کې له زوره کار اخلي.
که د پورتني فطري او طبيعي فارمول په رڼا کې د اسلامي نړۍ اوسني وضعيت ته وګورو، نو وينو چې تقريبا په ټوله اسلامي نړۍ کې دولسونو او نظامونو ترمنځ له تيرې يوې پيړۍ راهيسې ترخه او نه تماميدونکې جګړه روانه ده. ددې جګړې يوطرف هغه مسلمان ولسونه، اسلامي تحريکونه او نهضتونه دي چې انسانان د الله بنده ګان ګڼي او د هغوئ لپاره د الله ﷻ دقانون پلي کيدل د ټول بشريت دسعادت مصدر ګڼي.  هغوئ وايې چې انسانان اللهﷻ پيداکړي، او هماغه الله ﷻ د دوئ په غوښتنو، ضرورتونو، او استعدادونو تر هر چا ښه پوه دی. نو طبيعي خبره ده چې دهغه له لوري راليږل شوي قانون دې د بشريت دچارو تر ټولو ښه تنظيموونکی او سمبالوونکی وي، چې دهغه د تطبيق لپاره مسلمان ولسونه او اسلامي نهضتونه دخپل پايښت او يا له منځه تللو په جګړه اخته دي.
دجګړې بل لوری بيا هغه مستبد نظامونه، او يا هغه جابر او سيکولر نظامونه دي چې دين اود مسلمانو ټولنو غوښتنو ته په هيڅ اهميت قائل ندي. مستبدو نظامونو د غرب او غربي استعماري قوتونو د برلاسي او د اسلامي قوانينو د له منځه وړلو لپاره داسې قوانين رامنځته کړي چې د ټولنې د فطري او طبيعي غوښتنو سره هيڅ اړخ نه لګوي. خو په عين وخت کې په خپل ټول قوت او فشار سره په مسلمانو ولسونو دخپلو نظامونو حاکميت او دخپلو وضعي قوانينو تطبيق ته دوام ورکوي. چې پدې لاره کې د لکونو او يا ميليونونو مسلمانانو او

آزدي غوښونکو دوژلو لپاره هم د هماغو قوانينو لمنه نيسي چې دوئ په خپله جوړ کړي دي.
د مسلماني نړۍ دهيوادونو تقريباً ټول اساسي، حقوقي، مدني، جنايي، اقتصادي او نور قوانين له تيرې يوې يا يوې نيمې پيړۍ راهيسې په غربي بنسټونو ولاړ دي، چې د غربي هيوادونو داستعماري هڅو په نتيجه کې رامنځته شوي دي.
د اسلامي نړۍ په هيوادونو کې تقريباً ټول ملي او بين المللي تصاميم او فيصلې دهغو قوانينو او تړونونو په رڼا کې تر سره کيږي چې دغرب دمصالحو دخوندي ساتلو لپاره وضع شوي دي. د قوانينو په ډگر کې نه يوازې دا چې په سيمه ايزه توگه په هيوادونو کې غربي ډوله قوانين نافذ دي، بلکه د اسلامي هيوادونو حکومتونه په ټينگه دهغو نړيوالو او د بشري حقوقو او د ملگرو ملتو لخوا دجوړو شويو قوانينو منلو ته هم ژمن گرځولی شوي چې دهغو په وضع کې اصلاً اسلامي شريعت او د اسلامي نړۍ غوښتنو ته ځای ندی ورکړل شوی، خو غربي هيوادونو، دملگروملتو ادارې، د امنيت شوری، او نورو غربي ادارو خپلو دغو قوانينو ته داسې قداست ورښلی دی چې د قرآن او شريعت قداست ئې په مقابل کې ورته هيڅ اهميت نه لري.
دمثال په ډول که يو کار هرڅو دين حرام کړی او يا لازم کړی وي، خو چې د بشري حقوقو او يا نورو نړيوالو قوانينو سره چې اصلاً دغربيانو دمصالحو دخوندي کولو لپاره ليکل شوي مغايرت ولري هلته به هرو مرو د شريعت په پرتله دغو غربي قوانينو ته ترجيح ورکول کيږي، او دشرعي قانون د تطبيق مخنيوی به کيږي. او که چيرې کوم هيواد د شرعي قوانينو په پلي کولو اصرار وکړي، نو بيا به له ډول ډول تعزيراتو، او بنديزنو سره مخ کيږي او يا به په هغه هيواد کې د شرعي نظام د له منځه وړلو لپاره دسيسې او کودتا گانی په کار اچول کيږي.
او يابه ئې هم په مقابل کې د داخلي جگړې لپاره ځينې اقليتونه

دحقوقو دغوښتلو په بهانه راپورته کوي او له هغو څخه به د بين المللی ملاتړ لپاره هر اړخيزې هڅې په کار اچوي..

له دغه ډول غير فطري او تپل شويو قوانينو او نظامونو څخه د خلاصون په لاره کې له ډيرو اوږدو تکراري تجربو، مسلسل زغم او صبر وروسته مسلمانو مفکرينو ته دا ثابته شوه چې د خلاصون يوازې يوه لاره شته او بس. او هغه لاره د مسلطو نظامونو په خلاف د يو مسلح جهادي او انقلابي پاڅون لاره ده چې په نتيجه کې ئې بايد دغه د پرديو په لاس جوړ شوي نظامونه او دهغوئ لخوا نافذ شوي قوانين په يو مخيز ډول له منځه ولاړ شي. او په ځاى ئې پداسې حال کې اسلامي قوانين نافذ شي چې له هغو څه ددفاع په خاطر په سياسي، فکري، اجتماعي پوځي، او علمي ډگرونو کې نه ستړې کيدونکې هڅې په لار واچول شي.

## پوځي او امنيتي ډگر :

دهر هيواد پوځي او امنيتي ځواکونه ددې لپاره جوړيږي چې دهغه هيواد د اوسيدونکو د ژوند لپاره يوه ډاډمنه فضا تامين کړي، دهيواد د جغرافيايي او معنوي سرحداتو ساتنه وکړي، پر هيواد او ولس ئې ديرغل مخه ونيسي، او دضرورت په وخت کې دحق د اثبات او له هغه څخه د دفاع په لار کې په ميړانه وجنگيږي. لکه څنگه چې امنيتي ځواکونه دنده لري چې په هيواد کې دنافذو قوانينو تطبيق تضمين کړي، دهر ډول ظلم او فساد مخه ونيسي. او دلاښه امنيت د تامين لپاره مجرمين تعقيب کړي، او په ټولنه کې د مفسدينو ځالې ولټوي، او له منځه ئې يوسي. او هم د ضرورت په وخت دپوځي ځواکونو ترڅنگ د دښمن په خلاف وجنگيږي. يو ځواکمن پوځ او ويښې او فعالې امينتي قواوې بايد ترهرڅه دمخه دخپل دين، عقيدې، هيواد، ولس او فرهنگ په غوښتنو ديو منظم ايډيالوژيک نظام او نصاب په وسيله وپوهول شي، او ددغو غوښتنو د تحقق په لاره

د قربانۍ ورکولو په روحيه وروزل شي. تر څو هغوئ خپل ځان د معاش او وظيفې په بدل کې د اجير او نوکر په حيث ونه پيژني. بلکه تل دسربښندنې او قربانۍ لپاره دمجاهد په صفت تيار وي. او خپل مسؤليتونه له الله ﷻ څخه دويرې او له هغه څخه د مکافات او مجازات په روحيه سرته رسوي. د اسلام ستر پيغمبرﷺ خپل د اصحابو کرامورضی اله عنهم پوځ په همدغه روحيه روزلی او سمبال کړی ؤ. ځکه خو ئې وکولی شول چې په ډيره لږه موده کی دعربو له جزيرې اودهغې له شا او خوا سيمو څخه د کفر او شرک ټغر ورټول کړي، د نړۍ د يوې لويې امپراطورى (فارس) استبدادي حاکميت ته د پای ټکی کيږدي.

د پيغمبرﷺ د اصحابانو او تابعينو په اسلامي عقيدې سمبال لښکر نه يوازې دا چې په لنډه موده کې يو لوى ځواکمن دولت تاسيس کړ چې حدود ئې له چين او قوقاز څخه نيولی تر مراکش او اسپانيا پورې غزيدلي وو. دهند او مديترانی په سمندرونو ئې واک چليده. بلکه دنړۍ لويو لويو دولتونو به کوښښ کاوه چې دخپلي بقا لپاره د اسلامي دولت حمايت حاصل کړي.

خو که د نن ورځې د اسلامي نړۍ پوځونوته وګورو نو وبه وينو چې هر څه ئې دخپل ماضی پر خلاف، او د پرديو په معيارونو ولاړ دي چې مشخصات ئې په لاندې ډول بيانولی شو:

١. دنن ورځې د مسلمانو هيوادونو پوځونه په مجموع کې له دين او ديني ارزښتونو ډير لرې ساتل کيږي. په تربيه او نصاب کې ئې دين، عقيده، آخرت، اسلامي تاريخ او د اسلام پوځي تاريخ هيڅ ځای نه لري. هڅه کيږي چې پوځونه او امنيتي ځواکونه د سيکولريزم (بی دينی) په اصولو وروزل شي. تر څو دهغوئ په زړونوکې د اسلام لپاره هيڅ ډول مسؤليت او وفاداري ځای ونه نيسي، او کومه ورځ دخپل مستبد حاکم د قوماندې په ځای شرعي اوامرو او احکامو ته ترجيح ورنکړي.

۲. د اسلامي نړۍ پوځونه عملاً د استعماري هيوادونو د پوځي کارپوهانو او استاذانو لخوا په غربي يا روسي نصاب او معيارونو روزل کيږي. او بيا پوځي افسران د لوړو زده کړو لپاره هماغو استعماري هيوادونو ته استول کيږي چې دهغوئ په پوځي پوهنتونونو کې زده کړې وکړي او د پوځي زده کړو تر څنګ ئې له هر ډول اسلامي افکارو او انګيرنو څخه (مغزشوئې) هم تر سره شي. ډير ځله داسې پيښ شوي چې دغه ډول پوځي افسران بيا په خپلو هيوادونو کې دهماغو استعماري هيوادونو په ګټه په کودتا ګانو لاس پورې کړي او خپل ملي او قانوني نظامونه د بل چا لپاره راپرځوي، چې وروسته بيا پوځ او امنيتي ځواکونه هم په پټو سترګو دهمدغو کودتاچيانو په قومانده چليږي.

۳. د اسلامي نړۍ دهيوادونو پوځونه په بيلا بيلو تړونونو او قراردادونو په داسې ډول په غربي هيوادونو پورې تړل شوي چې دهغوئ له اجازې او مشورې پرته يو اقدام هم نشي کولای. وسلې، طيارې، پوځي سامان آلات، او لوژيستيکي وسائل د داسې قراردادنو په ترځ کې دهماغو استعماري هيوادو لخوا ورته برابريږي چې په هيڅ ډول بايد له هغو څخه د اسلام د دفاع لپاره کار وانه خستل شي.

۴. په اوسينو پوځونوکې هغه افسران لوړو رتبو ته رسيدلای شي چې په مکمل ډول ئې دين او ديني ارزښتونو ته شاکړې وي. او د استعماري قوتونو د اعتماد وړ ګرځيدلي وي. د ترفيع او ارتقا لپاره داسې شرايط او معيارونه ټاکل شوي چې دديني فکر لرونکي افسران بايد هيڅکله په هغو برابر رانشي. که چيرې يو نيم ځای کوم مسلمان افسر د خپل پوځي لياقت او وظيفوي وړتيا له امله کومې لوړې رتبې ته په رسيدلو بريالی هم شي نو هغه هم

په بيلا بيلو پلمو د قيادت له موقف څخه لري ساتل کيږي، بدناميږي او يا د کودتا او يا کوم بل تور په جرم اعداميږي.

۵. اوسني د اسلامي نړۍ عسکري ځواکونه ددې پر ځای چې له هيواد او مقدساتو څخه دفاع وکړي، او هم ئې امنيتي ځواکونه دمجرمينو او مفسدينو مخه ونيسي، او د ټولنې صالح خلک د شريرو او ظالمو خلکو له شر څخه وژغوري، په خپله دخپلو ولسونو په خلاف جنګيږي. دخپل ملت په خلاف د پرديو په غوښتنه عسکري قوت استعمالوي، بمونه پرې اوروي، زندانونه ترې ډکوي، او دخپل کور او کلي پريښودلو ته ئې مجبور وي. پوليس دمجرمينو، مفسدينو. ملي غدارانو او دفحشا د خوروونکو ترځنګ دريږي او امنيت ئې تامينوي. خو په مقابل کې د ټولنې صالح خلک، علماء، مجاهدين، ملي مخور، او اسلامي شخصيتونه ترې، وژني يې، او يا ئې دزندان تياروته غورځوي. همدغه ځواکونه خلک دوسلې او زور په مټ اسلام ته له راګرځيدلو څخه ايساروي. مسلمان داعيان، د اسلام مدافع مجاهدين نيسي او په محاربو کفري هيوادنو ئې د څو پيسو په مقابل کې خرڅوي. او دا هر څه ځکه کوي چې دوئ د بل چا په لاس، د بل چا په فکر، او نصاب، او د بل چا د اهدافولپاره روزل شوي دي.

۶. ډير ځلې وليدل شول چې د مسلمانو هيوادونو پوځيان د دفاع او مقاومت پرځای د پرديو د يرغل په وخت کې د يرغلګرو تر څنګ دريدلي. او دهغوئ تر قوماندې لاندې دخپل ملت په خلاف جنګيدلي. او د استعمار د پاتې کيدو او د وام لپاره ئې دغلامۍ په حالت کې هم قرباني ورکړې، چې ښه مثال ئې په افغانستان کې د روسانو ترځنګ دافغاني پوځ دريدل ؤ. او دا دی اوس ئې بيا

وينو چې د هماغه پوځ او مليشو پاتې شوني د امريکايي پوځونو ترڅنګ دخپل ملت په خلاف په جګړه اخته دي.

پداسې حال کې چې د مسلمانو هيوادونو د پوځونو او امنيتي ارګانونو دغه حال وي، نو طبيعي به وي چې د مسلمانو ملتونو با احساسه غيرتي، په دين او آزدۍ مين ځوانان ديو مثبت بدلون په نيت ددغه ډول پوځونو او امنيتي ارګانونو په خلاف په وسلواله مبارزه لاس پورې کوي. که څه هم چې ډيره به ورته درنه تماميږي. د تحول لپاره هغوئ ښائي بله لار ونه لري. ځکه چې سيکولر (بی دينه) پوځونه، پردي پالونکي جنرالان، او د پرديو لخوا جوړ شوي حکومتونه او حاکمان ئې دعقل او منطق خبرې ته نه غوږ ږدی، او نه ئې دخپلو استعماري بادارانو لخوا د اوريدلو اجازه لري.

## اعلامي ډګر:

اعلام په ټولنه کې دعمومي پوهاوي او اجتماعي لارښونې مسؤليت په غاړه لري. پدې معنی چې اعلام بايد د ټولنې د ټولو طبقاتو او وګړو د فکري ارتقا لپاره کار وکړي. خلک له حالاتو څخه باخبره وساتي. ددينې، ملي، اجتماعي، او فرهنګي ارزښتونود پالنې اوله هغو څخه د دفاع په لار کې افراد او ټولنيز بنسټونه او ادارې خپلو مسؤليتونو ته متوجه کړي. د حکامو او چارواکو دکړو وړو مثبته څارنه وکړي. فکري او ادبي ابتکارونو ته د ټولنې با استعداده وګړي وهڅوي. او هم د ټولنې د ترفيهي ذوق د پوره کولو لپاره داسې ادبي مواد رامنځ ته کړي چې د ټولنې په افرادو کې عواطف او احساسات د خير او لوړو انساني اهدافو په لور ځپاند کړي. او د هر ډول شر، ظلم، او ابتذال څخه دخلکو په زړونو کی کرکه د تل لپاره ژوندۍ وساتي.

په دې وخت کې اعلام دخپل تاريخ تر ټولو پرمختللې مرحلې ته رسيدلی چې عموماً په درې صنفونو ويشل کيږي.

الف: چاپي اعلام:

لکه کتابونه، مجلې، اخبارونه او داسې نور چې په پراخه پیمانه، رنګین شکل، او عصري ډیزاین چاپیږي، او تقریباً د ټولنې ټولو لوستو خلکو ته رسیږي. خو دا چې نالوستي خلک مطبوعات نشي لوستلي د هغوئ لپاره بیا صوتي د (اوریدلو) او تصویري د (لیدلو) اعلام رامنځته شوی.

ب: صوتي اعلام:

لکه راډیو، فیتې، او دې ته ورته وسایل چې په اسانۍ سره دهر چا او هرې کورنۍ غوږ ته په هر ځای کې خپل پیغام په آسانه ور رسوي. او په هغوئ تاثیر کوي. چې پدې لړ کې راډیو تر ټولو مهمه وسیله ده چې پیغام د سمې، غرونو، دښتو، ځنګلونو، وچې او سمندر هرځای ته رسوي.

ج: تصویري د (لیدلو) اعلام:

لکه تلویزون، سینما، سي ډي، کمپیوټر، ویډیوفون، سټیلایټ،تیاتر، او نور چې په ډیره مؤثره توګه او عالي کیفیت هره صحنه په ژوندي ډول دخلکو مخته ږدي. او لیدونکي مستقیماً تر تاثیر لاندې راولي.

هر څومره چې د اعلام ډولونه ډیریږي او کیفیت ئې پر مختللې کیږي په هماغه اندازه ئې د تاثیر اونفوذ ساحه پراخیږي.

اوس په نړیواله سطحه د هر ډول اعلام واکي او کنټرول د بین المللی صهیونیزم او استعماري دولتونو په لاس کې دي. او په سیمه ایزه سطحه ئې تقریبا ټول اسلامي دولتونه او دهغوئ اعلام هم تر تاثیر لاندې راوستلی دی. د نړیوال صهیونیزم په تر ټولو خطرناک کتاب (یهودي پروتو کولونه) چې د ټولې نړۍ د کنټرولو لپاره د صهیوني کارپوهانو د نظریاتو او پلانونو مجموعه ده راغلی چې:

((په نړۍ کې ټول اعلام زمونږ په منګولو کې دی. که یوه نیمه جریده چیرې آزده هم پاتې وي هغه دومره د اهمیت او تاثیر وړ نه ده. هغه به هم په یو نه یو ډول دخپلو اهدافو لپاره وکاروو)) همدا راز په بل ځای

کې لیکي: ((ددنیا ټول نشراتي ارګانونه او د فکر دخورولو ټولې اداري باید زمونږ په کنټرول کې وي. که چیرې کومه اداره زمونږ مخالفت وکړي دهغې د بندولو لپاره به له قانوني لارو چارو کار اخلو)).
همدا ډول لیکي: ((په دنیا کې به ډیرې مجلې او اخبارونه داسې وي چې په ظاهره به بیلابیل افکار او نظریات خپروي خو د پردې تر شا به ټول زمونږ د اهدافولپاره کار کوي[1]))
که په اسلامي هیوادونو کې د اعلام د ټولو ډولونو عملي او واقعي حالت ته وګورو نو وینو چې په اسلامي نړۍ کې د اسلام او مسلمانانو په ځای غرب او دغرب سیاسي، فکري، اجتماعي، اقتصادي، او ستراتیژیکو اهدافو لپاره په کار اچول شوي دي. پدې معنی چې مسلمان هیوادونه تلویزونونه لري خو ددې پرځای چې خلکو ته اسلامي او ملي ارزښتونه ورمعرفي کړي شپه او ورځ ورته د غربي ډوله ژوند د تیرولو تلقین ورکوي. هغه ډول صحنې او پروګرامونه خپروي چې مسلمان لیدونکي له اسلامي ارزښتونو، او خپل ملي او تاریخي اصالت څخه پردي کوي. او دجنس، هوس، موډ، فیشن او غربي ټولنو په تقلیدئې اخته کوي. ځوانان او پیغلې د ټولنې د اصولو او ضوابطو په خلاف د آزدۍ په نوم بغاوت ته رابولي.
همدا ډول اسلامي هیوادونه راډیوګانې لري خو خپرونې ئې د تلویزوني خپرونو په څیر د ژوند په هر اړخ کې د پردیو مطالب او محتوی خپروي. که چیرې ئې یونیم پروګرام د اسلام په اړه هم وي هغه هم نیمګړې، سطحي او صوفیانه غوندې یوشی وي چې د اسلام دحاکمیت، اسلامي نظام، او صحیحې عقیدې لپاره ورکې هیڅ نه وي. بلکه تر دې ور هاخوا ډیر ځلې ددغه ډول تش په نامه اسلامي پروګرامونو په واسطه اسلامي مفاهیمٍ تحریفوی. او یا هم هغه څه د اسلام په نوم معرفي کوي چې هغه اصلاً اسلام نه وي.

---

[1]- د دنیـا دمعاصـرو دینونـو او مـذهبونو مختصـره انسـا یکلوپیډیا ، دصهیونیزم بحث ج ۱ صـ ۲۶ – ۵۲۵

د راډيوګانو او تلويزونو نو تر څنګ د چاپي اعلام وسائل لکه اخبارونه، مجلي، نشريې، ناولونه، او داسې نور هم تقريباً پنځه نوي فيصده د داسې ټولنو او ليکوالانو لخوا خپريږي چې د غرب په افکارو او نظرياتو روزل شوي، او سيکولريزم (بی ديني) ئې دعقيدي په حيث خپل کړی وي. دغه ډله خلک دسيکولريزم داصولو پر اساس په دولت او اجتماعي ژوند کې د دين او شريعت لپاره په هيڅ رول قانع نه دي. خو په عين وخت کي بيا دغربي ډيموکراسۍ او غربي ډوله آزاديو او حقوقو لپاره تر شريعت او دين هم په ډير قداست قايل دي. او خپل فکرونه او قلمونه ئې شپه او ورځ ددې لپاره مسخر کړی دي چې څنګه دغه وارد شوي مفاهيم او ارزښتونه د مسلمانانو په ذهنونو ور وتپي.

پدې لاره کې دغه ډول خلکو ته په ټولو اسلامي مقدساتو او شرعي ارزښتونو د بريد کولو لپاره يوه خطرناکه وسله غربي نړۍ په لاس ورکړې چې د (بيان د آزادۍ) نظريه ده. هغه چې دغرب په نظرياتو او نصاب تربيه شوي فرهنګيان ورځخه د اسلامي مقدساتو په ضد کار اخلي. او کله هم چې د دوئ د فکري جناياتو په خلاف په خلکو کې کرکه او نفرت راوپاريږي نو بيا غربي نړۍ او په اسلامي هيوادونو کې د هغوئ حاکم نظامونه دغو مجرمينو ته د بيان د آزادۍ په دليل برائت ورکوي او هم دفاع ورځخه کوي.

د اعلام په ډګر کې نه يوازی داچې په اسلامي نړۍ کې د ننه فساد حاکم دي. بلکه له خارج څخه هم هره ورځ په زرګونو ساعته راډيوئي او تلويزوني خپرونې مسلمان هيوادونه تر خپل پوښښ لاندې راولي، او د اسلامي امت د بچيانو فکري مسير وربدلوي.

انټرنيټ او نوري کيبل لا نور هم د اسلامي هيوادونو په فکري او اخلاقي فضا باندې د غرب تسلط ور آسانه او هر اړخيز کړ. په اسلامي نړۍ کې نه يوازې دا چې د مسلمانانو اعلامي سنګرونه خالي دي، بلکه دهغو دډکولو لپاره مؤثر کوښښونه هم نه تر سره

کيږي چې دا بيا د اسلامي حرکتونو او نهضتونو يوه بله غميزه ده. د ميډيا او مطبوعاتو په ډګر کې مسلمان امت ځکه له بدې ورځې سره مخ دې چې پدې ډګر کې هم مسلمانان په پرديو معيارونو روان دي.

## دټولنيز ژوند او فرهنګ ډګر:

هر قوم او ملت په نړۍ کې يو ځانګړی فرهنګ او د ټولنيز ژوند يوه ځانګړې بڼه لري چې هغه ئې د اجتماعي پيژندګلوي مظهر وي، او په خاص ډول هغه ملتونه چې په کوم دين عقيده لري، هغوئ تل هڅه کوي چې ملي تشخص ئې مستقل وي، او په بل قوم او ملت کې مدغم نشي.
که ديوه ملت وګړي خپل ملي لباس، خپل فرهنګ، او خپل د پيژندګلوۍ نور مشخصات له لاسه ورکړي، هغوئ که هر څومره هوښيار، باسواده، او په مادي لحاظ پرمختګ وکړي، بيا هم يو مستقل ملت نه بلل کيږي.
مسلمانان هم د نړۍ د نورو ملتونو په منځ کې په خپل ځانګړي فرهنګ او د اجتماعي ژوند په ځانګړې بڼه پيژندل کيږي، او دهغې په وسيله له کافرو قومونو سره خپل توپير ثابتوي. او که دغه توپير له منځه ولاړ شي، بيا نو د دوئ او د کفارو تر منځ په ظاهری بڼه کې فرق نه پاتې کيږي.
د هر قوم فرهنګ، ژوند بڼه، لباس، عادتونه، رواجونه، جشنونه، او د لمانځلو خاصې ورځې دهغه قوم په دين، اعتقاداتو، اخلاقو، تاريخي اصالت، طبيعي او جغرافيوي موقعيت پورې اړه لري، چې دهغو پريښودل په حقيقت کې له خپل ځان او خپل قوم څخه د پردي کيدلو په معنی دي.
له کومې ورځې چې د اسلامي نړۍ هيوادونه د غرب تر استعمار لاندې راغلي دي، له هماغې ورځې غربيانو کوښښونه پيل کړي چې مسلمانان په اجتماعي او فرهنګي لحاظ هم په خپل ځان پسې روان

کړي. له دې کار څخه د غربي استعماري هيوادونو درې مهم هدفونه دي چې په لاندې ډول ئې يادوو:

**الف:** دمسلمانانو فرهنګ چې يو اسلامي فرهنګ دي، او په هرڅه کې ئې دسموالي او ناسموالي معيار اسلامي شريعت دي، غربيان غواړي مسلمانان له خپل فرهنګ او دټولنيز ژوند له بنې څخه پردي کړي، او د مسلمانانو د فرهنګ او ټولنې هرڅه بيرته پاتې، ارتجاعي، او د زمانې له موډه لويدلي معرفي کړي، او پرځاى ئې هغوئ غربي فرهنګ، عادتونو، رواجونو، لباس، او ژوند دود ته تشويق کړي، چې پدې کار سره به ئې د مسلمانانو او اسلام تر منځ بيلتون ايجاد کړي وي چې همدا دغرب اساسي هدف دى.

**ب:** کله چې د مسلمانانو او غربيانو اجتماعي او کلتوري ژوند يو ډول شي، او غربيان د ټولنې او کلتور په ډګر کې د مسلمانانو لپاره دماډل او نمونې په حيث معرفي شي، نو طبيعي ده چې په هغه وخت کې به د مسلمانانو له زړونو د غرب د مسيحي او يهودي ټولنې په اړه کرکه او نفرت په خپله ووځي. او هغوئ به ورته دښمنان نه، بلکه دوستان، او د تمدن استاذان ښکاري چې بايد پيروي ئې وشي، نه دا چې دښمني ورسره وشي.

پداسې حال کې چې الله تعالي هغوئ مسلمانانو ته د دښمنانو په حيث معرفي کړي دي، او دا ئې ورته ويلي چې يهود او نصاري په دوستۍ مه نيسئ الله ﷻ فرمايي: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ٥١﴾ المائدة: ٥١

**ترجمه:** ( اى مؤمنانو! يهود او نصارى په دوستۍ مه نيسۍ. د دوئ ځينې ئې د ځينې نورو دوستان دي، او که له تاسو څخه څوک دوئ په

دوستۍ ونيسي نو دي هم له هغوئ څخه دی. الله  ظالم قوم ته هدايت نه کوي).

غربيان غواړي د فرهنګ او ټولنيزو عادتونو او رواجونو له لارې مسلمانان په خپله لاره روان کړي، له همدې امله غربي ميډيا مسلمان امت د غربي  فرهنګ او ټولنې دورځو لمانځلو ته هڅوي، بلکه غربيانو خپلې ورځې، عادتونه، او مناسبات د ملل متحد، يونيسکو، او نورو غربي نړيوالو ادارو له لارې  نړيوالې ورځې ګرځولي دي  چې بايد د نړۍ ټول ملتونه ورته احترام وکړي، او وئې لمانځي. له همدې امله غرب او په سر کې ئې امريکا خپل فرهنګ ته د نړيوال فرهنګ، او خپل نظام ته  د نړيوال نظام نوم ورکوي.

له بده مرغه چې مسلمانان د فرهنګ او ټولنيز دود او دستور په ډګر کې هم په پرديو معيارونو روان دي چې دا د اسلامي امت د ذلت يو بل عامل دی.

ج: غربي هيوادونه غواړي چې په اسلامي نړۍ کې دغربي کلتور، موډ، فيشن، اوعادتونو په خپرولو په مسلمانانو کې هم د غربيانو د ژوند ضرورتونه ايجاد کړي. او ددغو (وارداتي) ضرورتونو د پوره کولو لپاره د غرب صنعت او فابريکو ته  انکشاف ورکړي، او پدې ترتيب اسلامي هيوادونه د ځان لپاره په يو نوي لوی مصرفي او استهلاکي مارکيټ تبديل کړي.

په پای کې دې نتيجې ته رسيږو چې تر څو مسلمانان د ژوند په ټولو اړخونو کې بيرته خپلو معيارونو ته راګرځيدلي نه وي، او د غرب له ړانده تقليد څخه ئې ځان ژغورلی نه وي، تر هغه پورې به مسلمانان دښې ورځې مخ ونه ويني.  ځکه چې الله تعالي د هيڅ قوم په حالت کې مثبت بدلون تر هغه وخته نه راولي چې تر څو هغه قوم په خپلو کړو وړو، عقايدو، نظرياتو، فرهنګ، عاداتو، او رواجونو کې مثبت بدلون نه وي راوستلی.

# ډیموکراسي کفر ده، که اسلام؟

په افغانستان باندې دامریکا تر یرغل وروسته چې ددغه یرغل په سیاسي او فکري، کلتور کې کومواصطلاحاتو زیات رواج موندلی یوه هم په هغو کې (ډیموکراسي) ده. ځکه چې د غرب میډیا ،په افغانستان کې په فعالیت بوخت د غرب سیاسي او اجتماعي مؤسسات،د یرغلګرو په لاس جوړ شوي حکومت، او ددغه حکومت ټول مؤسسات او فکري شخصیتونه ترهر څه زیات د ډیموکراسۍ د خپرولو او نافذولو لپاره کار کوي.

خو دا چې عام افغانان د ډیموکراسۍ په اصلي مفهوم او فلسفه باندې چا ښه ندي پوه کړي، بلکه د غربي ډیموکراسۍ د اصلي مفاهیمو د معرفي پر ځای هغه د خلکو د تیرایستلو لپاره په نورو کلماتو او اصطلاحاتو لکه آزادي، عدالت، مساوات، بشري حقوق، مدني ټولنه، قانونیت، ترقي، زغم او نورو نومونوتعبیریږي. نو ځکه خو ئې یوه برخه عام افغانان هم په اوریدلو او منلو کې څه حرج نه احساسوي. بلکه دهغې د خپراوي او تطبیق لپاره کار کول هم ورته څه د کفر او عیب خبره نه ښکاري.

د ډیموکراسۍ د اصلي مفاهیمو دوضاحت او صراحت د نشتوالي ترڅنګ چې یو بل عامل هم د ډیموکراسۍ په وړاندې د عامو مسلمانانو د نفرت او حساسیت د کمولو په کارکې مهم نقش لرلې هغه د ډیموکراسي په صنف کې د هغو ملایانو، شیخانو، پیرانو، حضر تانو، او جهادي مرتدینو شتون دی چې خپل دین، ایمان، غیرت، جهاد، او استقلال یې د څو ډالرو او څوکیو په مقابل کې په امریکایانو خرڅ کړي، خو لاتر اوسه ئې خپله بڼه بدله کړې نه ده. بلکه امریکایانو د همدې لپاره استخدام کړي تر څو د دوئ په مذهبي بڼه او روحاني وجاهت د ډیموکراسۍ کفري حقیقت له خلکو پټ وساتي.

پرون هم کمونستانو افغانانو ته کمونیزم د اجتماعي عدالت، انساني مساوات، ترقۍ او کارګري حرکت په نوم معرفي کړی ؤ. هغوئ هم په کمونیزم کې الحاد، او له دین څخه انکار، دهمدغو مفاهیمو او اصطلاحاتو تر شاه له عامو خلکو پټ ساتلی ؤ. که پرون د کمونیزم تر حاکمیت دمخه علماؤ، او د اسلامي فکر خاوندانو، خلکو ته د کمونیزم اصلي مفاهیم په پراخه پیمانه او په مؤثر ډول معرفي کړي وای نو په لس ګونو زره ځوانان او عام افغانان به یې تربیرغ لاندی نه دریدل. او نه به دخپلو پلرونو. وروڼو، او مجاهدینو په خلاف د کمونیزم په ګټه جنګیدل.

دا چې نن امریکایان او ورسره ملګري ئې په ټوله اسلامي نړۍ په زور د ډیموکراسۍ ورتپل غواړي، او پدې لارکې په زرګونو ملیارده ډالرمصرفوي، په زرګونو موسسې، په لکونو پوځیان، او په لس ګونو تپل شوي حکومتونه ئې پدې هدف په کار اچولي چې په اسلامي هیوادونو کې ډیموکراسي خوره کړي. د همدغې ډیموکراسۍ دحاکمولو لپاره ئې په عراق کې تر اوولکو زیات، او په افغانستان کې ئې تر یو لک زیات، او په صومالیا کې یې په لس ګونو زره خلک ووژل، او لااوس هم ددې لپاره دخلکو وژنه روانه ده چې ډیموکراسي حاکمه شي، او د مخنیوي عناصر او عوامل ئې له مخې لیرې شي.

د اسلام او مسلمانو په خلاف د ډیموکراسۍ او ډیموکراتانو دغه لوی جنایات باید مونږ افغانان دې ته وهڅوي چې د غرب ډیموکراسي په ژوره توګه مطالعه کړو، په فلسفه ئې ځان پوه کړو، او دا ځانته معلومه کړو چې ډیموکراسي کفر دی او که اسلام؟ ځکه چې امریکایان به لدې خاورې ځي، خو ډیموکراتان او ډیموکراتیک افکار به دلته دخپل خلف په حیث پر ځای پریږدي، او بیا به همدغه محلی ډیموکراتان د اسلام د حاکمیت د مخنیوي لپاره په بیلا بیلو ډولونو خپلو هڅو ته دوام ورکوي. او همدغه وجه چې امریکایان په مجاهدینو کې د داسې جهت په جوړلو بوخت دي چې (منځلاري) وي،

او له ډیموکراتانو سره یوځای په یوه مشترک نظام کې ګوزاره وکړي.
او هغوی ته د یوځه واک ورسپارلو دیوې معاملې په ترڅ کې دهغو مخلصومجاهدینو په مخ د حاکمیت دروازه بنده کړي چې په افغانستان کې د خالص اسلامي حکومت د قیام لپاره کار کوي. پدې بحث کې مونږ کوښښ کړی چې د ډیموکراسۍ په اړه خبره په لاندې دوو نقطو کې محدوده وڅیړو چې.
اول: ډیموکراسۍ څه شی ده؟
دوهم: ډیموکراسۍ ولې کفر ده؟
په هره نظریه او عقیده باندې تر حکم کولو دمخه دا خبره ډیره ضرروي وي چې هغه نظریه دې په هر اړخیز ډول وپژندل شي. او ټول تاریخي، فلسفي، واقعي، او عملي خواوې دې راوسپړلی شي. تر څو دپوره وضاحت په نتیجه کې، او د دلایلو په رڼا کې حکم ورباندې وکړای شي. په اصولي لحاظ داخبره هم ضروري ده چې د څیړلو او حکم لپاره باید هره نظریه په خپل اصلي شکل کې وڅیړل شي. د مثال په ډول که څوک په اسلام بحث کول غواړي نو باید په هغه اسلام ئې وکړي چې د الله ﷻ له لوري پر محمد ﷺ په مکه او مدینه کې نازل شوی، او د قرآنکریم، احادیثو، او دهغې زمانې د مسلمانانو د فهم په شکل کې محفوظ دی. نه هغه اسلام چې دغرب کوم تحقیقاتي یا تبلیغاتي اداره تدوین کړی وي. همدا ډول که د ډیموکراسۍ په اړه بحث کیږي نو باید هغه ډیموکراسي تر بحث لاندې ونیوله شي چې غرب په خپله رامنځته کړې، هلته ئې تطبیق کړې، او دهغې لپاره ئې اصول وضع کړي دي. نه هغه ډیموکراسي چې غرب ځپلو اسلامي علماؤ او مفکرینو له اسلام سره د(پیوند کارۍ) په نتیجه کې رامنځته کړې ده. که داسې نشي نو بیا هرشی په خپل اصلي حقیقت کې نه ښکاره کیږي. او دحُکم او محکوم تر منځ به اختلاف موجود وي.
ددي لپاره چې دا بحث مو په یوه وا ضح او مرتب ډول لوستونکو ته وړاندې کړي وي په دوؤ برخو ئې ویشو چې لومړۍ برخه ئې په

مختصر ډول د ډیموکراسۍ معرفي ده، او دوهمه برخه ئې په یوڅه تفصیل د اسلام له نظره د ډیموکراسۍ مناقشه او دهغي د تکفیر دلایل دي:

# لومړی برخه- د ډیموکراسۍ معرفي

## د ډیموکراسۍ تعریف:

دلغت په لحاظ د ډیموکراسۍ اشتقاق له دوو پخوانیو یوناني کلمو څخه شوی چې یوه ئې (دیموس) Demos د ولس په معنی، او بله ئې (کراتوس) Cratos دواک او حکم په معنی ده، چې ترکیبي معنی د دواړو (ولسواکي) یا د(ولس حاکمیت) دی.

په اصطلاح کې غربیانو ډیموکراسي داسې تعریف کړې:

Government of the People by the People For the People

(دخلکو حکومت دخلکو په لاس دخلکو لپاره)

حکومت یا حاکمیت دوه شکلونه لري چې یو ئې د قوانینو او نظام شکل دی. او بل ئې تنفیذي شکل دی. یعنی په ډیموکراسۍ کې به د ژوند د هر اړخ او دهرې مسالې دحل لپاره قوانین هم دخلکو لخوا وضع کیږي، او حاکم به هم دخلکو لخوا ټاکل کیږي، او فیصله به هم د خلکو لخوا کیږي. (دین) (وحې) یا (آسماني رسالت) ته په ډیموکراسۍ کې ځای نشته.

د پورتنیو لغوي او اصطلاحي تعریفونو له حاصل څخه دډیموکراسۍ جامع تعریف په لاندې شکل په لاس راځي او هغه دا چې:

(ډیموکراسي د ژوند لپاره له داسې یوه سیاسي، اجتماعي او فکري په دین نه ولاړ نظام څخه عبارت ده چې حاکمیت، تشریع، او فیصله ورکښې دخلکو لخوا د خلکو په لاس او دخلکو لپاره د اکثریت په شکل کې له هر دیني قید او بند څخه پرته ترسره کیږي).

## د ډیموکراسۍ فکري بنسټ

معاصره ډیموکراسي په غرب کې زیږیدلې ده. دغرب په هکله دا خبره یو حقیقت دي چې غربیانو تر اوسه پورې هیڅ الهي دین په سالمه بڼه کې ندی لیدلی. یهودیت یوازې دبني اسرائیلو دین ؤ، او هغوئ نه غوښتل چې نور خلک خپل دین ته دعوت کړي. مسیحیت هم هغه وخت غرب ته ورسید چې د (پاول) په لاس تحریف شوی ؤ. او د توحید ځای ورکې (تثلیث) نیولی ؤ. تحریف شوي مسحیت له رب سره د انسان د رابطی لپاره یو څه لارښوونې درلودې، خو د انسانانو په منځ کې ئې د تعامل لپاره (شریعت) او (قوانین) نه درلودل. په غرب کې خلکو د ژوند سیاسي، اجتماعي، او اقتصادي چارې د پخوانیو (روماني) او (یوناني) قوانینو او عرفونو مطابق عیارې کړې وې چې دې کار له ډیر پخوا راهیسې دغربي ټولنې په ذهن کې دا قناعت ایجاد کړی ؤ چې دین د ژوند په چارو کې د خل او غرض نه لري.

د ژوند او ټولنې په چارو کې د مسیحي دین د قوانینو د نشتوالي دغه تشه بادشاهانو به، ملکانو، او سرمایه دارانو له خپل لوري د قوانینو په وضع کولو ډکه کړې وه. هغوئ داسې قوانین وضع کړي وو چې د غربي ټولنې اکثریت ئې دیوځو بادشاهانو، او فیوډالانو، په خدمت کې په بیلابیلو نومونو او شکلونو مسخر کړی ؤ. بادشاهانو به په خلکو باندې حاکمیت د الله له طرفه خپل حق ګڼه، نه دا چې دملت له طرفه دکوم تړون یا بیعت په نتیجه کې امانت ورسپارل شوی وي. کلیسا هم که له یوې خوا د ژوند د چارو لپاره قانون او شریعت نه درلود، له بل لوري ئې علم، دین، تفکر او عقل هم په خپل احتکار کې راوستلی ؤ.

د فکري استبداد داسې مرحلې ته رسیدلې وه چې هر چا به چې کومه داسې نظریه وړاندې کړه چې د کلیسا به خوښه نه وه، نو فوراً به هغه شخص کافر او د الله ﷻ له رحمته محروم ګڼل کیده. او له دین څخه به د بغاوت په جرم محکومیده.

د کلیسا له لوري د دین تحریف شوي او نا معقول تصور، او د بادشاهانو جابرانه نظام په اروپا کې خلک له دین، رسالت، او ملوکیت

ځخه متنفر کړل، او د اروپا د نوي عصر (دتنویردعصر) دمفکرینو پرمخ ئې د الحاد(له دین ځخه د انکار) دروازه خلاصه کړه. هغوئ هم د (دین) پر ځای په مطلق ډول دخلکو اراده د قوانینو مصدر وګرځوله، او دحق او ناحق د پیژندلو معیار ئې د (وحې) پرځای (عقل) وګاڼه.
ددین په اړه اروپایان په دوؤ ډلو وویشل شول. یوې ډلې له دین، رسالت، او روحانیت ځخه سراسر انکار وکړ چې دا نظریه بیا وروسته په کمونیزم کې راڅرګنده شوه. اوبلې ډلې په دین باندې یوازې د افرادو په (شخصی ضمیر) کې اعتراف وکړ او بس. پدې معنی چې دین د فرد او الله ﷻ تر منځ رابطه ده، خو د ژوند له چارو سره ئې هیڅ کار نشته. انسان د خپل ژوند لپاره دقوانینو په جوړولو کې مطلقه آزادي لري. چې دغه نظریه د (سیکولریزم) یا له دین ځخه د ژوند او دولت د بیلتون په نامه وپیژندل شوه. او همدغه نظریه د ډیموکراسۍ لپاره فکري بنسټ تشکیلوي. د معاصرې ډیموکراسۍ مشهورو فیلسوفانو هر یو (توماس هوبز) (جان لاک) ا و (جان جاک روسو) د ډیموکراسۍ لپاره دغه بنسټ د (ټولنیز تړون) د فلسفې په شکل کې وړاندې کړ چې خلاصه ئې په لاندې ډول ده:
دغه فیلسوفان وایې: (انسانان په پخوا زمانه کې همداسې په فطري ژوند کې اوسیدل. ژوند ئې نامنظم ؤ، قانون او دولت ئې نه درلود چې د دوئ چارې منظمې کړي. وروسته بیا خلکو قانون او حکومت ته ضرورت احساس کړ، او د نظام او قانون دجوړولو لپاره سره راټول شول، او په خپل منځ کې ئې یو (ټولنیز تړون Social Contac رامنځته کړ چې وروسته ئې بیا دحکومت او قانون شکل غوره کړ. چې په دې اساس د قانون او حکومت تصور دخلکو له ارادې ځخه رامنځته شو.)
پورتنۍ نظریه له الله ﷻ او دهغه له رسولانو، او الهي ادیانو ځخه په انکار ولاړه ده. په دې معنی چې – نعوذبالله– نه الله ﷻ شته، او نه ئې خلک پیداکړي، او نه ئې نظام، قوانین او رسولان ورته رالیږلي دي. او

يا دا چې الله ﷻ ئې خالق دی، خو له پيداکولو پرته ئې نور هيڅ ندي کړي. نه ئې رسولان راليږلي، او نه ئې اديان نازل کړي، او نه ئې انسانانو ته د ژوند د چارو تنظيمول ورښودلي دي. ځکه چې که چيرې دا هر څه شوي وای نو بيا به د ډيموکراسۍ د فيلسوفانو Social Contac (ټولنيز تړون) ته څه ضرورت ؤ؟

## د ډيموکراسۍ اصول

غربي ډيموکراسي په دوو بنسټيزو اصولو ولاړه ده چې دهغو دواړو او يا يوه د نشتوالي په صورت کې يو نظام يا يوه ټولنه ډيموکراتيکه نشي بلل کيدای. هغه اصلونه دا دي:

١ – د سيادت (حاکميت) اصل.

٢ – د حقوقو او آزاديو اصل.

پورتنی دواړه اصول هر يو خپل خصوصيات او مشخصات لري چې په لنډ ډول ئې په لاندې کرښو کې يادونه کوو.

# اول– د سيادت (اعلی حاکميت) اصل

**د سيادت تعريف:**

سيادت يا اعلی حاکميت هغه مطلقه اعلی سلطه ده چې يوازې هغې ته په اشياؤ او افعالو دحکم د صادرولو حق حاصل وي.

يو بل تعريف وايي: سيادت د امر او نهې هغه مطلقه عليا سلطه ده چې نه د هغې په څنګ کې ورسره مساوي، او نه ترهغې پورته بله سلطه شته.

د سيادت (حاکميت ) اصل په ډيموکراسۍ کې په لاندې دوو شقونو ولاړ دی.

**الف:** دتقنين يا (تشريع) شق: پدې معنی چې په کوم قانون يا شريعت به د خلکو ترمنځ فيصله کيږي؟

ب: د تنفيذشق: پدې معنی چې د قوانينو نافذوونکی (حاکم) به څوک وي؟ او څنګه به حاکميت ته رسيږي؟
په ډيموکراسۍ کې د تقنين (تشريع) د شق خصوصيتونه په لاندې ډول دي:

١. سيادت (اعلی حاکميت) به په مطلق ډول د (ولس) وي. يعنې هغه حاکميت به چې تر هغه پورته بل هيڅ حاکميت وجود ور نه لري دولس حق وي، نه د الله حق.
٢. د ولس اراده مقدسه ده. يعنې هيڅ اراده دولس اراده نشي ردولی، او نه وربانديې اعتراض کولی شي. هر څه چې ولس غواړي هماغه حق دی.
٣. د ولس د (اکثريت رايه) دحق د پيژندلو ربښتينی معيار دی، په دې معنی چې ټول ولس کيدی شي چې په يوه خبره متفق نه وي، خو که اکثريت په يوه خبره اتفاق وکړي نو داکثريت دغه اتفاق دحق ميعار دی.
۴. عقل د قوانينو د جوړولو يواځينی مصدر دی. يعنې د قوانينو په جوړولو او د احکامو په صادرولو کې (وحې) هيڅ نقش نه لري. هرڅه ته چې عقل ښه وايې هغه حق، او هر څه چې عقل بد وګڼي هغه باطل دي.

دا چې ټول ولس په يوه وخت حاکم کيدای نشي، نو ولس بايد يوشمير خلک د حاکميت او قانون جوړونې لپاره دانتخاباتو له لارې حکومت او پارلمان ته معرفي کړي چې د ولس په وکالت قوانين جوړ کړي او حکومت وچلوي. چې په دې ډول عمومي انتخابات دحکومت د چلوونکو، او د قانون د جوړوونکو د ټاکنې لپاره د حاکميت دوهم يعنې د (تنفيذ) شق تشکيلوي.

# په ډیموکراسۍ کې د تنفیذي قوې (حکومت) خصوصیات

١. حکومت به دخلکو د اکثریت لخوا د عامو انتخاباتو له لارې منځته راځي.
٢. انتخابات به د داسې قانون په اساس کیږي چې (دین) ورکښې هیڅ نقش نه لري.
٣. په انتخاباتو کې د هیواد ټول خلک یو ډول سیاسي حقوق لري. یعنی هر څوک د هردین او مذهب خلک ټول سره یو ډول سیاسي حقوق لري. دین د هغوئ ترمنځ د تفاضل (برترۍ) عامل نشي ګرځیدی. د مسلمان او کافر، ښځې یا نر معیار په انتخاباتو کې ځای نه لري. ټول د رایې ورکولو او کاندید یدلو مساوي حق لري.
۴. په انتخاباتو کې عقل، علم، تجربه، تقوی او صالحیت هیڅ ارزښت نه لري. په دې معنی چې د بیسواده او یوه عالم رایه سره مساوي ګڼل کیږي. همدا ډول د یو نهایت زیرک او هوښیار انسان او دیو نهایت غبي او احمق انسان د رایو تر منځ هیڅ فرق نشته. همدارنګه دیو تجربه لرونکي پاخه ملي او سیاسي شخص د رایې او د هغه چا د رایې ترمنځ چې په هیڅ نه پوهیږي او یوازی یو انسان دی هیڅ توپیر نشته. په انتخاباتو کې یو صالح، متقي، باعفته، او محسن انسان له یوه رشوت خور، زاني، قاتل، لوطي، غله او حرامي انسان سره بالکل یو ډول مساوي سیاسي حق لري.
۵. د انتخاباتو لپاره باید کاندیدان ښه ډیر لګښتونه وکوي، په میاشتو او کلونو تبلیغاتي کمپاین وچلوي، تر څو خلک د خپلو ځانونو په ګټه رایې ورکولو ته تشویق کړي.
۶. د انتخاباتو په نتیجه کې چې د هرې نظرې خلک حاکمیت ته ورسیږي نور ټول خلک به ئې حکومت مني، او په خلاف به ئې نه

راپورته کیږي. خو د مخالف حزب په شکل کې دحکومت په ځینو اقداماتو اعتراض کولی شي.

## دویم- دحقوقو او آزادیو اصل

په ډیموکراسۍ کې د حاکمیت تر اصله وروسته بل اصل د حقوقو او آزادیو اصل دی چې د ډیموکراسۍ دوهم اصل ګڼل کیږي. ددغه اصل له تطبیقیدلو پرته ډیموکراسي هیڅ معنی نه لري. یعنی ټول هغه حکومتونه چې غواړي د ډیموکراتیکو یا جمهوري حکومتونو په حیث و پیژندل شي باید په حتمي ډول د ډیموکراسۍ په ټولو حقوقو رسمي اعتراف وکړي، او د ډیموکراسۍ ټولې آزادۍ تامین کړي، او که دا کار ونه کړي نو هغه جمهوري حکومتونه نه ګڼل کیږي.

## د ډیموکراسۍ حقوق او آزادۍ په لاندې ډول دي:

۱. د عقیدې آزادي:

په ډیموکراسۍ کې عقیده یو مسؤلیت او مکلفیت نه، بلکه یو اختیاري امر دی. پدې معنی چې دا ضروري نه ده چې انسان دې حتماً مسلمان واوسي، او یوازې د الله ﷻ عبادت دې وکړي چې دده خالق او مالک دی. بلکه په ډیموکراسۍ کې انسان د عقیدې په مجال کې آزاد دی. خوښه ئې چې کوم دین مني، او که له سره یو دین هم نه مني. همدا ډول انسان دا حق لري چې یو دین پریږدي او بل دین ته واوړي. مثلاً نن مسلمان وي، سبا ته مسیحي شي، بل سبا ته هندو شي، بله ورځ یهودي، کمونست، بودائي، او یا دکوم بل دین منونکی شي. هیڅ قانون او هیڅ مرجع له ده سره د دین د بد لولو دمحاسبې حق نه لري. ځکه چې دا په ډیموکراسۍ کې دهغه خپل شخصي حق دی. ټولنه او

نظام دهغه له عقیدې سره هیڅ کار نه لري. او که کوم جهت له ده څخه دغه حق سلبوي، ډیموکراسي باید په خپل ټول قوت دهغه تر څنګ ودریږي، او ددغه حق ساتنه ئې وکړي.

## ۲- د نظر او رأیې آزادي:

په ډیموکراسۍ کې د نظر یا رایې د آزادۍ حق هم یو له هغو حقوقو څخه دی چې هیڅ قید او بند نه مني. پدې معنی چې انسان په هر څه کې خپله رایه ورکولی شي. پرته لدې چې وکتل شي چې د دین احکام او قوانین د (وحیې) پر بنسټ ولاړ دي او هغه له انسان څخه پوره تسلیمي غواړي. او د انسان رایې ته په هغو کې ځای نشته. خو په ډیموکراسۍ کې د انسانانو د رایې قداست د(وحیې) او دین تر قداسته پورته دی. ځکه خو په ډیموکراسۍ کې دیني احکام هم د خلکو د رائې پر اساس بدلیدلی شي.

## ۳ – شخصي آزادي:

په ډیموکراسۍ کې بله آزادي شخصي آزادي ده. یعنې انسان د خپل شخص په اړه مکمل آزاد دی. هغه په خپل ځان هر څه کولی شي. هغه هر ډول سلوک او اخلاق اختیارولی شي، پرته لدې چې هغه سلوک او اخلاق دې دروا او ناروا په تله و تلل شي. په ډیموکراسۍ کې زنا، لواطت، او دې ته ورته نور کارونه د انسان خپل شخصي حق دی، تر هغه پورې چې په خپله رضا وي، او اجبار ورکې نه وي راغلی.

## ۴ – د بیان او تبلیغ آزادي:

په ډیموکراسۍ کې د بیان آزادي یو مسلم حق دی. هر څوک د هرڅه د بیانولو حق لري. بل هیڅوک د نظر له بیانولو څخه نه شي منع کولی. که څه هم د نظر دغه بیان د الله، دین، کوم پیغمبر، یا عقیدې په هکله وي. همدغه دلیل د اسلام ستر پیغمبرمحمد ﷺ ته د اروپا لخوا د کارتونونو د سپکاوي په عمل کې د جواز لپاره هم وښودل شو.

**۵ – د مسکن حق:**

ډیموکراسي هر انسان ته حق ورکوي چې په هر ځای کې ئې زړه وغواړي واوسي، او په هغه ځای کې دې دهغه هویت او شخصیت ته احترام وکړای شي. یعنی که یو کافر وغواړی په مکه کې د حرم ترځنګ و اوسي باید منع نه کړای شي.

**۶- د ملکیت حق:**

په ډیموکراسۍ کې انسان د هر شي د ملکیت دلرلو، اوله هرې لارې د مال د ګټلو، او په هره لاره کې د هغه د مصرفولو حق لري. ډیموکراسي د مال په ګټلو او یا مصرفولو کې هیڅ خارجی دیني او یا بل عامل ته د دخالت اجازه نه ورکوي. بلکه دا د انسان حق دی چې په هره طریقه مال ګټلی او یا مصرفولی شي وئې ګټي او مصرف یې کړي.

**۷ – د کار حق او آزادي:**

په ډیموکراسۍ کې انسان د هر ډوول کار د انتخابولو حق لري. په کارونو کې حلال یا حرام نشته.

**۸- د زده کړې او علم حق:**

په ډیموکراسۍ کې انسان د هر ډول علم د زده کړې پوره آزدی او حق لري که څه هم چې هغه د جادو علم وي.

**۹- په هرڅه کې دنارینه ؤ او ښځینه ؤ د مساوات حق:**

په ډیموکراسۍ کې ښځه او نر دواړه یوډول حقوق او آزادۍ لري. هر څه چې نارینه کولی شي، ښځې هم باید له هغو څخه منع نه کړای شي. نارینه په ښځو د قیمومیت او واکمنۍ حق نه لري. بلکه دواړه یو دبل په وړاندې مساوي متقابل حقوق لري.

د دغو حقوقو تر څنګ یو لړ نور حقوق هم د ډیموکراسۍ له مهمو حقوقو څخه ګڼل کیږي چې په هغو کې د (سیاسي پلورالیزم) او (دیني پلورالیزم) حقوق او آزادۍ هم راځي.

## سیاسي پلورا لیزم

سیاسي پلورالیزم دسیاسي احزابو د تعدد په معنی دی. یعنې په ډیموکراتیکه ټولنه کې خلک بیلا بیل سیاسي احزاب جوړولی شي. دغه سیاسي احزاب د بیلا بیلو قومي او ایډیالوژیکو اجنډاؤ او نظریاتو د پرمخ بیولو لپاره تاسیسیږي، او بیا واک ته د رسیدلو لپاره د رقابت له مختلفو وسایلو او طریقو څخه کار اخلي. ډیر ځله داسې پیښیږي چې قدرتمن استعماري دولتونه په نورو دولتونو کې خپلو اهدافو ته د رسیدلو لپاره احزاب جوړوي او بیا ئې د بیلا بیلو طریقو له لارې قدرت ته رسوي. تر څو دهغو له لارې آزاد هیوادونه خپلې مستعمرې وګرځوي او خپل مصالح ورکښې تامین کړي.

## دینی پلورا لیزم

په ډیموکراسۍ کې که څه هم چې دین د ټولنې او دولت په چارو کې څه رول نه لري خو دا چې ادیانو ته دخلکو فطري او معنوي ضرورت دی، او دغه تشه له دین پرته په بل څه نه ډکیږي، نو ځکه ډیموکراسي هم د عقیدې او عبادت تر حده د انسان په شخصي ژوند کې دین ته اجازه ورکوي، او په همدغو حدودو کې دیني احزاب هم فعالیت کولی شي. خو پدې شرط چې په سیاسي او اجتماعي چاروکې به ډیموکراسي مني. په همدې اساس هر څوک هر چیرې دخپل دین او عقیدې د خپرولو حق لري. دمثال په ډول لکه څنګه چې مسلمان تبلیغیان هر چیرې د تبلیغ حق لري همدا ډول باید د هر دین او مذهب خلکو ته دا حق حاصل وي چې په مسلمانو ټولنو کې دخپل دین دخپراوي لپاره آزادانه کار وکړي اوڅوک ئې مخه ونه نیسی. او که یې مخه نیول کیږي باید د نړۍ ډیموکراتیک حکومتونه ئې په خلاف اقدام وکړي.

ددې لپاره چې د ډیموکراسۍ حقوق او آزادۍ چې دغرب د مسیحي ټولنې د روحي، اجتماعي، سیاسي او استعماري مقاصدو په نظر کې نیولو سره وضع شوي دي په ټوله نړۍ د یوه قانون په شکل کې په حتمي ډول تطبیق شي، دغه حقوق او آزادۍ د بشر دحقوقو د نړیوال قانون په شکل کې راوړل شوي، او په ملګرو ملتوکې په شاملو هیوادونو په حتمي شکل منل شوي چې سر غړاوی ورڅخه په هیڅ صورت جائز نه ګڼل کیږي. لکه چې د بشر د حقوقو د قانون د نهه ویشتمې (۲۹) مادې په (ج) جزء کې چې په صراحت سره لیکل شوي دي: (**په هیڅ صورت کې روا نه ده چې له دغو حقوقو سره پداسې ډول تعامل وشي چې د ملګرو ملتو له اصولو او اهدافو سره تضاد ولري**). یعنی دغه حقوق او آزادۍ په هماغه شکل او حیثیت تطبیقوي چې ملګري ملتونه ئې غواړي. هیڅوک هغه په بله بڼه نشي تعبیرولی دغه حکم دهغو خلکو بهانه له منځه وړي چې وایي مونږ د بشر حقوق په اسلامي بڼه تعبیر وو.

# دوهمه برخه – د ډیموکراسۍ مناقشه

## ډیموکراسي ولې کفر دی؟

ډیموکراسي یو نوی کفري دین دی چې خپل شریعت، خپل قوانین، خپل اخلاق او د ژوند لپاره یو خپل ځانګړی تصور لري. ددغه نوي دین فیلسوفان او پیروان غواړي چې د ډیموکراسۍ دغه نوی (دین) دې تر اسلام، یهودیت، مسیحیت، هندویزم، بودائیت، او بل هر دین مقدم او محترم وی. او بل یو دین دې هم د ډیموکراسۍ په اندازه قداست ونه لري. ټول انسانان دې په جبري شکل ددغه نوي دین منلو ته اړ کړای شي. او که څوک ئې نه مني نو هغوئ د انسانیت د درجې مستحق هم نه دي. د مثال په ډول: امریکا یو مسیحي هیواد دی، که هلته څوک مسیحیت نه مني، او یا له مسیحیت څخه بل دین ته اوړي، حکومت

ورسره هيڅ مشکل نه لري. خو که يو څوک په امريکا کې ډيموکراسي نه مني هغه په ټوله امريکا کې د اوسيدلو حق نه لري. همدا ډول که څوک په برتانيه، فرانسه، جرمني، ايټاليا، او حتی په استراليا کې چې ټول مسيحي هيوادونه دي مسيحيت ونه مني له هيڅ مشکل سره نه مخ کيږي. خو که ډيموکراسي ونه مني هغه هلته د اوسيدو حق نه لري.
همداسې که يو څوک په اسرائيل کې يهوديت نه مني اوسيدلی شي، خو که ډيموکراسي نه مني نشي اوسيدلی. همدغه حکم نن ورځ د دنيا په ټولو هيوادونو کې حاکم دی. ان تر دې چې که څوک په اسلامي هيوادونو کې چې نظامونه ئې ددغه نوي دين منونکي دي اسلام نه مني، او يا مرتد کيږي، هيڅ مشکل نه لري. خو که څوک ډيموکراسي نه مني هغه له هر ډول انساني حقوقو محروميږي. او حتی د ژوند حق نه ورکول کيږي.
پدي وروستيو کې په افغانستان کې وليدل شول چې که حکومت هم په کوم قانون کې کومه اسلامي ماده راولي که څه هم چې هغه دشخصي احوالو په قانون پورې اړه ولري، او د ډيموکراسۍ د پروسيجر مطابق له ټولو قانوني مرحلو هم تيره شوې وي، بيا ئې هم ټول غرب په يوه غږ په خلاف راپورته کيږي، او د هغې د بدلون لپاره په حکومت هر اړخيز فشارونه راوړي تر څو هغه يوه اسلامي ماده هم د ډيموکراسۍ د دين په مقابل کې واقع نشي.
همدا ډول وليدل شول که په پاکستان کې پارلمان او حکومت هم ديوې سيمې لپاره په ډيموکراتيکه طريقه داسې يو قانون ومنې چې اسلامي مواد ورکښې رعايت شوي وي، نو ټول غرب ئې په خلاف دريږي او حکومت له خپلې فيصلې څخه ګرځيدلو ته اړ کوي. پدې دليل چې منل شوی قانون د ډيموکراسۍ له نوي دين سره مخالفت لري.
په اوسنۍ زمانه کې چې غرب د ډيموکراسۍ د نوي بشري دين رامنځته کوونکی او منونکی دی په مليااردونو ډالره، په لکونو پوځيان، او په لسګونو زره ادراې، او مؤسسې ئې په نړۍ کې د

ډیموکراسۍ د دین دخپرولو لپاره په کار اچولې دي. او هر هغه ملت چې ددغه نوي دین منلو ته نه تیاریږي، دهغه د ځپلو لپاره د ډیموکراسۍ له دین څخه د هغه په خلاف دجګړې جواز برابروی، او له ملګروملتو څخه دهغه د وژلو رسمي او قانوني فتوی ترلاسه کوي.
دا چې ولې ډیموکراسي کفر دی؟ شرعي دلایل ئې په لاندې ډول بیانوو.
او ددې لپاره چې د لوستونکو لپاره اسانه وي په هماغه ترتیب مو چې د ډیموکراسي معرفي ورته وړاندې کړې ده، د تکفیر دلایل یې هم په هماغه ترتیب بیانوو:

## د ډیموکراسۍ دتکفیر د لائل

### ۱ – د سیادت یا (اعلی حاکمیت) موضوع:

لکه څنګه چې مخکې د ډیموکراسۍ په معرفي کې یادونه وشوه چې (سیادت) یعنې اعلی حاکمیت په ډیموکراسۍ کې د ولس حق ګڼلی کیږي چې د اکثریت په شکل کې به حکمراني کوي. خو په اسلام کې دغه حق یوازې او یوازې د الله ﷻ دی. اسلام وایي چې بندګان ټول د الله ﷻ مخلوق دي. یواځې هغه پیداکړي، او هرڅه ورته هماغه یو الله پیدا کړي دي. او همدغه الله ﷻ د بشر په ټولو ضرورتونو او مصالحو ښه پوه دی. او دهمدغې ازلي پوهې له مخې ئې په هره زمانه کې هر قوم ته دهغوئ دحال او وضعیت موافق شریعت او قانون نازل کړی چې باید مطلق اطاعت ئې وشي. او دهغه د حاکمیت په مقابل کې هیڅوک د حاکم په حیث، او هیڅ قانون د منلو وړ ونه بلل شي. په همدې اساس ټول مسلمانان مکلف دي چې د الله ﷻ نازل شوی قانون ومني. او د اختلاف او منازعې په صورت کې یوازې او یوازې دهمده قانون ته رجوع وکړي. نه دا چې له خپل لوري دخپلې پوهې او عقل په بنا قوانین جوړ کړي او بیا په هغو فیصله وکړي.

په اسلام کې قطعي الثبوت دلايل له هغه چا څخه ايمان نفې کوي چې د الله له قانون پرته د بل چا په قانون فيصله کوي. او د الله ﷻ په مقابل کې د بل چا حاکميت مني. او يا دا چې د الله ﷻ په قانون فيصله کوي خو له زړه نه وربانديې راضي نه وي. لاندې صريح آيتونه ددې خبرې قطعي دلايل دي چې حاکميت به يواځې او يوازې د الله ﷻ وي. او قانون به يوازې دهغه منل کيږي.

١- ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡۖ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلًا ٥٩ ﴾ النساء: ٥٩

**ترجمه:** (اى مؤمنانو: د الله، رسول، او دهغو کسانو اطاعت وکړئ چې له تاسو څخه د امر اوحکم خاوندان دي. او که چيرې مو په کوم شي کې شخړه راغله نو الله او رسول (قرآن اوسنت) ته ئې راجع کړئ که تاسی په الله او د آخرت په ورځ ايمان لرونکي ياست. دا کار غوره او پای ئې ډير ښه دی). دا آيت په صراحت حکم کوي چې د منازعې په وخت کې دې د فيصلې مرجع يوازې د الله ﷻ او درسول ﷺ وينا وي.

٢- ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيۡنَهُمۡ ثُمَّ لَا يَجِدُواْ فِيٓ أَنفُسِهِمۡ حَرَجٗا مِّمَّا قَضَيۡتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسۡلِيمٗا ٦٥ ﴾ النساء: ٦٥

**ترجمه:** (قسم دی په رب ستا چې نه مؤمنان کيږي دوئ تر هغه پورې چې حَکَمْ (فيصله کوونکې) کړي تا په هغو شخړو کې چې پيښې شوي وي د دوئ په منځ کې، او بيا ونه مومي دوئ په خپلو زړونو کې ناراضي ستا له فيصلې، او ومني دوئ ستا خبره په منلو سره (بې له جګړې په خوښۍ سره). پدې آيت هم له هغه چا څخه د ايمان نفي شوې

چې د پیغمبرﷺ په دین فیصله نه کوي، او یا ئې په فیصله له زړه څخه راضي نه وي.

۳- ﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ لِتَحۡكُمَ بَيۡنَ ٱلنَّاسِ بِمَآ أَرَىٰكَ ٱللَّهُۚ وَلَا تَكُن لِّلۡخَآئِنِينَ خَصِيمٗا ١٠٥ ﴾ النساء: ۱۰۵

**ترجمه:** (بیشکه مونږ درلیږلی تا ته قرآن (ای محمده!) په حقه چې فیصله وکړې دخلکو ترمنځ د الله دلاړ ښوونو په رڼاکې، او مه کیږه جګړه کوونکی دخاینو خلکو لپاره). پدې آیت کې هم د قرآن د نازولو هدف دا ښودلی شوی چې رسول الله ﷺ دې دهغه پر اساس دخلکو ترمنځ فیصلې وکړي، او د خاینانو پلوی دې نه کوي.

۴- ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٖ وَلَا مُؤۡمِنَةٍ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمۡرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلۡخِيَرَةُ مِنۡ أَمۡرِهِمۡۗ وَمَن يَعۡصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلٗا مُّبِينٗا ٣٦ ﴾ الأحزاب: ۳۶

**ترجمه:** (او نه ده روا هیڅ مؤمن سړي او مؤمنې ښځې ته چې کله فیصله وکړي الله ﷻ او رسول ئې په یو کار کې چې وي دې دوئ ته اختیار په خپل کار کې، او هر څوک چې نافرماني کوي د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ په تحقیق سره ګمراه شو په ګمراهۍ ښکاره). دا آیت مؤمنان لدې منع کوي چې د الله ﷻ او د رسو ل الله ﷺ دحکم په مقابل کې دې ځانته یو بل دریځ و نیسي.

۵- ﴿ وَأَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ مُصَدِّقٗا لِّمَا بَيۡنَ يَدَيۡهِ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ وَمُهَيۡمِنًا عَلَيۡهِۖ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُۖ وَلَا تَتَّبِعۡ

أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ ٱلْحَقِّ ۚ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ۚ ﴾ المائدة: ۴۸

**ترجمه:** (او نازل کړی مودی تا ته (ای محمده) قرآن په حقه سره چې تصدیق کوونکی دی دهغه کتاب چې تر ده دمخه ؤ. او ساتونکی دی دهغه د مضامنیو، نو فیصله کوه د دوئ ترمنځ په هغه کتاب چې لیږلی ئې دی تا ته، او مه کوه متابعت د دوئ دهیلو او آرزوګانو (اومه اوړه) له هغه څخه چې راغلی دی تا ته له حق څخه، مونږ تاسې هر امت ته جلا جلا شریعت او لار ټاکلي ده). پدي آیت کې هم رسول الله ﷺ ته امر شوي چې دخلکو تر منځ دې د هغه کتاب په اساس فیصله وکړي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ورته نازل کړي. او دخلکو په خوښو پسې لاړ نه شي.

۶- ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ رَأَيْتَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ﴿٦١﴾ ﴾ النساء: ۶۰- ۶۱

**ترجمه:** (آیا ته نه ګورې هغه خلک (ای محمده!) چې ګومان کوي چې په هغه کتاب ئې ایمان راوړی چې نازل شوی دی تا ته او هم په هغه چې نازل شوی ؤ تر تا دمخه، غواړی د فیصلې لپاره وړاندې شي طاغوت (کعب بن اشرف یهودي) ته پداسې حال کې چې دوئ ته امر شوی چې په طاغوت کافر شي (له هغه منکر شی) او شیطان غواړي هغوئ ډیر زیات ګمراهان کړي،( او چې کله هغوئ ته وویل شي د الله نازل شوي کلام، او رسول ته راشي، نو ته وینې چې منافقان له تا څخه مخونه

اړوي). دا آيتونه هم هغه څوک مسلمان نه ګڼي چې په قرآن د ايمان دعوى کوي خو فيصله د بل چا قانون ته وروړي. او د قرآن قانون ته له فيصلې وروړلو مخ اړوي.

٧- ﴿ إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَن يَقُولُواْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَاۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٥١﴾ ﴾ النور: ٥١

**ترجمه:** (بې شکه ده د وينا د مؤمنانو چې کله وبللی شي الله او دهغه رسول ته چې فيصله وکوي رسول دهغوئ ترمنځ دا چې مونږ بلنه واوريده، او وومنله، او همدوئ خلاصيدونکې دي). دا آيت د مؤمنانو صفت دا ګڼې چې درسول الله ﷺ قانون ته بې له قيداوشرطه تسليميږي او مني ئې.

٨- ﴿ وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ ٱلْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِۦ جَهَنَّمَۖ وَسَآءَتْ مَصِيرًا ﴿١١٥﴾ ﴾ النساء: ١١٥

**ترجمه:** (او هر څوک چې د رسول مخالفت وکړي وروسته له هغه چې د هدايت لاره ورته ښکاره شي، او د مؤمنانو له لياری پرته په بله ولاړ شي نو مونږ به ئې په همغه لور وګرځوو چې دی ورته ګرځيدلی دی، او جهنم ته به ئې داخل کړو. او جهنم ډير بد د ورتګ ځای دی). پدې آيت کې الله تعالی ﷻ دهغه چا دجهنم ته دورداخلولو خبره کوي چې د رسول الله ﷺ له قانون سره مخالفت کوي.

٩-﴿ وَمَا ٱخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِۚ ﴾ الشورى: ١٠

**ترجمه:** او په هر څه کې چې تاسي اختلاف وکړئ نو دهغه پريکړ له الله سره ده.

پورتني ټول آیاتونه او په لس ګونو نور آیتونه په پوره صراحت سره دا موضوع بیانوي چې سیادت (اعلی حاکمیت) یوازې الله ﷻ او د هغه رالیږلي شریعت ته حاصل دی. او فیصله باید یوازې او یوازې په هغه قانون وشي چې الله ﷻ را نازل کړي دی. او هرڅوک چې دالله د قانون په مقابل کې د خپل عقل او ارادې پربنا د بشر لپاره داسې قوانین جوړوي چې د الله ﷻ له قانون سره مخالف وي هغه مؤمن نشي پاتې کیدلی. بلکه هغه په یقیني ډول د اسلام له دائرې څخه وځي.
په ډیموکراسۍ کې اعلی حاکمیت د ولس حق ګڼلی کیږي، خو په اسلام کې د الله ﷻ حق دی. په ډیموکراسۍ کې د بشر دمشکلاتو دحل او فصل لپاره قوانین د بشر لخوا یوازې د عقل پربنا جوړیږي. او د اکثریت (پارلمان) دمنلو او تصویب، او د حاکم له توشیح نه وروسته قانونیت پیداکوی. خو په اسلام کې به د اسلام د قانون په مقابل کې هیڅ قانون نه جوړیږي. او نه به د اسلام قانون پارلمان ته د تصویب او یا ردولو لپاره وړاندې کیږي. او که داسې وشي نو بیا به پارلمان ته دالله ﷻ پرحکم د تفوق حیثیت ورکړای شوي وي چې دا بیا په خپله صریح کفر دي.

## ۲ - دولس د ارادې د تقدس موضوع

په ډیموکراسۍ کې تر ټولو مقدس او ارزښتمن شی دولس اراده ده. همدغه د ولس اراده د قانون مصدر ګڼلی کیږي. هر څه چې ولس وغواړي هماغه حق او قانون دی. او هر څه چې ولس رد کړي هغه هیڅ شرعیت او قانونیت نه لري. دولس ارده په ډیموکراسۍ کې د الله ﷻ تر ارادې هم مقدسه ده. که الله ﷻ په خپل قانون او شریعت کې یو څه نازل کړي وي خو ولس بل څه وغواړي نو ډیموکراسي حکم کوي چې الهي شریعت دې پریښودل شي، او د خلکو له ارادې را وتلی قانون دی عملي کړای شي.

ډیموکراسي وايي چې د ولس اراده دې د اساسي قانون په شکل کې د کوم مجلس یا لویې جرګې او یا بل کوم ولسي مرجع لخوا تدوین او ومنلی شي. بیا دې شرعیت او یا بل عرف او قانون ته د اساسي قانون په رڼا کې وکتلی شي. که چیرې له اساسي قانون سره برابروو نو پدې خاطر دمنلو وړ دی چې له اساسي قانون سره موافق دی. نه پدې خاطر چې د الله ﷻ حکم او شریعت دی. او که چیری له اساسي قانون سره موافقت ونه لري په هیڅ صورت عملي کیدلای نشي، که څه هم چې صریح آیت، او یا صحیح حدیث، او یا دامت د علماؤ اجماع هم وي. دخلکو رایې او ارادې ته پر شریعت باندې د تفوق حق ورکول هغه کفر دی چې الله ﷻ خپل رسول ورڅخه منع کړی دی. الله ﷻ فرمايي:

﴿ وَأَنِ ٱحْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ وَٱحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ ﴾ المائدة: ٤٩

**ترجمه:** (او فیصله وکړه د دوئ تر منځ په هغه قانون چې نازل کړی دی اللهﷻ او د دوئ په خوښو او ارزوګانو پسې مه ځه، او ځان وساته له هغوئ چې واړوي تا له ځیني هغه څه چې الله ﷻ درته رالیږلي دي). خو په ډیموکراسۍ کې باید حتماً ولس ته رجوع وشي، او دهغوئ هیلې او آرزوګانې وپوښتلی شي، او دهغو په بنا دې قوانین وضع شي، که څه هم د الله ﷻ د قانون مخالف وي، او بیا هیڅ قانون او اراده دخلکو د ارادې پر بنا جوړ شوی قانون نشي ردولی.

## ۳- د اکثریت درایې دمعیاریت موضوع

په ډیموکراسۍ کې د اکثریت رایه دحق معیار ګڼلې کیږي. پدې معنی چې هر چا یا هر څه ته چې اکثریت رایه ورکړي همغه حق ګڼل کیږي. او همغه څوک به د حاکمیت مستحق وي چې اکثریت ئې تائید کړی وي.

خو په اسلام کې د رايې ورکوونکو د شمیر ډیروالی دحق او استحقاق معیار نه دی. بلکه په اسلام کې حق هغه دی چې قرآن، حدیث او د شرع دلائل ئې تائید وکړي. که څه هم چې دهغه تر شا یو کس او یا لږ شمیر خلک ولاړ وي. او په مقابل کې ئې ډیر خلک ولاړ وي. د مثال په ډول که د یوه هیواد اکثریت خلک په یوه یا بل دلیل د زنا، لواطت، یا سود، د جواز په حق کې رايې ورکړي او په مقابل کې يې یو کس مخالفه رايه ورکړي، او یا هم هیڅوک رايه ورنکړي بیا به هم دغه افعال نه رواکیږي. بلکه دتل لپاره به حرام وي. خو په ډیموکراسۍ کې بیا د اکثریت رایه د حلالولو اویا حرامولو صلاحیت لري.
په اسلام کې حق او جائز هغه دي چې شریعت حق او جائز بللی وي. باطل او ناجائز هغه دي چې شریعت باطل او ناجائز ګرځولي وي.
په اسلام کې نه یوازې دا چې اکثریت دحق میعار نه دی منل شوی، بلکه قرآنی آیتونه په صراحت سره وايې چې لږ خلک دحق منونکي او شکر کوونکي دي.

الله ﷻ فرمايي: ﴿ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي ٱلْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿١١٦﴾ ﴾ الأنعام: ١١٦

**ترجمه:** (او که ته د زمکې د مخ د ډیرو خلکو خبره ومنې نو د اللهﷻ له لیارې به دې واړوي ځکه چې هغوئ په ګومانونو پسې روان دي او(اټکلیان دي)

همدا راز فرمايي: ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨٧﴾ ﴾ الأعراف: ١٨٧

**ترجمه:** (خو ډیر خلک نه پوهیږي).

او بل ځای کې فرمایي: ﴿ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ ٱلشَّكُورُ ﴿١٣﴾ ﴾ سبأ: ١٣

**ترجمه:** (زما ډیر لږ بندګان شکر کوونکي دي).

رسول الله ﷺ هم ډیر ځلې داکثریت د رایې پرخلاف داقلیت رایه منلې ده کله چې حق ورته د اقلیت په رایه کې ښکاره شوی دی. لکه د بدر په جنګ کې یې یوازې د حباب بن المنذر رضي الله عنه په رایه پداسې حال کې عمل وکړ چې خپله رسول الله ﷺ نورو اصحابانو رضي الله عنهم دجنګ د ډګر په اړه بله رایه درلوده.

همدا ډول رسول الله ﷺ د حدیبیې په صلحه کې داصحابو رضی الله عنهم د اکثریت رایه ونه منله او دهغوئ د رایې په خلاف یې له قریشو سره صلحه وکړه.

ابوبکر صدیق رضی الله عنه هم د ارتداد د فتنې په مقابل کې دقوي موقف په خپلولو کې داکثریت د رائې مخالفت وکړ، او د اسامه رضي الله عنه لښکر ئې د شام په لوري ولیږه.

له پورتنیو ټولو دلایلو معلومیږي چې په اسلام کې د رایه ورکوونکو اکثریت یا اقلیت دحق او باطل روا او نا روا په ټاکلو کې هیڅ نقش نه لري. پداسې حال کې چې په ډیموکراسۍ کې اکثریت د(اله) او رایه ئې د(شریعت) پر ځای درول شوې ده. چې دا یو ښکاره کفر دی.

## ۴- دقانون مصدر عقل دی که شرع؟

دا چې ډیموکراسۍ اساساً د سیکولریزم پر بنسټ ولاړه ده. هغه سیکولریزم چې وایي دین باید د ژوند او نظام په چارو کې هیڅ نقش ونه لري. نو په همدې اساس په ډیموکراسۍ کې د قانون مصدر د خلکو عقل دی، نه (الهی وحیې). په ډیموکراسۍ کې هر هغه څه ته ښه ویلی کیږي چې د خلکو عقل ئې (ښه) وګڼي. او هر هغه څه ته (بد) ویلی کیږي چې د خلکو عقل ئې بد وګڼي. او بیا د همدغو ښیګڼو یا مصالحو په پام کې نیولو سره قوانین وضع کیږي. په مسلمانو

هیوادونو کې خو ډیر ځلي داسې هم پیښیږي چې یوه نیمه شرعي ماده که چیرې په کوم قانون کې پاتې هم وي هغه هم باید دعقل په تله وتلل شي. او خلک وربانده دخپل عقل په رڼا کې حکم وکړي. لکه چې په پاکستان کې څه موده مخکې د(حدود آرډنینس) د شرعي حدودو دفرمان په هکله دخلکو د اذهانود تحریکولو لپاره د امریکا په بودیجه په ځیني تلویزونونو او اخبارونو کې پوره شپږ میاشتې د (ذراسوچئې) په نوم کمپاین وچلول شو، او په نتیجه کې ئې په پارلمان کې اکثریت دخپل عقل په حکم ځینې شرعي حدود منع اعلان کړل.

## ٥- آیا یواځې عقل په اشیاؤ او افعالو د (ښه والي) یا (بدوالي) دصحیح حکم صلاحیت لري؟

عقل دلاندې وجوهاتو له امله په اشیاؤ او افعالو دصحیح حکم کولو صلاحیت نه لري.

١. دخلکو عقلونه سره فرق لري، که ځینی ئې یو شی یا یو کار ښه وګڼي، ځیني نورئې بیا همغه شی بدګڼي. یا په بل عبارت د ځینې خلکو په عقل به یو څوک د یوه کار د کولو له امله د مکافات وړ بلل کیږي. خو د ځینې نورو په عقل بیا همغه شخص دهمغه کار له امله دمجازات وړ بلل کیږي. ځکه خو یوازې عقل د صحیح حکم د صادرولو صلاحیت نه لري تر څو ئې (وحې) لارښوونه ونه کړي.

٢. د انسانانو عقلونه دهغوئ له خواهشاتو او فطري غریزو او تمایلاتو متاثر کیږي. او دا منل شوې خبره ده چې دخلکو خواهشات او غریزې سره جلا جلا دي، نو په همدې بنا ئې عقلونه هم دهمدغه تاثر له امله په اشیاؤ او افعالو بیل بیل حکمونه کوي چې پدې کې بیا د حقیقي مصلحت تشخیص نا ممکن کار وګرځي.

۳. دانسانانو عقلونه د حالاتو. شرائطو او زماني له بدلون سره بدلون مومي. نن به یو شی ښه ګڼي خو سبا ته به په نورو شرائطو اوحالاتو کې همغه شی بدګڼي. چې پدې کې دعقل بې ثباتي رائی. پداسې حال کې چې الهی وحیې د ټولو حالاتو په نظر کې نیولو سره یو ثابت حکم کوي.

په اسلام کې د ثواب او عقاب په لحاظ په اشیاؤ او افعالو باندې دحل او حرمت حکم یوازې او یوازې د الله ﷻ حق دی او بس. لکه چې الله فرمایي ﴿ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ﴾ الأنعام: ٥٧

**ترجمه:** (حکم ندی مګر یوازې د الله).

او همدا ډول الله ﷻ فرمایي: ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَٰكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ مِّنَ ٱلْأَمْرِ فَٱتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨﴾ ﴾ الجاثية: ١٨

**ترجمه:** (تر دې وروسته مو پیغمبره! ته ددین پر یوه روښانه لار برابر کړې. ته باید همد اومنې او دهغو خلکو په هیلو او هوسونو پسې مه ځه چې نه پوهیږي).

رسول الله ﷺ هم دهر هغه حکم د رد فیصله کړې ده چې د دین په کوم دلیل ولاړ نه وي. او انسانانو دخپل عقل پر بنا وضع کړي وی. له عایشې رضي الله عنها څخه روایت دې چې رسول الله ﷺ فرمایي: ((**من أحدث فی أمرنا هذا مالیس منه فهو ردّ. وفي لفظ: من عمل عملاً لیس علیه أمرنا فهو ردّ**)) بخاري او مسلم.

**ترجمه:** څوک چې زمونږ په دین کې داسې یو څه ایجاد کړي چې له دین څخه نه وي هغه مردود دي، او په بل لفظ کې راغلي: څوک چې

یو داسې کار وکړي چې پر هغه زمونږ امر (دلیل) نه وي هغه مردود دی.
خو د پورتنیو ټولو دلایلو پر خلاف په ډیموکراسۍ کې (حکم) کول او قوانین جوړول دعقل کار دی چې (وحیې) ته ورکښې هیڅ د دخالت حق نشته. په بل عبارت په ډیموکراسۍ کې د تشریع او قانون حق له الله ﷻ څخه په بشپړ ډول اخیستل کیږی او په بشپړ ډول بشرته سپارل کیږي چې د خپل عقل پر بنا یې جوړ کړي، چې دا په حقیقت کې تر ټولو لوی کفر دی.

# انتخابات

په ډيموکراسۍ کې انتخابات د ملاد تير حيثيت لري چې له هغو پرته هيڅ نظام ته صحيح ډيموکراتيک نظام نشي ويل کيدای. خو هغه ډول انتخابات چې په ډيموکراسۍ کې ترسره کيږي په اسلام کې ئې هيڅ ځای نشته. لکه څرنګه چې اسلام د ژوند د هر اړخ لپاره خپل اصول او ضوابط لري همدارنګه د حکومت او سياست لپاره هم خپل نظام او اصول لري چې ځينې مشخصات ئې په لاندې ډول دي:

## په اسلام کې د نظام خصوصيات:

**اول خصوصيت** – په اسلام کې حاکميت يا ولايت يو غنيمت او ولجه نه ده چې په هره طريقه چې ممکن وي بايد حاصله کړای شي. بلکه په اسلام کې حاکميت او ولايت يو درونند مسؤليت او خطرناک مکلفيت دی چې د ملت لخوا هغه چاته ورسپارل کيږي چې په هغه کې د امامت د انعقاد شپږ اساسي شرطونه موجود وي چې په لاندې ډول دي:

**اول شرط**: حاکم بايد مسلمان وي. کافر د اسلامی دولت مشرنشي جوړيدلی. يو ډول کافر هم دمسلمانانو مشر کيدای نه شي. که هغه يهودي وي يا نصراني وي، سيکولر وی، او يا د کوم بل دين منونکې وي، او يا ملحد (کمونست) وي، چې ديوه دين منونکې هم نه وي، الله ﷻ فرمايي ﴿ وَلَن يَجْعَلَ ٱللَّهُ لِلْكَٰفِرِينَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا ﴿١٤١﴾ ﴾ النساء: ١٤١

**ترجمه**: (او هيڅکله به ونه ګرځوي الله دکافرانو لپاره پر مؤمنانو باندې څه لاره).

په قرآنکريم کې د مسلمانانو له (اولی الامر) سره هرځای دا قيد لګول شوی چې هغه بايد له مسلمانانو څخه وي. او په دې شرط باندې د اسلام د ټولو علماؤ اجماع ده، او هيڅا ئې مخالفت نه دی کړی. په همدې بنا په اسلام کې پر مسلمانانو د کافرحاکم کيدل حرام دي.
خو په ډيموکراسۍ کې د دين لپاره هيڅ اعتبار نشته. هلته هر څوک د مشرۍ لپاره ځان کانديد ولای شي. پرته لدې چې د هغه مسلمانۍ يا کفر ته دې وکتل شي. بلکه اوس خو په عملي لحاظ د ټولې اسلامي نړۍ لپاره د دنيا د کفارو دا متفقه فيصله ده چې صحيح مسلمان بايد په يوه اسلامي هيواد کې هم حاکميت ته ونه رسيږي. او که ورسيږي که څه هم چې د انتخاباتو له لارې رسيدلی وي بيا هم بايد له حاکميته را وپرځولی شي. او پرې نښودی شي چې حکومت جوړ کړي. چې دغه مثالونه په ترکيه، الجزائر، او نورو اسلامي هيوادونو کې وليدل شول.
**دوهم شرط:** په اسلام کې دحاکم لپاره دوهم شرط نارينتوب دی. د ښځې حاکم کيدل په اسلام کې حرام دي. په هغه حديث شريف کې چې امام بخاري، ترمذي، نسائي او امام احمد روايت کړی دی راغلي دي چې کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته خبر ورسيدچې دايران خلکو د ايران د بادشاه (کسری) له مړينې وروسته دهغه لور حاکمه کړې ده نو وئې فرمايل: ((**لن يفلح قوم ولوا امرهم امراة**))
**ترجمه:** (هيڅکله به هغه قوم کامياب نشي چې خپل ولايت (حاکميت) ئې ښځې ته ورکړی وي). خو ددې پر خلاف په ډيموکراسۍ کې نر او ښځه يو ډول د انتخابيدولو او حاکم کيدلو حق لري. او همدغه حکم دافغانستان په اوسني اساسي قانون کې هم په دې ډول بيان شوی دی: د ((افغانستان اتباع د انتخابولو او انتخابيدلو حق لري، (**۳۳** ماده) چې دا کار له اسلام سره ښکاره مخالفت دی
**د ريم شرط:** دريم شرط بلوغ دی. ځکه چې نا بالغ مکلف نه وي.
**څلورم شرط:** څلورم شرط عقل دی. ځکه چې ليونی هم مکلف نه وي

**پنځم شرط:** پنځم شرط آزاد والی (حریت) دی. ځکه چې مریې د خپل ځان په هکله د تصرف ملکیت نه لري نو د بل چا په هکله به ئې څه ولري.

**شپږم شرط:** شپږم شرط عدالت دی. پدې معني چې فاسق به نه وي که څه هم ځینې علماء د فاسق ولایت هم سره له کراهته جائز بولي.

**دوهم خصوصیت–** په اسلام کې حاکم د (اهل الحل والعقد) لخوا ټاکل کیږي او دا د ټولنې هغه صالح، زبده، علماء، سیاست پوه، او اهل خبره خلک وي چې د امت مصالح له مفاسدو څخه تشخیصولی شي او دحاکم په انتخاب کې له پوره احتیاط او دقت څخه کار اخلي. او دهغوئ تر انتخاب وروسته بیا امت له هغه سره د طاعت عمومي بیعت کوي.

خو په ډیموکراسۍ کې هر کافر، فاسق، مجرم، بې عقل، او جاهل، ته دحاکم په انتخابولو کې هماغه حق حاصل دی چې یو مؤمن، متدین، صالح، هوښیار، او عالم ته حاصل دی. په ډیموکراسۍ کې انسانانو ته د صالح والي او فاسدوالي له زاویي نه کتل کیږي، بلکه هلته یوازې خلک شمیرل کیږی. او د هر چا شمیره چې ډیره شوه هماغه دحاکمیت حقدار بلل کیږي. د مثال په ډول که یوې خواته (۵۰) علماء، مجاهدین، صالحان او مجرب سیاست پوهان وي، خو بلې خواته (۵۱) فاسقان، شرابیان او جاهلان وي، نو د ډیموکراسۍ په تله کې دوهمه ډله په لومړۍ ډلې غوره او دحاکمیت حقداره بلل کیږي. همدغه معیار ته په پام سره اقبال دجمهوریت یادونه په خپل شعر کې داسې کوی:

متاع معنی بیگانه از دون فطرتان جویې
ز موران شوخي طبع سلیماني نمې آید
گریز از طرز جمهوري غلام پخته کارې شو
که از مغز دوصد خر فکر انساني نمې آید
(کلیات اقبال – افکار)

**دریم خصوصیت:** اسلام د الله تعالی له طرفه نازل شوی حق دین دی چې تر ټولو نظریاتو او ادیانو اعلی دی.نه تر خپل ځان بله نظریه او دین په لوړ والي مني، او نه ئې له ځان سره په مساوي او برابر حیثیت مني. بلکه خپلو اتباعو ته امر کوي چې تر هغه پورې باید له کفارو سره وجنګیږي چې تر څو د کفر فتنه له منځه ولاړه شي. او د الله کلمه تر ټولو په لوړ حیثیت ومنلی شي. الله ﷻ فرمایې:

﴿ وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِۚ ﴾ الأنفال: ٣٩

**ترجمه:** (تر هغه د کفارو په خلاف وجنګیږئ چې فتنه ورکه شي او دین ټول د الله ﷻ شي).

خو د دې پر خلاف ډیموکراسي ټولو ادیانوته په یوه نظر ګوري. او د کفر او اسلام توپیر نه مني. له همدې امله په ډیموکراسي کې کفارو او مسلمانانو ته یو ډول انتخابي حقوق او صلاحیتونه ورکول کیږي. او کافر د کفر له امله له حاکمیت څخه نه منع کیږي. بلکه عملاً لیدل کیږي چې مسلمان د مسلمانۍ له امله له حاکمیت څخه لیرې ساتل کیږي.

په ډیموکراسۍ کې د کفر او اسلام تر منځ د فرق د نشتوالي له امله ډیموکراسي په خپله یوه کفري نظریه ګڼل کیږي.

# آیا د دیموکراتیک انتخابي نظام له لارې اسلام نافذیدلی شي؟

په اسلامی نړۍ کې ځینې اسلامي تنظیمونه چې دغرب له سیاسي او فرهنګي فلسفې څخه متاثر دي او د اسلامي نظام دجوړولو ترتیب او طریقه د رسول الله ﷺ له سیرت څخه نه اخلي، بلکه غواړي د غرب د ډیموکراسۍ له لارې اسلامي نظام راولي، او ددې هدف لپاره دنورو سیکولر (بی دینه) احزابو په څیر ډیموکراتیک وسائل په کار اچوي، او انتخاباتو ته درېږي، اوبیا د دین په نامه له خلکو ووټ (رایه) غواړي، دغه خلک له لاندي دریو حالتونو بهر نه دي:

١. دغه خلک ډیموکراسۍ سمه نه پیژني. ځکه چې په ډیموکراسۍ کې خو اعلی حاکمیت او د قوانینو د جوړولو حق دخلکو دی. نه د الله ﷻ. یعنې په ډیموکراسۍ کې خلکو ته اختیار ورکول کیږي چې هر ډول نظام او قوانین د ځان لپاره غواړي جوړ ئې کړي. پداسې حال کې چې په اسلامي نظام کې د اعلی حاکمیت او د تشریع حق یوازې او یوازې د الله ﷻ دي خو په ډیموکراسۍ کې په نهائې فیصله دخلکو وي. نه د الله ﷻ. نودغه خلک څنګه دډیموکراسۍ له لارې د الله ﷻ نظام نافذولی شي؟

٢. دوهم حالت کیدای شي دا وي چې دغه خلک په اسلام نه پوهیږي. یوازې اسلامي علم او شریعت ته منسوب خلک دي خو د اسلام په روح، تقاضا او خصوصیاتو نه پوهیږي. نه د اسلام نظام ورمعلوم دی، او نه په اسلام کې د حاکمیت نظریه ورمعلومه ده. له همدې امله د اسلام او ډیموکراسۍ ترمنځ په فرق هم نه پوهیږي.

۳. دریم حالت ښائي دا وي چې دغه خلک پدې پوهیږي چې اسلام او ډیموکراسي دوه بیل بیل نظامونه دي. خو دا چې د اسلامي نظام اقامه جهاد ، قربانیو، او د کړاوونو زغمل غواړی، او دوئ دې کار ته تیار نه دي. بلکه دخپلو دنیاوي مقاصدو او مصالحو تحقق ورته د ډیموکراسۍ له لارې آسان ښکاري، نو د منافقت له مخې په دیموکراسۍ باندې د اسلام نوم ږدي تر څو له یوې خوا عام خلک پدې تیر باسي چې دوئ خو اسلامي تنظیمونه دي، او د اسلام لپاره کار کوي. او له بلې خوا د طاغوت د لارې په خپلولو په آسانی او بې قربانۍ طریقې په حاکمیت کې له سیکولر احزابو سره شریک شي. او له حکومتي امتیازاتو دوئ هم خوندونه واخلی.

خو شریعت، عقل، تاریخ او تجربه ټول دا ثابتوي چې د انتخاباتو او ډیموکراسۍ له لارې اسلامي نظام په هیڅ ډول نشي نافذیدلې. چې ددې دعوی ځینې دلایل په لاندې ډول یادوو:

## د انتخابي نظام له لارې د اسلام د نه نافذیدلو لس دلائل

**اول دلیل:** د ډیموکراسۍ اساسي مفکوره دا ده چې حکومت، نظام او قوانین به دخلکو لخوا د خلکو په لاس او دخلکو لپاره جوړیږي. نو په همدې اساس هر هغه جهت چې ډیموکراتیک فعالیت کوي تر هر څه لومړی باید دا ومني چې نظام به دخلکو په خوښه جوړیږي. حتی که اسلامي نظام هم راځي پدې اساس به نه راځي چې هغه د الله ﷻ له طرفه یو مکلفیت دی. بلکه پدې اساس به راځي چې دخلکو خوښ دی. په ډیموکراسۍ کې به خلکو ته پوره پوره واک ورکول کیږي چې اسلام غواړي او که غیر اسلام؟ په اسلام کې خلکو ته دغه حق ورکول د اسلام له فکر او شریعت سره ښکاره مخالفت لري.

د پورتنۍ خبرې بله معنی دا ده چې هر اسلامي تنظیم چې په انتخاباتو کې برخه اخلي باید دا خبره تر هر څه دمخه ومني چې لکه څرنګه چې دوئ غواړي خلک اسلام ته دعوت کړي، همدغه ډول باید غیر اسلامي تنظیمونو ته هم دا حق ومني چې مسلمانان دې کفرته دعوت کړي، او دوئ هیڅ اعتراض وربانديې ونه کړي.

**دوهم دلیل:** په پارلمان کې د اکثریت تنظیم د هر ډول قوانینو د جوړولو او تصویبولو حق لري. او تر څو چې اسلامي تنظیم په پارلمان کې اکثریت ونه لري د قانون جوړولوحق نه لري. دپارلماني اصولو په بنا په اقلیت باندې دا لازمه ده چې د قانون جوړولو لپاره د اکثریت حق ومني. که څه هم چې هغوئ د اسلام په خلاف قوانین جوړ کړي. چې په یو مسلمان هیواد کې د اسلام په خلاف د قوانینو دجوړولو حق تسلیمول د اسلام خلاف کار دی. مسلمانان باید هیچا ته اجازه ورنکړي چې د دوئ په هیواد کې دې غیر اسلامي قوانین جوړ کړي.

**دریم دلیل:** د انتخاباتو ګټونکي تنظیم ته دا حق ورکول کیږي چې د څلورو یا پنځو کلونو لپاره حکومت وکړي. او نور خلک باید دهغوئ حکومت ددغې مودې لپاره ومني. که بالفرض کوم اسلامي تنظیم اکثریت تر لاسه کړي، او اسلام نافذ هم کړي، نو بیا به هم د اسلام نفاذ د څلورو یا پنځو کلونو لپاره وي. او دخپلې مودې تر پوره کولو وروسته باید له حکومت څخه لاس په سر شي. چې دا کار پر اسلام کې د اجماع په خلاف دی. ځکه پر اسلام کې حاکم تر هغې د حاکمیت حق لري چې تر څو ژوندی وي او د حاکمیت شرعي اهلیت ولري. ځکه چې که شرعي اهلیت لري نو بیا ولې لري کیږي. او که شرعي اهلیت نه لري نو بیا ولې د دوهم ځل لپاره د حاکمیت حق ورکول کیږي؟

دوهم مخالفت ئې له اسلام سره دا دی چې هغه اسلام چې دوئ نافذ کړی وي هغه باید د تل لپاره نافذ وي. خو پدی صورت کې څلور یا پنځه کاله وروسته دغه نظام باید په خپله له منځه ولاړ شي. او خلکو ته یوځل بیا دا حق ورکړ شي چې اسلام غواړي او که غیر اسلام؟ چې

پدې کار سره بیا سیکولر (بی دینه) احزابو ته حاکمیت ته درسیدو فرصت ورکول کیږي.

**څلورم دلیل**: د اسلام د حاکمیت او د ډیموکراسۍ د حاکمیت نظامونه دوه جلا جلا نظامونه دي. داسلامي تنظیمونو لخوا په ډیموکراسۍ کې شاملیدل د ډیموکراسۍ د تائید او توثیق په معنی دي. عام خلک چې کله وګوری چې علماء هم په ډیموکراسۍ کې برخه اخلي او انتخاباتو ته درېږي، نو په ډیموکراسۍ کې د د وئ د شمولیت له امله عامو خلکو ته دا فکر پیداکیږي چې کیدی شي ډیموکراسي به هم یو حق نظام وي. ځکه چې که ناحقه وای نو دیني علماؤ به ورکښې برخه نه اخیسته. علماء که هر څو دخپل مشارکت لپاره دمجبوریت، او د دعوت دمصلحت تاویلو نه او دلایل خلکو ته وړاندې کړي عام خلک پرې نه پوهیږي. ځکه چې په پارلماني بهیر کې علماء او سیکولر(بی دینه) اشخاص ټول په یو ډول اصولو چلیږی. او په عمل کې هم د دواړو تر منځ کوم فرق نه لیدل کیږي.

**پنځم دلیل**: هر نظام یوه ایډیالوژي او فکر لري چې هغه نظام ته د رسیدلو لپاره لاره او وسایل هم له هماغه فکر څخه انتخابیږي.

د ډیموکراسۍ ایډیالوژي اوفکر سیکولریزم دی. او انتخابات هم د سیکولریزم پربنسټ ولاړ دي. ځکه چې د انتخاباتو لپاره اساسي شرط سیاسي مساوات دی. او دغه مساوات هغه وخت راتلای شي چې ټول جهتونه د ډیموکراسۍ لپاره خپل دین پریږدي. او دا ځکه چې دین انسانانوته یو پربل د تفاضل (برتری) درس ورکوي. دمثال په ډول: اسلام وایی چې مسلمان تر کافر غوره دی، خو ډیموکراسي وایي چې باید دواړه مساوي وي. او مساوات یوازی په هغه صورت کې رامنځته کیږي چې د کفر او اسلام خبره له منځه ووځي.

په همدې اساس انتخابات په ډیموکراسۍ پورې خاص دي. دهغو له لارې یوازې ډیموکراسي راتلای شي، نه اسلام. ځکه چې لکه څنګه

چې اسلام له ډيموکراسۍ څخه يو جلادين دې نود نافذولو لاره او وسيله ئې ه م له ډيموکراسۍ څخه جلا ده.
لکه څنګه چې ډيموکراسي، له کمونيزم، عيسايت يهوديت او نورو اديانو سره پيوند کاري نه منی، همدغه ډول اسلام هم له نورو اديانو او طريقو سره پيوند کاري نه مني، او نه له نورو لارو قائميدلای شي. اسلام به يوازې په هغه طريقه قائميږي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې پرې قائم شوی وو، له همدې امله له باطلو لارو د اسلام دنفاذ لپاره کوښښونه يو ناروا او دعقل او فطرت خلاف کار دی.
**شپږم دليل**: ډيموکراسي د پانګه وال نظام (کپيټاليزم) زيږنده او دهمدغه نظام سياسي مظهر دی. هر څومره چې په اسلامي نړۍ کښې ډيموکراسي ټينګيږی په هماغه اندازه پانګه وال په سود او احتکار ولاړ نظام هم چې د اسلام مخالف اقتصادي نظام دی ټينګيږي. که چيری بالفرض کوم اسلامي تنظيم د ډ يموکراسۍ له لارې قدرت ته هم ورسيږي، هغه هم په کراره کراره د پانګه وال نظام برخه ګرځي او د اسلام له اقتصادي نظام څخه خارجيږي.
**اووم دليل**: انتخاباتي سياست داسې يو ډنډ دې چې يوځل کوم اسلامي تنظيم ورکښې ولويږي بيا ئې له هغه څخه وتل انتهائي مشکل کار وي. ټول هغه اسلامي تنظيمونه چې يوځل په ډيموکراسۍ کې ور داخل شوي دي هغوئ نور د اسلام دغلبې لپاره له انقلابی جهادي هڅو لاس اخيستی. ځکه چې د ډيموکراتيک سياست لپاره دا شرط دې چې مسلح جدوجهد به نه کوي. دمسلحې مبارزې پريښودل او په ډيموکراسۍ او انتخاباتو پورې د اسلام د غلبې د اميدونو تړل، او دغه کار ته د اسلامي مبارزې نوم ورکول د اسلام د نفاذ په لاره کې يوخطرناک خنډ دی. ځکه چې له دې لارې مسلمانان په جهاد او دهغه په نتائجو بې باوره کيږي. پدې ميدان کې د مصر د اخوان، د افغانستان دجهاد ي تنظيمونو، او د پاکستان د اسلامي تنظيمونو ناکامه تجربې تر ټولو واضح مثالونه دي. نه يوازې داچې د اوږدې

مودې له تیریدو سره سره یې اسلامي نظام نافذ نه کړای شو، بلکه د اسلام دښمنانو په ډیر مکر او مهارت د مجاهدینو په خلاف په خپل کتار کې ودرول. او خبره دې ځای ته راورسیده چې تش په نامه اسلامي ډیموکرات تنظیمونو هم خپل ټول تبلیغاتي وسائل دجهاد او مجاهدینو په خلاف له صلیبیانو سره هم آهنګه کړي دي.

**اتم دلیل**: ډیموکراسي یو داسې نظام دی چې په هغه کې اسلامي تنظیمونه اکثریت نشي ګټلی، لکه چې په تیرو شپیتو کلونو کې په پاکستان کې ولیدل شول. اودا ځکه چې د ډیموکراسۍ فکري او سیاسي جوړښت داسې دی چې هلته باید سرمایه دران، فیوډالان، خانان، ملکان، صنعت کاران، لوی تاجران، پخواني بیروکراټان، او په مالي درغلیوکې ککړ خلک قدرت ته ورسیږي. ځکه چې په ډیموکراسۍ کې قدرت ته د رسیدلو لپاره تر ټولو لویه او مهمه وسیله د مال مصرفول دي. او ددې ترڅنګ رشوت ورکول، دخلکو رائې په پیسو اخستل، دخلکو تیرایستل، درواغجنې وعدې ورکول، او د ځان په ګټه او د مخالف په خلاف پراخه تبلیغات کول هم د انتخاباتو هغه ضرورتونه دي چې له هغو پرته په انتخاباتو کې کامیابیدل ممکن نه دي

دانتخاباتو لپاره دغه لاره انتخابول نه اسلامي ده، او نه داسلامي تنظیمونو له وسعې پوره ده.

**نهم دلیل**: که چیرې کوم اسلامي تنظیم له دې ټولو خنډونو او مشکلاتو سره سره بیا هم په انتخاباتو کې اکثریت وګټي او قدرت ته ورسیږي بیا به هم دهماغه اساسي قانون پابند وي چې د ډیموکراسۍ په اساس جوړ شوی وي. اساسي قانون د انتخاباتو ګټونکي تنظیم ته دا جازه نه ورکوي چې مکمل شریعت نافذ کړي. او د اساسي قانون بدلولو ته ئې نور سیکولر(بی دینه) قوتونه نه پریږدي. که چیرې اساسي قانون پریږدي او مستقیماً مکمل شریعت نافذکړي نو بیا ئې په قدرت کې دپاتې کیدلو جواز له منځه ځي. ځکه چې د همدې

اساسي قانون له مخې د انتخاباتو له لارې قدرت ته رسیدلی دی. چې قانون ځي نو د دوئ د حاکمیت جواز به هم ورسره ځي.
**لسم دلیل**: دانتخاباتو له لارې قدرت ته رسیدونکې اسلامي تنظیم که اسلام نافذ هم کړي بیا به هم مکمل اسلام نه وي. ځکه چې د اسلامي حکومت یوه اهمه وجیبه د (**امربالمعروف اونهی عن المنکر**) وظیفه ده. او تر ټولو لوی منکر دا دی چې په اسلامي هیواد کې دې غیر اسلامي احزاب موجود وي. او د غیر اسلامي فعالیتونو د تر سره کولو اجازه دې هم ولري. اسلامي حکومت باید ټول سیکولر او مرتد احزاب له فعالیت څخه منع کړي. افراد ئې اسلام ته دعوت کړي، او د امتناع په صورت کې ئې له منځه یوسي. انتخابي حکومت دغه کار هیڅکله نشي کولای. ځکه چې ډیموکراسي هر چاته دهرې عقیدې د بیان او اظهار آزادي ورکوي.
همدا رنګه دغه ډول حکومت د کفارو په خلاف د اقدامي جهاد فریضه هم نشي تر سره کولای. بلکه ددې پر خلاف باید د بین المللي قوانینو په اساس له ټولو کفري هیوادونو سره د امن، او تعاون متقابل حسنه روابط ولري.
همدارنګه باید دیموکراتیک انتخابي حکومت د ملګروملتو، د امنیت د شورى، او نورو نړیوالو تړونونو او میثاقونو پوره رعایت وکړي، چې دمخالفت په صورت کې له نړیوالو بندیزونو او سزاګانو سره مخ کیږي.
دا ټول هغه دلائل دي چې د اسلام له نافذولو سره د ډیموکراسۍ مخالفت ښيئ.
د اسلام د راتګ اصلي مقصد دا دی چې باید په نورو باطلو ادیانو غالب شي، نه دا چې له هغو سره یوځای د تساوي پر اساس ژوند

وکړي. الله ﷻ فرمايي ﴿ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ ٩ ﴾ الصف: ٩

**ترجمه:** (الله هغه ذات دي چې رالیږلی ئې دی رسول خپل محمد صلی الله علیه وسلم په هدایت او په حق دین چې غلبه ورکړي الله ﷻ دغه حق دین ته پر ټولو دینونو باندې، که څه هم مشرکان دغه غلبه بده ګڼي) نو په همدې اساس باید اسلام په ډیموکراسۍ غالب وي، نه دا چې دهغې په چوکاټ کې وچلیږي.

# د ډیموکراسۍ د حقوقو او آزادیومناقشه

د ډیموکراسۍ دوهم اصل د حقوقو او آزادیو اصل دې. دغه حقوق او آزادۍ په حقیقت کې د ډیموکراسۍ د نظریې او فلسفې حاصل او ثمره ده. په هر نظام کې چې دغه حقوق او آزدۍ خلکو ته حاصلې نه وي هغه نظام ډیموکراتیک نه بلل کیږي.

## ددین او عقیدې د آزادۍ مناقشه:

د آزادیو او حقوقو په لړ کې اول ددین د انتخاب او دعقیدې آزادي ده. په ډیموکراسۍ کې هر انسان ته دا حق ورکول کیږي چې په خپله خوښه چې هر وخت وغواړي نوی دین د ځان لپاره غوره کړي. د مثال په ډول: یو انسان حق لري چې نن یهودی وي، سبا ته نصرانی شي، بله ورځ هندو شي، او بله ورځ مسلمان شي، بل وخت بیا بیرته اسلام پریږدي او بودائي شي. او یا هم له ټولو ادیانو انکار وکړي ملحد او کمونست شی. پدې ټولو حالاتو کې هغه محاسبه کیدلای نشي. او نه ورڅخه څوک د عقیدې د آزادۍ حق سلبولی شي.
په ډیموکراسۍ کې دین او عقیده یو شخصي امر دی چې د دولت او نظام ورسره هیڅ کار نشته. دین په ډیموکراسۍ کې د جامو حیثیت

لري. د هر چا خوښه ده چې کوم رنګ او ډول جامې اغوندي. خو په اسلام کې دین او عقیده یو شخصي امر نه، بلکه یو مکلفیت دی. او همدغه د انسانانو او پیریانو د خلقت هد ښوولی شوی دی. لکه چې الله تعالی فرمایي ﴿ وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴾ الذاریات: ٥٦

**ترجمه:** (او ما نه دي پیداکړي پیریان او انسانان مګر ددي لپاره چې زما عبادت وکړي).

الله ﷻ پیریان او انسانان د عبادت لپاره پیداکړي دي. او بیا ئې د عبادت دکیفیت د تعین او د طریقې دورښودلو لپاره ورته دین نازل کړی، او انبیاء ئې را لیږلي چې تر ټولو وروستی دین (اسلام) او تر ټولو وروستی پیغمبر (محمد) صلی الله علیه وسلم دی. او د همده په مبارک راتګ پخواني ټول ادیان منسوخ شوي دي، او د الله ﷻ په نزد یواځنی مقبول دین اسلام دی. نو هر څوک چې د الله ﷻ د عبادت لپاره له اسلامه پرته بل دین انتخاب کړي هیڅکله به ئې الله ﷻ ورڅخه قبلول نه کړي. الله ﷻ فرمایي ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ آل عمران: ٨٥

**ترجمه:** (او هر څوک چې له اسلام پرته بل دین ولټوي هیڅکله به ترې ونه منل شي، او په آخرت کې به له تاوانیانو څخه وي).

په اسلام کې له اسلام څخه وتل ارتداد دی، چې که توبه و نه باسي او بیرته په اخلاص اسلام ته راونه ګرځي، سزائې وژل دي. ځکه چې له یوه دین څخه وتل، او بل دین ته داخلیدل، د پخواني دین د بطلان په معنی دي. یعنې هرڅوک چې له اسلام څخه کوم بل دین ته ورځي هغه په خپل دغه عمل په اسلام باندې د بطلان حکم کوي، او د نوي دین د حقانیت اعتراف کوي.

خو په ډیموکراسۍ کې د دین بدلول هیڅ سزا نه لرې. ځکه چې هغه یوشخصي کار دی. په افغانستان کې چې اوس امریکایانو یو ډیموکراتیک نظام جوړ کړی دی همدغه د ارتداد حق ئې هم د هر فرد لپاره د اساسي قانون له لارې ورته خوندي کړی دی. ځکه چې د اساسي قانون په شپږمه ماده کې په صراحت سره د (ډیموکراسۍ تحقق) او د (بشري حقوقو ملاتړ) د دولت مکلفیت ښودل شوی دی.

همدا راز د بشر د حقوقو دنړیوالې اعلامیې په اته لسمه ماده کې په صراحت سره داسې لیکل شوي دي: (**هر انسان د فکر د آزدۍ او د دین د انتخاب له حق څخه برخمن دی. او همدا حق د دین او د عقیدی تبلیغ، د ډله ییزو ښوونو او رسنیو له لاري د نظر اظهار او همدا ډول د شعائرو سري او علني ترسرکولو. او له هغو څخه حفاظت ته هم شامل دی**) (اتلسمه ماده)

دهمدغې اعلامیې په نولسمه ماده کې د ارتدارد حق په نور صراحت سره پدې ډول بیان شوی دی:

(**هر انسان دنظر او خپل لید لوري د آزادۍ له حق څخه برخمن دی. دغه حق دې ته هم شامل دي چې څوک دې د بل چا افکار او نظریات د بل چا له مداخلې پرته ومني. او هم کولای شي خپل افکار او نظریات په هرې ممکنې وسیلې له هر جغرافیوي قید او بند څخه پرته تر لاسه او نشر کړي**) (نولسمه ماده)

دا چې د افغانستان اوسنی اساسي قانون چې د (**ډیموکراسۍ تحقق**) او د (**بشر د حقوقو ملاتړ**) د دولت مکفیت ګڼي، او پدې دواړو کې د دین او عقیدې انتخاب د هر چا شخصي حق دی، او د بل چا د خالت ورکښې ناروا کار ګڼي، نو ځکه خو اساسي قانون هم په نا اعلان شوی او ضمني ډول هر چاته د مرتدکیدلوحق ورکوي. اوس نو په خلکو، وضعیت، او حالاتو پورې اړه لري چې څوک د عبدالرحمن پنجشیري په څېر د ډیموکراسۍ له دغه حق څخه د استفادی علني جرات کوي.

ځینو تش په نامه اسلامي حکومتونو په خپلو اساسي قوانینو کې دا لیکلي چې د اسلام په خلاف به قوانین نه جوړیږي، خو له بل لوری ئې دا هم په صراحت سره لیکلي چې هیوادونه ئې د ملګرو ملتونو، نړیوالو تړونونو، اود بشرد حقوقو د اعلامیې درعایت کولو تعهد لري.
لکه د افغانستان په اوسني اساسي قانون کې چې په اوومه ماده کې داسې لیکل شوي دي:
اوومه ماده: **(دولت دملګرو ملتونو د منشور، د بین الدول معاهدو، دنړیوالو میثاقونو چې افغانستان له هغو سره تړاو ولري او د بشري حقوقو د نړیوالې اعلامیې رعایت کوي)**
د بشر دحقوقو د نړیوالې اعلامیې چې د افغنستان اساسي قانون ئې رعایت کوي په **۲۹** مه ماده کې د بشري حقوقو د اعلامیې له حقوقو سره د تعامل په اړه داسې راغلي دي:
**۲۹** مه ماده: د ج جزء **(په هیڅ ډول شرایطو کې روا نه ده چې د بشر له حقوقو سره دې په داسې ډول چلند وشي چې د ملل متحد له اصولو او اهدافو سره تضاد ولري)**
یعنې د بشرې حقوقو د تعبیر او تفسیر صلاحیت یوازې د ملګرو ملتونو له سازمان سره دی، او هر دولت ئې چې رعایت کوی باید د ملګرو ملتو له اصولو او اهدافو سره سم ئې وکړی، نه دا چې دخپل دین او مذهب مطابق ئې تعبیر کړي، په همدې بناء دا خبره یوازې یو منافقت دی چې په یوه اسلامي هیواد کې دې هم اسلام تطبیق شي، او هم دملل متحد او د بشر د حقوقو اعلامیه. له دواړو څخه به یوازې یو تطبیق کیږي اوبس.
په اسلام کې هم د عقیدې او دین د آزدۍ حق شته دی، خو هغه په دې معنې دی چې د نورو ادیانو منونکي به په زور نشي مسلمانولی. یوازې دعوت او په ښه طریقه به مناقشه او مناظره ورسره کولی شي.

لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿ ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلۡحِكۡمَةِ وَٱلۡمَوۡعِظَةِ ٱلۡحَسَنَةِۖ وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ ﴾ النحل: ۱۲۵

**ترجمه:** (اى پيغمبره د خپل رب دلارى په لور په حکمت او نيک اسلوب بلنه وکړه، او مباحثه کوه هغوئ سره په هغه طريقه چې هغه ډيره ښه وي).

او د زور دنه استعمال په هکله الله تعالى فرمايي: ﴿ لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشۡدُ مِنَ ٱلۡغَيِّۚ ﴾ البقرة: ۲۵٦

**ترجمه:** (نشته زور د دين په منلو کې. په تحقيق سره ښکاره شو هدايت له بې لارۍ څخه).

اسلام نامسلمانو خلکو ته د اسلام حقانيت او فضيلت بيانوي او دمنلو توصيه ورته کوي. خو په زور ئې هيڅکله منلو ته نه اړباسي. او که څوک اسلام نه مني هغوئ په خپل دين او طريقه پدې شرط پريږدي چې مسلمانان به کفر ته نه دعوت کوي. او د اسلامي نظام له انتظامي اصولو او لوائحو به سرغړونه نه کوي.

د اصحابورضي الله عنهم له زمانې راهيسې تر ننه پوري په اسلامي نړۍ کې د مسيحيانو،يهوديانو، هندوانو، او نورو طائفو شتون په دې دلالت کوي چې اسلام هغوئ په مسلمانيدلو نه دي مجبور کړي، بلکه هغوئ ته ئې په خپل دين د آزاد پاتې کيدلو حق ورکړی دی.

خو په اسلام کې په هيڅ ډول يوه مسلمان ته دا اجازه نشته چې هغه له اسلام څخه مرتد شي. ځکه چې مرتد له اسلام څخه د وتلو په عمل په اسلام باندې د بطلان حکم کوي. که داسې نه وي نو بيا ولى له اسلام څخه خارجيږي، دا چې هغه پدې کار سره په حق دين د باطل حکم کوي

او په اسلامي ټولنه کې اضطراب رامنځته کوي، نو ځکه باید تر استتابې وروسته که بیرته راونه ګرځید ووژلی شی. لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي ((**من بدّل دینه فاقتلوه**) بخاري، **ترجمه:** (چا چې خپل دین بدل کړ وئې وژنئ).

په اسلام کې د عقیدی آزادي د ډیموکراسۍ د عقیدې له آزادۍ سره د رڼا او د تیارې فرق لري. خو هغه ډله غرب ځپلي علماء چې غواړي خلکو ته اسلام او ډیموکراسي یو شی وښئي په منافقانه ډول دغه دواړه آزادۍ یو ډول ښئي، تر څو خلکو ته د اسلام په قالب کې کفر ښائسته کړي.

## د رأیې د اظهار د آزادۍ مناقشه:

د ډیموکراسۍ له آزادیو څخه یوه هم د رایې (نظر) داظهار آزادي ده. په ډیموکراسۍ کې هر څوک حق لري چې خپل هر ډول نظر په آزادۍ بیان کړي، که څه هم چې هغه نظر د الهي وحیې او دیني مقدساتو په خلاف هم وي.

ددغې آزادۍ د ترلاسه کولو تصور ځکه په غرب کې راپیداشو چې ټول غرب د فرانسې تر انقلابه دمخه دکلیسا تر مطلقې دیني او فکري واکمنۍ لاندې اوسیده. دا چې کلیسا د انحراف او فکري استبداد اوج ته رسیدلې وه او هیچا ته ئې په دینیاتو، اخلاقیاتو، اجتماعي اصولو او حتی ساینس کې د رایې د اظهار حق نه ورکاوه، او که به چا د رایې داظهار جرات وکړ هغه به په ډول ډول سزاګانو محکومیده. له همدي امله اروپایانو دکلیسا د استبداد په خلاف آواز پورته کړ، او د تحریف شوي مسیحیت د کلیسا تسلط ئې له منځه یوور. اوپه هر څه کې ئې د نظر د اظهار آزادي تر لاسه کړه.

اروپایانو خو په هغه وخت کې دغه اقدام د یو باطل او تحریف شوي دین په خلاف وکړ، خو وروسته ئې دغه آزادي د یو (مقدس حق) په حیث دحق دین په خلاف هم استعمالول شروع کړل. ان تر دې چې د اسلام مقدسات ئې هم ددغې بې بندوباره آزدۍ تر برید لاندې

راوستل، او د اسلام د شریعت، قرآن او پیغمبرﷺ په خلاف ئې خپل له سپکاوی ډک اظهارات د رائې او بیان د آزادۍ دحق په نامه یاد کړل، چې پدې لړ کې دغه لاندې اقدامات په نږدې ماضي کې ټولې دنیا ولیدل:

١. هندوستاني مرتد سلمان رشدي چې د برتانیې تابعیت لري د غرب په هڅونه ئې د اسلام په خلاف خپل مشهور کتاب (شیطاني آیتونه) ولیکه. د ټولې دنیا مسلمانانو ته ئې سپکاوی وکړ،خو کله چې مسلمانانو له غرب څخه د هغه دمحاکمې غوښتنه وکړه، ټول غرب په یوه خوله دهغه له دې اقدام څخه دفاع وکړه. او دهغه دغه کار ئې د رایې او بیان د آزادۍ حق وګڼه. هغه ته ئې پناه ورکړه، او تر ننه ئې په خپل حفاظت کې ساتي. نه یوازې دا چې ساتي ئې، بلکه د برتانیې ملکې هغه په لویو شاهانه القابو هم په رسمي ډول ونازاوه. او دمسلمانانو دعواطفو هیڅ پروا ئې ونه لرله.

٢. تر سلمان رشدي وروسته بنګله دیشې مرتدې لیکوالې (تسلیمې نسرین) هم د رشدي په پله پل کیښود، او هغې ته هم غرب په خپلې غیږې کې پناه ورکړه. او دهغې اقدام ئې د نظر د اظهار په آزادۍ تعبیر کړ.

٣. هالنډي ژونالیست د قرآن د سپکاوي فلم جوړ کړ. کله چې مسلمانانو احتجاج وکړ دهالنډ صدراعظم د هالنډي ژونالست کار د رائې د بیان آزدي و بلله، او له هغه څخه یې دفاع وکړه.

۴. د قرآن کریم بل سپکاوي هغه ؤ چې غرب د (ربښتیني قرآن) په نامه له الحاد او سپکاوي ډک کتاب چې دقرآن کریم سورتونو ته په ورته شکل لیکل شوی ؤ رامنځته کړ، او په انټرنیټ کې ئې خپور کړ. او دا ئې هم د رایې داظهار حق وګڼه.

۵. ډنمارک یوه کاریکاتور جوړوونکي د اسلام پیغمبرﷺ ته منسوب له سپکاوي ډک کارتونونه جوړ کړل او خپاره ئې کړل. کله چې مسلمانانو په ټوله نړۍ کې احتجاج وکړ او دهغه رسام د

محاکمې غوښتنه ئې وکړه، د ډنمارک صدراعظم چې اوس د ناټو د ترون رئیس دی دکارتون جوړونکي څخه د ولتـي دفـاع وکـړه، او دهغه کار ئې د رائې د آزادۍ حق وباله. کله چې مسلمانانو خپل احتجاج ته نور هم زور ورکړ، او له اروپا یي مصنوعاتو سره ئې د پریکون اعلان وکړ، نو د ناټو د ترون رئیس د ډنمارک موقف د ټولې اروپا د موقف په حیث اعلان کړ. او پدې ډول هغه کارتونونه په مکرر ډول په نورو اروپا یي هیوادونوکې هم خپاره شول.

۶. په افغانستان کې چې دامریکا د پوځي شتون تر حمائې لاندې مرتد(پرویز کامبخش) د اسلام خلاف مضامین چاپ او خپاره کړل، او دمسلمانانو د شدید فشار په نتیجه کې محکمې هغه په ارتداد محکوم او بندي کړ، ټول غرب او غربي میډیا دهغه ترځنګ ودریده، او دهغه موقف ئې د رائې داظهار په آزادۍ تعبیرکړ، او د هغه د خوشې کولو هڅې ئې پیل کړې. چې په نتیجه کې ئې د اعدام حکم په حبس تبدیل شو. او کیدی شي چې څه موده وروسته په کومه بهانه له زندان څخه آزاد، او د بیان د آزادۍ په یوه قهرمان تبدیل شي[۱].

اسلام د رائې د اظهار د آزادۍ مخالف نه دې، بلکه دګمراه کوونکې رایې د اظهار مخالف دی. هغه رایه چې دحق دبیان او آزادۍ لپاره وي اسلام نه یوازې دهغې پلوی کوي، بلکه هغه یو عبادت بولي، او اظهار ته ئې خلک تشویقوي. که څه هم چې هغه دیو ظالم حاکم په مخکې وي. په هغه حدیث شریف کې چې ابوسعید الخدري رضی الله عنه روایت کړی رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

---

[۱]- کرزي د خپلو د وهم ځل انتخابیدلو په درشل کې هغه دیو فرمان په صادرولو آزاد کړ، او په درناوي د غربي حلقو لخوا له افغانستانه وویستلی شو.

((**إن من أعظم الجهاد كلمةعدل عندسلطان جائر**)) (الترمذي كتاب الفتن باب افضل الجهاد) **ترجمه:** (له لوی جهاد څخه یو دا دی چې دعدل خبره دې د ظالم پادشاه په مخکې وکړای شي).
او که څوک دحق د وینا له امله ووژل شي، هغه په اسلام کې له غوره شهیدانو څخه شمیرل کیږي. لکه چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي (**خير الشهداءحمزة بن عبدالمطلب ورجل قام إلى رجل فأمره ونهاه في ذات الله فقتله على ذالك**) (المستدرک للحاکم)
ترجمه (په شهیدانو کې غوره شهید حمزه بن عبدالمطلب او هغه سړی دی چې د الله ﷻ لپاره یو بل چاته په نیکۍ امر وکړي او له بدي څخه ئې منع کړي او هغه ئې بیا په دي کار ووژنی)
نو معلوه شوه چې په اسلام کې هر څوک بل چاته دحق وینا او نصیحت کولی شي. او باید وئې کړی. ځکه چې دین نصیحت دی. خو په ډیموکراسۍ کې انسان ته د هر څه دویلو او اظهار اجازه شته چې هغه حق وي او که باطل.
په هغو اسلامي هیوادونو کې چې غربي ډیموکراسي ورکښې حاکمه ده په ښکاره لیدلی کیږي چې هلته خلک یوازې د باطل داظهارولو حق لري او بس. او هر څوک چې دحق رایه اظهار کړي هغه له وژلو، تړلو، شړلو، او ډول ډول تهدیدونو سره مخ کیږي. دکفري نظریاتو د خپرولو لپاره ټول وسائل په کار اچول کیږي، خو دحق د اظهار لپاره هیڅ راډیو، تلویزیون، مجلې، اخبار، او نشریې ته اجازه نه ورکول کیږي. او که چیرې یو نیم ځای اجازه هم ورکړل شي بیا یې هم پالیسي، حدود، او موضوعات ورته د دولتي ادراو لخوا ټاکل کیږي چې تر هغو هاخوا ئې نشریات جرم ګڼل کیږي.

## د شخصي آزادۍ مناقشه:

د ډيموکراسۍ تر ټولو مهمه آزادي چې دډيموکراسۍ زړه بلل کيږي شخصي آزدي ده چې اخلاقی آزادي هم بلل کيږي.

دشخصي آزدۍ معنی دا ده چې انسان دخپل شخص (ذات) په اړه مکمله آزادي لري چې هر څه ورباندې کوي بی له کوم قيد او شرط څخه ئې وکولی شي. د ټولنې عرفونه، رسم او رواج، اداب او اخلاقي قوانين بايد له ژوند څخه دخوند داخستلو په لاره کې مانع ونه ګرځي. او فرد بايد پدې کار کې د هر چا له تسلط څخه آزاد وي.

ددغه ډول آزادۍ مطالبه هم په غرب کې د کليسا د طغيان او دخلکو په اجتماعي او اخلاقي ژوند باندې د شديد مراقبت عکس العمل وو. لکه څنګه چې خلکو د دين، عقيدې، او عبادت په مجال کې د کليسا تسلط ورختم کړ، همدا ډول ئې دکليسا اخلاقي څار او رقابت هم له منځه يووړ.

د فرانسي انقلاب دين له دولت څخه جلا کړ، او دسيکولريزم نظريه ئې ايجاد کړه. او تر هغې وروسته ئې د دين او د اخلاقو تر منځ هم بيلتون راوست. داخلاقو په ښه والي او بد والي باندې حکم کول د دين صلاحيت نه، بلکه د شخصي ذوق او سليقې کار وګڼل شو. پدې معنی چې هر هغه څه چې فرد ته ښه ښکاري هماغه ښه اخلاق دي. او څوک بايد پرې د اعتراض حق ونه لري. د همدغې شخصي آزادۍ د فلسفې دمنل کيدو له امله په غرب کې زنا، لواطت، سحاق، (ښځينه همجنس بازي) دنارينه له بل نارينه او د ښځې له بلې ښځې سره واده کول دا خلاقو خلاف کارونه نه ګڼل کيږي. او د غربي هيوادونو قوانين ورته اجازه ورکوي. دغه ټول کارونه د ډيموکراسۍ په فرهنګ کې تر هغه پورې جرم نه ګڼل کيږي چې تر څو په اجباري شکل نه وي تر سره شوي. او که په اجباري شکل ترسره شي نو بيا هم لدې امله جرم نه وي چې دغه کارونه حرام دي. بلکه لدې امله جرم ګڼل کيږي چې په اجباري شکل تر سره شوي دي.

د شخصي آزادۍ غربي معیارونو ته په پام سره په ډیموکراسۍ کې (امر بالمعروف او نهی عن المنکر) هیڅ ځای نه لري. او په همدې بنا چې په هر د ولت کې دیموکراسي عملي کیږي هلته د امربالمعروف او نهی المنکر حق په خپله په اتوماتیک شکل له منځه ځي. هلته به یا ډیموکراسي وي، او یا به امربالمعروف وي. دواړه په هیڅ صورت نشي جمع کیدلای. ځکه چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر اکثره په عباداتو او اخلاقیاتو پورې اړه لري. او په ډیموکراسۍ کې دغه دواړه شخصی امور دي چې بل څوک ورکښې د مداخلې حق نه لري.
په دیموکراسۍ کې د شخصي آزادۍ او اخلاقو فلسفه دانګریز فیلسوف هوبز (۱۵۸۸ - ۱۶۷۹م) په نظریاتو ولاړه ده چې وایي: دخیر معنی شهوت (خوند) دی. او دشر معنی نفرت (کرکه) ده. یعنی په هر هغه څه کې چې شهوت (خوند) موجود وي هغه دخیر کار دی. او په هر هغه څه کې چې نفرت (کرکه) موجوده وي هغه د شر کار دی. دخیر او د شر د معیارونو تعین د دین کار نه، بلکه دشخصي ذوق او غریزی کار دی.
دغه ډول شخصي آزادې نه یوازې دا چې په اسلام کې ځای نه لري بلکه د نورو ادیانو او سلیم فطرت سره هم مخالفت لري. نو په همدې بنا ډیموکراسي ددغه ډول آزدۍ د لرلو له امله هم صریح کفر ګڼل کیږي.

## دمسکن د انتخاب د آزادۍ مناقشه:

په ډیموکراسۍ کې هر انسان ته حق ورکړ شوي چې په هر ځای کې ئې چې زړه وي هلته واوسیږي. په همدې اساس غربي ډیموکراسي دا نه مني چې کفار دې له (جزیرة العرب) څخه وویستلی شي. او یا دې کفار د حرم په ساحه کې نه پریښودل کیږي. پداسې حال کې چې د عربو په جزیره کې د کفارو دنه پریښودلو صریح حکم په حدیث شریف کې راغلی دی. رسول الله ﷺ فرمایي ((**اخرجوا المشرکین و فی روایة:**

**اليهود و النصارى من جزيرة العرب**.....) بخاري: **ترجمه:** (مشرکان د عربو له جزيرې وباسئ) په بل روايت کې دی: (يهود او نصارى له جزيرة العرب څخه وباسی) له همدې امله عمر بن الخطاب رضی الله عنه په خپل خلافت کې ټول يهودان او نصارى له جزيرة العرب څخه وويستل. خو که په اوس وخت کې څوک له جزيرة العرب څخه د يهودو، نصاراؤ، او يا نورو کفارو د ويستلو مطالبه کوي، او يا ئې د ويستلو هڅه کوي هغوئ د ډيموکراسۍ د مخالفت په جرم محکوميږي، او د وژلو جواز ئې برابريږي

## د ملکيت د حق مناقشه:

دا چې غربي ډيموکراسي د کپيټاليزم (پانګه وال اقتصاد) د خوندي ساتلو لپاره رامنځته شوې ده، نو له همدې امله ورکښې فرد ته له هرې لارې د مال د ګټلو او په هر څه کې د مصرفولو مطلقه آزادي ورکړل شوې ده. د مال په ګټلو او مصرفولو کې ډيموکراسي هيڅ ديني او اخلاقي عامل ته د دخالت حق نه ورکوي. همدا دليل دی چې په ډيموکراتيکو هيوادونو کې پانګه وال د سود، احتکار، دمزدورانو د زبيښاک، او ان د نورو هيوادونو د استعمار، او د هغوئ د طبيعي زيرمو د غلا او لوټولو، او دجنګونو د رامنځته کولو له لارې دوسلو دخرڅولو او حربي فابريکو د چلولو په ذريعه خپله پانګه ډيروي، او بيا ئې په عيش او عشرت، قمار، فحشاء او بدخرڅيو کې مصرفوي.

خو په اسلام کې لکه څنګه چې د مال د ګټلو لپاره د حلالو لارو او وسايلو انتخاب ضروري دی، همدارنګه ئې د مصرفولو لپاره هم قيودوضع شوي دي.

اسلام د يو داسې متوازن اقتصادي نظام لرونکې دی چې نه لکه دپانګه وال نظام سرمايه د څو محدودو خلکو په منځ کې ساتي، او نه لکه کمونيزم چې افراد له شخصي ملکيت څخه محروموي. بلکه اسلام هم د سرمايې دلرلو حق ورکوي، او هم د بډايو خلکو په سرمايه کې د نيستمنو او غريبو خلکو حق تثبيتوي.

### دکار د حق مناقشه:

په ډيموکراسۍ کې انسان ته د هر ډول کار دکولو او پيشې د اختيارولو مطلق حق حاصل دي. خو په اسلام کې فرد يوازې دحلال او روا کار دکولو حق لري. او که چيرى داسې يو کار اختيار کړي چې له مسلمانۍ سره تضاد ولري لکه شرابخانه خلاصول، او يا د زنا اډه او داسې نور جوړول. په هغه صورت کې اسلام فرد ته ددغه ډول کار اجازه نه ورکوي. خو په ډيموکراسۍ کې دا هر څه کولای شي.

### د زده کړې د حق مناقشه:

په ډيموکراسۍ کې فرد ته د هر فن او علم د زده کړې مطلق حق حاصل دى. خو په اسلام کې فرد ته دداسې علومو او فنونو د زده کولو حق نه ورکول کيږي چې هغه له اسلام سره ټکر لري. لکه د کوډو (جادو، شعبده بازۍ. مداري ګري او داسې نور علمونه. اسلام د جادو زده کړه کفر بولي او مخنيوى ئې کوي.

# پارلمان د ډيموکراسۍ ممثله طاغوتی اداره

## پارلمان څه شي دی؟

پارلمان په ډيموکراسۍ کې د خلکو د منتخبو استازو هغه اداره ده چې دخلکو لپاره د قوانينو دجوړولو يا د تشريع، تحليل، او تحريم مطلق حق لري. دا کسفورډ قاموس د (پارلمنټ) کلمه داسې تشريح کوي:

Parliament: a group of people that makes the lows of a Country

پارلمنټ د خلکو هغه ډله ده چې ديوه هيواد لپاره قوانين جوړوي.

په تيرو بحثونو کې وليدل شول چې په ډيموکراسۍ کې دخلکو اکثريت د (اله) مرتبه لري. ځکه چې د سيادت (اعلی حاکميت) حق چې د امر او نهی، تحليل او تحريم مطلق حق دی په اکثريت پورې اړه لري. لکه څنګه چې په دين کې د الله ﷻ فيصله نشي رد کيدلی همدا ډول په ډيموکراسۍ کې داکثريت فيصله نشي رد کيدلی.

دا چې اکثريت په ډيموکراسۍ کې د الله مرتبه لري، نو پارلمان چې د اکثريت استازی دی، د پيغمبرۍ (استازيتوب) مرتبه لري. پدې معنی چې استازی به د خپلو موکلينو د خوښې مطابق قوانين ايجادوي او دهغوئ مصالح به تامينوی. ډيموکراسۍ چې اصلاً په سيکولريزم (لادينيت) ولاړه ده دحکومت او نظام په چارو کې دين ته د مداخلې حق نه ورکوي. نو په همدې اساس ټول هغه قراردادونه او مسودې چې د قانون کيدلو لپاره پارلمان ته د بحث او غور لپاره وړاندې کيږي بايد په ديني بنسټونو ولاړې نه وي. د ډيموکراسۍ له لارې طرحې، نظريات او مسودې تر هغه وخته د تطبيق وړ نه دي چې تر څو ئې د پارلمان لخوا د (قانونيت) حق نه وي تر لاسه کړی. ځکه چې په پارلمان کې قانون هغې مصوبې ته ويل کيږي چې د پارلمان دواړه جرګې ئې تصويب کړي، او جمهور رئيس ئې توشيح کړي. او ترڅو تر ئې چې دا مراحل نه وي طي کړي تر هغه پورې دتطبيق وړ نه ګڼل کيږي.

په ډیموکراسۍ کې پارلمان ته د هر فکر او نظر خلک دانتخاباتو له لارې ځان رسولی شي. کفر الحاد، یا کوم بل عقیدوي انحراف پارلمان ته د هغوئ د رسیدو مانع نه ګرځي. په همدې اساس چې هر څوک پارلمان ته ورسیږي هغوئ هلته د خپلې خوښې او نظریې مطابق قانوني طرحې پارلمان ته وړاندې کوي. او هغوئ د خپلو هر ډول افکارو او نظریاتو د بیان له امله تر عدلي تعقیب لاندې هم نشي راتلای، که څه هم چې هغه نظریات ددین په خلاف وي. همدغه صلاحیت دکرزی دحکومت د اساسي قانون په یوسل او یوومه ماده کې داسي بیان شوي دی:

(دملي شورى هیڅ غړی دهغې رایې یا نظریې له امله چې د وظیفې د اجرا په وخت کې ئې څرګندوي تر عدلي تعقیب لاندې نه نیول کیږي)

# پارلمان ولې طاغوتي اداره ده؟

۱. طاغوت په اسلامي شریعت کې هر هغه څه ته ویل کیږي چې پرته له الله ﷻ ئې عبادت کیږي.

عبادت یوازې لمانځه، روژې، زکات، حج او دعا ته نه ویل کیږي، بلکه دیوچا د تحلیل، تحریم او تشریع منلو ته هم ویل کیږي. دلیل ئې هغه حدیث شریف دي چې امام ترمذي، امام بیهقي او نورو محدثینو په خپلو سننو کې له عدي بن حاتم رضي الله عنه څخه روایت کړی دی. عدي بن حاتم د بنوطی د قبیلې د مشهور سخاوتمند حاتم طائي زوی ؤ. هغه مسیحیت منلی ؤ، او په شام کې ئې له اهل کتابو سره ګوزاره کړې وه. دخپلې خور په دعوت اسلام ته تشویق شو، پداسې حال کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم مجلس ته راغی چې د سرو زرو صلیب ئې په غاړه ؤ. هغه وایي: زه په داسې حال کې د رسول الله ﷺ مجلس ته

راغلم چې هغه مبارک د قرآن کریم دا آیت لوست: ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ التوبة: ٣١

**ترجمه:** (یهودو او نصارا ؤ خپل علماء او پیران له الله ﷻ پرته خدایان نیولی ؤ). عدي ﷺ وایې: ما ورته وویل: هغوئ خو ئې عبادت نه کاوه. رسول الله ﷺ و فرمایل: ولې نه، هغوئ حرام ورته حلال کړي او حلال ئې ورته حرام کړي وو، او خلکو ئې متابعت کړی وو، همدغه کار د هغوئ مشرانو ته دهغوئ عبادت کول وو.

٢. دا چې په ډیموکراسۍ کې حلال او حرام د تشریعي قوې (پارلمان) لخوا تعینیږي، او د پارلمان غړوته د قوانینو د وضع کولو مطلق حق ورکړی شوی دی، نو په همدې اساس دوئ ته (مشرعین) هم ویل کیږي. پداسې حال کې چې د حلال او حرام تعینول یوازې د الله ﷻ خصوصیت دی. او په دغه خصوصیت کې دبل هر چا ورګډول د الله ﷻ د تشریع په خصوصیت کې شرک ګڼل کیږي.

الله ﷻ تعالی فرمایي: ﴿ أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمۡ يَأۡذَنۢ بِهِ ٱللَّهُۚ ﴾ الشوری: ٢١

**ترجمه:** (آیا داسې شریکان لري چې هغه دین ئې ورته جوړ کړی چې الله ﷻ ئې اجازه نه ده کړي)

په ډیموکراسۍ کې ددین او اخلاقي امورو په اړه د حکم وضع کول هم د پارلمان کار دی.

دمثال په ډول که په غرب کې د پارلمان اکثریت غړي دا تائید کړی چې همجنس بازي رواه ده، نو بیا هغه یو روا او قانوني عمل ګڼل کیږي، او دهغه لپاره قوانین جوړیږي، او حقوق ئې تثبیتیږي. اویا

دا چې که زنا د طرفينو په موافقه وشي هيڅ جرم نه ګڼل کيږي. په اسلام کې دجرم او د سزا تعين شرعی کار دی، خو دا په ډيموکراسۍ کې د پارلمان حق دي نه د شريعت.

۳. په ډيموکراسۍ کې به د اختلاف په صورت کې منازعه د فيصلې لپاره شريعت ته نه بلکه اساسي قانون او نورو وضعي قوانينو ته وروړل کيږي، هغه چې د ډيموکراسۍ له اصولو سره سم وضع شوي دي. پداسې حال کې چې په اسلام کې د الله ﷻ له قانون او شريعت پرته بل هر قانون، شريعت، او د فيصلې مرجع ته ( طاغوت) ويل شوی. اومسلمانانو ته امرشوی چې په هغو کافر شي (وئې نه مني) او دهغو خلکو ايمان د درواغو ايمان بلل شوي چې په خوله وايې مؤمن يم، خو فيصله د الله ﷻ په قانون نه، بلکه د بل چا په قانون کوي.

الله ﷻ فرمايي: ﴿أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزۡعُمُونَ أَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدۡ أُمِرُوٓاْ أَن يَكۡفُرُواْ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيۡطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمۡ ضَلَٰلَۢا بَعِيدٗا ٦٠ وَإِذَا قِيلَ لَهُمۡ تَعَالَوۡاْ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ رَأَيۡتَ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودٗا ٦١﴾ النساء: ٦٠- ٦١

**ترجمه:** (آيا ته نه ګورې (ای محمد ه) هغه خلک چې ګومان کوي چې په هغه کتاب ئې ايمان راوړی چې نازل شوی د ی تا ته، او هم په هغه چې نازل شوی ؤتر تا دمخه، غواړي د فيصلې لپاره وړاندې شي طاغوت ته، پداسې حال کې چې دوئ ته امر شوی چې په طاغوت کافر شي. (وئې نه مني) او شيطان غواړي هغوئ ډير زيات ګمراهان کړي. او چې کله هغوئ ته وويل شي دالله ﷻ نازل کړي کلام او رسول

ته راشي (دفيصلې لپاره) نو ته وينې چې منافقان له تا څخه مخونه اړوی).
همدارنګه الله دهغو خلکو په هکله چې فيصله د اللهﷻ په قانون نه کوي داسې فرمايې:

﴿ وَيَقُولُونَ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَبِٱلرَّسُولِ وَأَطَعۡنَا ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٞ مِّنۡهُم مِّنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَۚ وَمَآ أُوْلَٰٓئِكَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ إِذَا فَرِيقٞ مِّنۡهُم مُّعۡرِضُونَ ﴿٤٨﴾ ﴾ النور: ٤٧- ٤٨

**ترجمه:** (او منافقان وايي چې مونږ په اللهﷻ او رسول ﷺ ايمان راوړی. او طاعت مو کړی دی. خو بيا ځيني خلک لدې وينا مخ اړوي، او نه دي دوئ مؤمنان. او کله چې هغوئ د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ په لور وبلل شي چې رسول ﷺ دهغوئ په منځ کې فيصله وکړي، نو ځينی ئې نابېره ډډه کوي)
خو که چيرې د اسلام کوم حکم له ډيموکراسۍ سره مطابق وي او د دوئ مقاصد ورڅخه په يو ډول ترسره کيږي، نو بيا هغه د اسلام حکم هم مني. ددې لپاره نه چې هغه د الله ﷻ واجب العمل حکم دی. بلکه ددې لپاره چې هغه د ډيموکراسۍ مطابق دی. پدې کار کې ډيموکراتان کټ مټ د الله ﷻ ددې وينا مصداق دي چې فرمايې:

﴿ وَإِن يَكُن لَّهُمُ ٱلۡحَقُّ يَأۡتُوٓاْ إِلَيۡهِ مُذۡعِنِينَ ﴿٤٩﴾ ﴾ النور: ٤٩

**ترجمه:** (که چيری حق د هغوئ په خوا وي نو بيا ښه غاړه ايښودونکي د پيغمبر په لور را روان وی).
د اسلامي نړۍ په ټولو هغو حکومتونو کې چې ځان ډيموکراتيک بولي فيصلې د الله د شريعت په خلاف دهغه اساسي قانون مطابق کوي چې د ډيموکراسۍ له اصولو سره سم جوړ شوی وي.

په دغو حکومتونو کې د اساسي قانون حرمت او قداست تر قرآن او حديث پورته وي.کله چيرې دکومې فيصلې په تائيد کې هرڅومره د قرآن،حديث او شريعت دلايل راوړل شي خو چې د اساسي قانون مطابق نه وي د منلو وړ نه ګڼل کيږي. او د پارلمان وکيلان هيڅکله داسې قوانين نشي تصويبولی چې د اساسي قانون د موادو مخالف وي. له همدې امله پارلمان يوه (طاغوته) اداره ده.

۴. که په کوم اسلامي هيواد کې چې په ډيموکراسۍ عمل کوي د پارلمان کوم غړی يا جهت چې د اسلام لپاره کار کول غواړي هم وغواړي د شريعت کوم حکم يا احکام د پارلمان له لارې د قانون په حيث عملي کړي نو بايدخپل پيشنهاد د مسودې په شکل پارلمان ته د بحث او رائې اخيستنې لپاره وړاندې کړی، چې يا به تائيديږي، او يا به رديږي. او د رد کيدلو په صورت کې به بيا دغه پيشنهاد ديوې ټاکلې مودې لپاره د دوهم ځل د بحث لپاره نه وړاندې کيږي.

په پورتني صورت کې د الله ﷻ حکم بشر ته د موافقې يا نه موافقې لپاره وړاندې کيږي چې وړاندې کوونکی او ردوونکی ئې دواړه له دين څخه وځي. ځکه چې وړاندې کوونکي دلته بل څوک د الله تعالی پر حکم (حَكَمْ) ګرځوي. او بل چاته حق ورکوي چې دالله ﷻ فيصله رد او يا تائيد کړي. پداسې حال کې چې الله ﷺ فرمائي دده فيصله هيڅوک نشي وروسته کولی: ﴿ وَٱللَّهُ يَحۡكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكۡمِهِۦۚ وَهُوَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ﴿٤١﴾ ﴾ الرعد: ٤١

**ترجمه:** (او اللهﷻ فيصله کوي (په هر څه چې اراده وفرمايي) نشته هيڅوک وروسته کوونکی دهغه د فيصلې. او هغه ډير زر حساب کوونکی دی).

همدارنګه الله ﷻ فرمايي: ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ۗ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًا مُّبِينًا ﴿٣٦﴾ ﴾ الأحزاب: ٣٦

ترجمـــه : (او نه ده روا هيڅ مؤمن سړي او مؤمنې ښځې ته چې فيصله وکړي الله ﷻ او رسول ﷺ ئې په يو کار کې چې وي دې دوئ ته اختيار په خپل کار کې. او هر څوک چې نافرماني کوي د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ په يقين سره هغه ګمراه شو په ګمراهۍ ښکاره.

په دغه ډول پارلماني جريان کې د الله ﷻ د حکم رد کوونکی د رد له امله کافر کيږي، او وړاندې کوونکې ئې له دې امله له دين څخه ووځي چې بل چا ته د الله ﷻ پر فيصلې د پاسه د بلې فيصلې په حق قائل دي. په دې هکله همدغه فهم دعمربن الخطاب رضي الله عنه له هغه عمل څخه هم څرګندیږي چې د يوه منافق چې له يوه يهودي سره ئې منازعه وه، او رسول الله ﷺ د يهودي په حق کې فيصله وکړه خو منافق په هغې فيصلې قناعت ونه کړ، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم فيصله ئې عمر رضی الله عنه ته يوړه. کله چې عمر رضی الله عنه پوه شو چې په دې منازعه کې رسول الله ﷺ يو ځل فيصله کړې ده او منافق د رسول الله ﷺ پر فيصلې د پاسه دعمر فيصله غواړي. نو ځکه ئې هغه مرتد و باله او سرئې ترې پرې کړ. رسول الله صلی الله عليه وسلم نه يوازې دا چې پدې کار عمر رضي الله عنه ملامت نه کړ. بلکه هغه ته ئې د فاروق لقب هم ورکړ.

په اسلام کې لکه څنګه چې د لمانځه، روژې، زکات او حج حکم د اکثريت د فيصلې لپاره نه وړاندې کيږي او راساً ئې د تطبيق امر شوی، همدا ډ ول حدود ،حجاب، قصاص، مولاة الکفار حراموالی، او نور احکام هم د تطبيق لپاره د اکثريت رايې او فيصلې ته نه وړاندې

کیږي. خو په ډیموکراسۍ کې دغه کار د ډیموکراسۍ د اصولو خلاف او دنه منلو وړ دی.

# په ډیموکراسۍ کې د مشارکت په هکله شبهې او ځوابونه

ځینې اسلام ته منسوب علماء چې یا د غرب له فکري تاثیر لاندې راغلي دي او یاهم دجهاد او قربانیو د نبوي منهج له لارې د اسلامي حکومت د رامنځته کولو له طریقې سره نا آشنا دي، او یا هم په هر ډول حکومت او شرایطو کې د حکومتونو له رعایتونو او امتیازاتو برخمن کیدل غواړي، که څه هم چې په هر قیمت وي. دافغانستان په اوسنۍ دامریکایانو په زور راغلې ډیموکراسۍ کې هم ډیرو تش په نامه اسلامي تنظیمونو، ډلو، او اشخاصو همدا لاره نیولې ده. دغه خلک په ډیموکراتیکو حکومتونو او پارلمانونو کې د ورګډیدو لپاره په اسلامي شریعت کې د خپل دغه کار لپاره ځینې شبهې دلایل تراشي، او په بې ځایه استدلالونو او د شبهاتو په راولاړولو د ځان لپاره په ډیموکراسۍ کې د کار کولو جوازونه برابروي چې ځینې ئې په لاندې ډول دي:

د افغانستان په اوسنۍ د امریکایانو په زور راغلې ډیموکراسۍ کې هم ډیرو تش په نامه اسلامي تنظیمونو، ډلو او اشخاصو همدا لاره نیولې ده.

## لومړۍ شبهه- یوسف علیه اسلام د مصر له بادشاه سره کار کړی دی

**ځینی خلک استدال کوي چې یوسف علیه السلام پداسې حال کې چې د الله پیغمبر ؤ دمصر له کافر بادشاه سره ئې دهغه په حکومت کې د وزیر په حیث کار کړی دی. نو له همدې امله اوس هم مسلمانان کولی شي چې په یو کافر نظام کې کار وکړي.**

په پورتنۍ دليل په ډيموكراسۍ كې د كار لپاره استدلال كول د لاندې وجوهاتو له امله باطل دي:

**الف:**- اوسني پارلمانونه شركي او طاغوتي پارلمانونه دي. او دليل ئې دا دی چې پارلمان ته د تشريع، تحليل او تحريم حق وركړل شوی دی. پداسې حال كې چې (تشريع) او(تحريم) يوازې او يوازې د الله ﷻ حق دی. خو په ډيموكراسۍ كې دغه حق په ولس پورې اړه لري چې پارلمان ئې ممثل دی.

په اسلام كې د اعلی حاكميت او تشريع حق هيڅ شريک نه مني. خو په ډيموكراسۍ كې نه يوازې دا چې حلال او حرام ګرځول دولس د اكثريت حق دی، بلكه په قطعي ډول ئې الله ﷻ له دغه حق څخه د دوئ په زعم محروم كړی دی.

په همدی بنا اسلام يو دين، او ډيموكراسۍ يو ځانګړی بل دين دی. او په دواړو كې د تشريع مصادر جلا جلا دي. په اسلام كې د تشريع مصدر (الهي وحيې) او (رسول) دي. خو په ډيموكراسۍ كې د تشريع مصدر د خلكو خواهشات او هوسونه دي. او الله ﷻ ته يوازې د اسلام دين دمنلو دی. الله فرمايي: ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَـٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴿٨٥﴾ ﴾ آل عمران: ٨٥

**ترجمه:** (اوهرڅوک چې پرته له اسلامه بل دين غوره كړي هيڅكله به ورڅخه ونه منل شي او هغه به په آخرت كې له زيان كارانو څخه وي.

نو آيا څوک داسې تصور كولی شي چې يوسف عليه السلام به له اسلام پرته بل دين منلی وي؟ او يا به ئې دخپلو موحدو نيكونو له ملت څخه پرته بل ملت غوره كړی وي؟ او يا به ئې دهغه د احترام او پاسدارۍ سوګند پورته كړی وي؟ او يا به ئې هم دهغه مطابق قانون ګذاري كړې وي؟ لكه څنګه چې د اوسنۍ زمانې دپارلمانونو حال دی؟

یوسف علیه السلام خو لا د بندی توب او بې وسۍ په وخت کې چې هیڅ ئې په واک کې نه ؤ له شرک او مشرکینو څخه د بیزارۍ اعلان کړی ؤ. لکه چې قرآن فرمايي: ﴿إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَهُم بِٱلْآخِرَةِ هُمْ كَٰفِرُونَ ﴿٣٧﴾ وَٱتَّبَعْتُ مِلَّةَ ءَابَآءِيٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ ۚ مَا كَانَ لَنَآ أَن نُّشْرِكَ بِٱللَّهِ مِن شَيْءٍ ۚ﴾ یوسف: ۳۶- ۳۸

**ترجمه:** (بیشکه ما پرې ایښی دی دین دهغو خلکو چې ایمان نه راوړي پر الله ﷻ او حال دا چې دوئ په آخرت همدوئ کافران دي. او متابعت کړی دی ما د دین دخپلو پلرونو چې ابراهیم، اسحق، او یعقوب دي. نه ښايي مونږ ته چې شریک ونیسو په الله ﷻ پوری کوم شی).

وروسته یوسف علیه السلام د شرک او د توحید دحقیقت بیان کوي، او دا اعلانوي چې حکم به یوازې د الله تعالی ﷻ چلیږي، او عبادت باید یوازې د الله ﷻ وشي.

لکه چې قرآن فرمايي: ﴿يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجْنِ ءَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّارُ ﴿٣٩﴾ مَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ أَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوهَآ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَٰنٍ ۚ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۚ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّآ إِيَّاهُ ۚ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٤٠﴾﴾ یوسف: ۳۹- ۴۰

**ترجمه:** (ای زما د زندان دوا ړو ملګرو! آیا متفرق خدایان غوره دي که هغه الله ﷻ چې یو دی؟ ډیر قوي غالب دی. عبادت نه کوئ تاسې غیر له الله مګر دڅو نومونو چې نومونه مو ایښي دي دهغو تاسو او ستاسو پلرونو. نه دی رالیږلی الله ﷻ پر عبادت دهغوئ کوم دلیل او سند. نه دی حکومت د هیچا، مګر خاص د الله ﷻ دی. امر ئې کړی په دې چې عبادت مه کوئ تاسې مګر یوازې د همده. دغه سم دین دی، خو زیات خلک نه پوهیږي).

نو آیا دا کیدی شي چې یوسف علیه السلام دې د بند او ضعف په وخت کې شرک په لوړ آواز ردوي، او حکومت دې یوازې د الله ﷻ ګڼي. او بیا دې د آزادۍ او قوت په وخت کې دغه حقیقت پټوي. او د پادشاه په دین دې فیصلې کوي؟ پداسې حال کې چې الله تعالی ﷻ په زمکه کې (تمکین) هم ورکړ ی وو؟

یوه بله خبره چې د یادولو وړ ده هغه دا ده چې په پارلمان او وزارت کې فرق موجود دی. پارلمان شریعت او قوانین جوړوي، او وزارتونه ئې تنفیذوي. نو هغه خلک چې په اوسنیو پارلمانونو کې د الله ﷻ د دین په خلاف قوانین جوړوي او تصویبوي ئې دهغوئ جرم تر هغو ډیر دی چې جوړ کړي قوانین عملي کوي. نو پدې اساس دهغو خلکو استدلال چې د یوسف علیه السلام په عمل ئې پارلمان ته ور تللو لپاره کوي صحیح نه دی. خو دا پدې معنی نه ده چې پارلمان ته ورتګ دې ناجائز او وزات قبلول دې جائز شي.

په اوسینو طاغوتی نظامونو کې چې د الله ﷻ له دین سره ئې جګړه اعلان کړې ده، د الله ﷻ له دوستانو سره جنګیږي، او د الله ﷻ له دښمنانو سره دوستۍ او ایتلافونه کوي، د وزارت قبلول هم حرام او د یوسف علیه السلام په عمل استدلال باطل دی. ځکه چې په اوسینو حکومتونو کې وزیران هم دهماغه اساسي قانون د پاسدارۍ او احترام سوګند پورته کوي چې د ډیموکراسۍ دکفر په بنسټ جوړ شوی وي.

پداسې حال کې چې الله ﷻ په دغه ډول طاغوتی (حکم) باندې د کافر کیدلو امر کړی دی لکه چې الله فرمايي:

﴿ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدۡ أُمِرُوٓاْ أَن يَكۡفُرُواْ بِهِۦ ﴾ النساء: ٦٠

**ترجمه:** (غواړي چې خپله دعوی د فیصلې لپاره طاغوت ته یوسي. پداسې حال کې چې دوئ ته امر شوی چې په هغه (طاغوت) دې کافر شي

اوس که څوک دا گومان کوي چې یوسف علیه السلام به هم همدغه ډول دطاغوتي قانون دمنلو، پاسدرای، او احترام سوگند پورته کړی وي پداسې حال کې چې الله ﷻ له هغه څخه بدي اړولې وه. او هغه یې له خپلو مخلصو بندگانو گرځولی ؤ. نو یقیناً چې ددغه گومان کوونکي به د الله ﷻ په یوه پیغمبر د درغو ویونکی، تر ټولو بد کافر، او له اسلامي ملت څخه وتلی انسان وي.

ب: په اوسنیو حکومتونو کې وزیران دوضعي کفري قوانینو منونکي او منفذین دي. په هر څه کې باید دوضعي قوانینو پابند وي. نو آیا دیوسف علیه السلام په هکله داگومان کیدلی شي چې– معاذ الله– هغه به ددغه ډول وضعي کفري ظالمواو باطلو قوانینو پابندؤ؟ که څوک دهغه په هکله دغه ډول گومان کوي او بیا دهغه په فعل استدلال کوي، نو په یقیني ډول به هغه د الله Ψ یو پیغمبر د کفري قوانینو په منلوتورن کړی وي. چې دا کار په خپله کفر او د اسلام له دین څخه وتل دي. ځکه چې الله تعالی انبیاء د دې لپاره خپلو امتونو ته رالیږلی دي چې هغوئ ته د طاغوت د پریښودلو او یوازی د الله ﷻ د احکامو د منلو تعلیم ورکړي. الله ﷻ فرمایې:

﴿ وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٖ رَّسُولًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱجۡتَنِبُواْ ٱلطَّٰغُوتَۖ ﴾ النحل: ٣٦

**ترجمه:** په یقین سره مونږ رالیږلی په هر امت کې رسول ددې لپاره چې خلکو ته ووایي د الله ﷻ عبادت وکړئ. او طاغوت څخه ځان وساتی).
او همدغه پیغام د یوسف علیه السلام درسالت هم ؤ. نو دا څنګه کیدای شي چې یوسف علیه السلام دی له پیغمبری سره سره د طاغوت قانون منلی او فیصلې دې ئې دهغه مطابق کړي وي؟.
ج: دیوسف علیه السلام وزارت هغه ته د اللهﷻ له لوري په زمکه کې تمکین ؤ. هغه د الله ﷻ دحکم مطابق فیصله کوله. ځکه هغه ته هیڅا ضرر نشو رسولی. نه چالیرې کولی شو. او نه ئې په کومه فیصله مجبورولی شو. او همدغه د (تمکین فی الارض) معنی ده.
نو آیا د نن زمانې په طاغوتي حکومتونو کې هم وزیران همدغه ډول مطلق صلاحیتونه لري؟ ترڅو د یو سف علیه السلام په وزرات ئې قیاس صحیح شي؟ د نن وزیران خو په ټوله معنیٰ دطاغوتي قوانینو په بندونو داسې تړل شوي چې د اسلام په ګټه هیڅ حرکت ورڅخه نشي کولی.
یوسف علیه السلام دخپل کار په تر سره کولو کې له هر ډول عدلي تعقیب او څارنې څخه آزاد وو. ځکه چې کله چې بادشاه یوسف علیه السلام له زندان څخه راوویست او یوسف علیه السلام هغه ته خپلې خبرې وکړې، نو بادشاه ئی په خبرو دومره قانع شو چې هغه ته یې وویل ﴿ إِنَّكَ ٱلۡيَوۡمَ لَدَيۡنَا مَكِينٌ أَمِينٞ ﴿٥٤﴾ ﴾ یوسف: ٥٤

**ترجمه:** (بې شکه ته نن ورځ په نز د زمونږ خاوند د مرتبې او امانتګرئې). مفسرین لیکې چې تر دې وروسته د مصر بادشاه هسې تش په نامه بادشاه وو، او نور ټول کارونه یوسف علیه السلام اجرا کول، او د (عزیز) په نامه به یادیده. ځینې علماء لادا هم وایې چې هغه پادشاه د یوسف علیه السلام په لاس مسلمان شو او تر دې وروسته د یوسف علیه السلام په دین چلیده.

نو آيا په اوسينو طاغوتي حکومتونو کې هم صالحو مسلمانو وزيرانو ته همدغه مرتبه حاصله ده؟ او که د نن وضعيت د يوسف عليه السلام تر وضعيته بدل وي نو بيا خو قياس نه دی صحيح.

**د**: الله تعالی د يوسف عليه السلام په هکله د تمکين خبره ذکر کړې ده:

﴿ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ يوسف: ٢١

**ترجمه :** (او همدغه ډول مو يوسف عليه السلام ته تمکين په زمکه کې ورکړ) د تمکين لفظ په دې آيت کې مجمل دی. خو په بل ځای کې الله تعالی د دغه اجمال تفصيل داسې بيان کړی دی: ﴿ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُواْ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَنَهَوۡاْ عَنِ ٱلۡمُنكَرِۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلۡأُمُورِ ﴿٤١﴾ ﴾ الحج: ٤١

**ترجمه:** (هغه کسان که چيرې ورکړو مونږ دوئ ته په زمکه کې تمکين نو قائموي دوئ لمونځ او ورکوي زکات او امر به کوي خلکو ته په نيکۍ او منع کوي به خلک له بدي، او خاص د الله ﷻ په اختيار کې ده آخره خاتمه د ټولو کارونو).

دا چې د يوسف عليه السلام په هکله هم الله ﷻ هغه ته د تمکين خبره کړې ده، نو يقيناً يوسف عليه السلام هم له همدغو خلکو څخه ؤ چې د قدرت په وخت په خلکو لمنځونه دروي، زکات ورکوي، امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوي. او پدې لړ کې تر ټولو لوی معروف توحيد او تر ټولو لوی منکر شرک دی. هغه عليه السلام د خپلو پلرونو دحق دين اتباع کوله او په هغه ئې فيصله کوله. په هغه قانون ئې هيڅکله فيصله نه کوله چې الله ﷻ نه وو نازل کړی. او نه ئې هم د الله ﷻ د قانون خلاف د نورو قوانينو جوړولو ته اجازه ورکوله. او که

څوک دهغه علیه السلام په هکله ددې په خلاف عقیده ولري هغه مسلمان نشي پاتي کیدی.
د اوسنۍ زمانې په طاغوتي حکومتونو کې که کوم وزیر یوازې د اسلام لپاره یو ادنی کار هم وکړي نو فوراً له وظیفې څخه برطرف کیږي، او یا اساسي قانون او حکومت ته د خیانت په جرم زندان ته ورغورځول کیږي. او که چیری ټول حکومت او وزارتونه دانتخاباتو له لارې هم دمسلمانانو لاس ته ورشي بیا هم ورته د حکومت کولو فرصت نه ورکول کیږي. لکه چې د اسلامي نړۍ په ځینې دولتونو کې ولیدل شول. نو په همدې اساس د یوسف علیه السلام په کار استدلال کول یوازې یوه بهانه ده او بس.

## دوهمه شبهه – د نجاشي (رض) په عمل استدلال

**ځیني هغه مسلمانان چې په زړونوکې ئې د ډیموکراسۍ مرض ځای نیولی په ډیموکراتیکو نظامونوکې د خپل مشارکت لپاره دنجاشي رضی الله عنه په عمل استدلال کوي، او وائې چې نجاشي سره لدې چې یو مسلمان پادشاه وو خو اسلامي حکومت ئې نه وو نافذ کړی. او بیا هم رسول الله ﷺ هغه ستایلی او هغه ته ئې (عبدصالح) ویلي، او په هغه ئې غایبانه جنازه هم کړې ده. نو که په اوس وخت کې هم کوم پادشاه اسلامي نظام نافذ نه کړي، او یا نور مسلمانان په یو غیر اسلامي نظام کې برخه واخلي څه ناروا خبره نه ده.**

**نجاشي (رض) څوک ؤ؟:**

نجاشي (رض) د حبشې هغه پادشاه وو چې د نبوت په پنځم کال ئې هغومسلمانو مهاجرینو ته پناه ورکړه چې رسول الله ﷺ له مکې مکرمې څخه ورلیږلي ؤ. دې پادشاه د همدغو مهاجرینو په لاس اسلام قبول کړ او مسیحیت ئې پریښود. مهاجرین ئې په عزت او احترام وساتل. کله چې قریشو د مهاجرینو د بیرته ورسپارلو په هدف یو دوکسیز وفد هغه ته له ډیرو سوغاتونو سره ور ولیږه، له مناقشې او تحقیق وروسته ورته

ښکاره شوه چې قریش ظالمان دي، باید مهاجرین ور ونه سپارل شي. هماغه ؤ چې د قریشو وفد ئې نامراده رخصت کړ. او وروسته ئې رسول الله ﷺ ته خبر ور ولیږه چې ده د جعفر (رض) په لاس اسلام قبول کړی، او له رسول الله ﷺ سره ئې دهغه په واسطه بیعت کړی دی. او بیا ئې په یوه مرحله کې خپل زوی د یو لوی وفد په ملګرتیا د رسول الله ﷺ د تائید او نصرت لپاره ور ولیږه. او ترې وئې غوښتل چې که رسول الله ﷺ غواړي نومدینې منورې ته به هجرت وروکړي. رسول الله ﷺ هغه ته دعاوکړه او چې کله وفات شو په مدینه منوره کې ئې د هغه غایبانه جنازه هم وکړه.

دا چې اوس ځینې خلک دا استدلال کوي چې هغه مسلمان وو خو اسلامي شریعت ئې نه وو نافذ کړی، نو که دوئ هم دا کار وکړي هیڅ باک نه لري. دغه استدلال له څو وجهو باطل دی.

١. پدی اړه چې هغه اسلامي شریعت نه وو نافذ کړی ددې دعوی له لرونکو سره هیڅ قطعي د اعتبار وړ دلایل نشته.د نجاشي (رض) غائبانه ایمان راوړل، او د مسلمانانو له ځان سره خوندي کول، دخپلو بطریریکانو (مسیحي علماؤ) مخالفت، او رسول الله ﷺ ته خپل زوی او شپیته کسان د تائید او نصرت لپاره ورلیږل، دا ټول پدې دلالت کوي چې هغه دې د مسلمانۍ په حالت کې د طاغوت په حکم او نظام فیصلې ونه کړي.

٢. دنجاشي (رض) په وضعیت استدلال کول قیاس دی. قیاس په اصولو کې دې ته وایي چې یوه داسې حادثه چې د شرع نص دهغې په هکله موجود نه وي دیوې بلې داسې حادثې حکم په هغې ولګولی شي چې دشرع نص دربارندې موجود وي. خو شرط ئې دا دی چې د دواړو حادثو تر منځ مشترک علت موجود وي. او د دواړو ترمنځ فرق موجود نه وي. او د قیاس له شرطو نو څخه یو دا هم دی چې: هغه فرع چې په اصل قیاس کیږي په هغې کې نص موجود نه وي.

دلته اوس دنجاشي (رض) عمل اصل ګرځول شوی، او په اوسني زمانه کې په ډیموکراتیک حکومت کې مشارکت فرع ګرځول شوی. او د دواړو ترمنځ د شریعت نه تنفیذول مشترک علت ګرځول شوي دی. خو دغه قیاس ځکه صحیح نه دی چې دلته د فرع په هکله صریح نصوص وجود لري، او هغه دا چې هرڅوک چې شریعت (حَکَم) ونه ګڼي هغه مسلمان نشي پاتې کیدی. لکه چې الله ﷻ په صراحت فرمایي:

﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾ ﴾ النساء: ٦٥

**ترجمه:** (قسم دی په رب ستا چې نه مؤمنان کیږي دوئ تر هغه پورې چې (حَکَمَ) فیصله کوونکی کړي تا په هغو شخړو کې چې پیښې شوي د دوئ په منځ کې. اوبیا ونه مومي دوئ په خپلو زړونو کې ناراضي ستا له فیصلې، او ومني دوئ ستا خبره په منلو سره (بې له جګړې). او همدارنګه الله ﷻ فرمایي: ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَن يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾ ﴾ النساء: ٦٠

**ترجمه:** (آیا نه ګورې هغه خلک چې ګومان کوي چې ایمان ئې راوړی پر هغه کتاب چې نازل شوی دی تا ته، او پرهغه چې نازل شوی وو تر تا دمخه. غواړي دفیصلې لپاره وړاندې شي طاغوت ته، پداسې حال

کې چې دوئ ته امر شوی چې پر طاغوت کافرشي (وئې نه مني) او شيطان غواړي هغوئ ډير زيات ګمراهان کړي).
نو آيا دا روا ده چې د شرعي نص له شته والي سره دې په قياس عمل وکړو؟ پداسې حال کې چې اصولي قاعده دا ده چې د نص له شته والي قياس صحيح نه دی.

۳. د نجاشي (رض) په وخت کې شريعت مکمل شوی نه وو. او نه هغه ته د مسافې د ليرې والي، او مواصلاتو دنشتوالي له امله دهرې ورځې، هفتې، او مياشتې، احکام ور رسيدل. هغه په هغومره څه مکلف وو چې ورسيدلي وو. خو اوس چې شريعت مکمل دی او ټول شريعت په يو ځای مونږ ته رارسيدلی دی نو د ډيموکراسۍ عاشقان څنګه اوسنی مکمل شريعت پريږدي او دهغه وخت پداسې يو عمل استدلال کوي چې لا هغه وخت شريعت نه ؤ مکمل شوی.

## دريمه شبهه- ډيموکراسۍ ته د شورئ نوم ورکول

**سيکولر او غرب ځپلي عناصر چې په اسلامي نړۍ کې د ډيموکراسۍ دخپرولو او نافذولو په هڅه کې دي غواړي د مسلمانانو د تير ايستلو په هدف غربي بې دينې ډيموکراسۍ ته د اسلام د (شورئ) نوم ورکړي. او په دروغو تبليغات کوي چې ډيموکراسي د شوری يو مترقي شکل دی، او په عملي کيدلو ئې داسلام شواريي نظام عملي کيږي.**

امريکا او نورو صليبي ملګرو ئې چې کله افغانستان د بې دريغه او سختو بمباريو، او د داخلي منافقو اوجاسوسو ډلو ټپلو په مټ تسخيرکړ، او د لسګونو زرو مسلمانانو له وژلو وروسته ئې وغوښتل دلته يو غلام او بې واکه حکوممت جوړ کړي، او بيا دهغه له لارې خپل پوځي اشغال ته د جواز دلايل برابر کړي، دلته ئې هم د ډيموکراسۍ نغاره وډنګوله، او يو څو اجير، په ډالرو اخيستل شوي، او له غرب څخه يو څو راصادر شوي سيکولر افغانان ئې له کمونستانو او د هغوئ له ملګرو مليشه ډلو سره د ډيموکراسۍ په وندر وتړل، او د

هغوئ په سر ئې هم د ﴿ وَأَمۡرُهُمۡ شُورَىٰ بَيۡنَهُمۡ ﴾ مبارک آیت په هغه خیمه کې لیکلی ؤ چې دهمدغو اشغالګرو لخوا ئې په سر دلویې جرګې په نامه درولې وه.
ډیموکراسۍ ته دشورئ په نوم ورکولو هغه نه اسلامي کیږي. لکه څنګه چې شراب د (روحي مشروباتو)، او زنا د (جنسي تقاضا) په نومونو نه حلالیږي.
د اسلام د شورئ او د ډیموکراسۍ د پارلمان تر منځ د حق او د باطل توپیرونه دي چې ځینې ئې په لاندې ډول یادوو:

# د پارلمانې رایې اخیستنې او د اسلام د شورئ ترمنځ توپیرونه

اول توپیر:
د اسلام شورې د مؤمنو، موحدو، او شریعت منونکو مسلمانانو تر منځ وي، پداسې حال کې چې پارلماني رایې اخیستل د داسې یو مجلس داعضاؤ تر منځ وي چې په هغه کې مسلمان، هندو، مسیحي، یهودي، کمونست او ملحد ټول په یو ډول د رایې ورکولو حق لري، او فیصله ورکښې دحق او د دلیل د قوت پر بنسټ نه، بلکه د اکثریت پر بنسټ کیږي. قرآن چې کله د شورئ آیت ذکر کوي، د داسې مؤمنانو لپاره ئې دوصف په ډول ذکر کوي چې هغوئ په الله ﷻ ایمان راوړی دی، او په اللهﷻ توکل کوي، له لویو ګناهونو او د بې حیایۍ له کارونو ځان ساتي، او چې کله په قهر شي بښنه کوي. او هغه چې د رب بلنه ئې منلې او لمنځونه درولي، او کارئې په شورئ سره وي. او دالله ﷻ له ورکړې انفاق کوي. او چې کله تیری پرې وشي بدل اخلي.

قـــرآن مجیـــد وایـــي: ﴿ وَأَمۡرُهُمۡ شُورَىٰ بَيۡنَهُمۡ ﴾، خـــو ډیموکراســـي او پارلماني رایـه اخیسـتنه وایـې: (وأمرهم شورى بينهم وبين غيرهم ). یعنې په اسلام کې به شوری یـوازې د مؤمنـانو تـر منځ وي، خو پـه ډیموکراسۍ کې به شوری دمؤمنـانو او کـافرو ټولـو تـر منـځ وي. نـو پـه همـدې اسـاس د اسـلام شـوری او ډیموکراسـۍ دواړه یـو شـی ګڼـل پـه حقیقت کې دحق او باطل یوشی ګڼل دي.

دوهم توپیر:

د اسلام شوری یو الهي حکم او منهج دي چې په وحیـې نـازل شـوی، او د الله رسولﷺ عملي کړی دی. خو ډیموکراسي د بشـر لخـوا دهـوی او هـوس پـر بنسـټ دکفـارو لخـوا یـو وضـع شـوی نظـام، او یـوه بـې دینـه مفکوره ده.

دریم توپیر:

د اسلام شوری په هغو امورو کې کیږي چې هلته (نص) موجـود نـه وي. او چـې کلـه نـص موجـود شـي بیـا شـوری تـه ځـای نشـته. خـو پـه ډیموکراسۍ کې اساساً د الله احکـامو او شـریعت تـه ځـای نشـته. ځکـه چې پـه ډیموکراسۍ کې دحاکمیـت او تشـریع حق پـه مطلـق ډ ول پـه ولس پورې اړه لري چې اکثریت ئې تمثیلوي.

څلورم توپیر:

پـه ډیموکراسۍ کې (اکثریـت) د(الله) مرتبـه لـري چې بایـد پـه خپلـه خوښه قوانین جوړ کړي، او دقوانینو په وضع کې هیڅ خـارجي طاقـت (وحیـه) د مـداخلې حق نـه لـري. خو د اسـلام پـه شـوری کې اکثریت نـه یوازې دا چې (مُشَرِّع) او (مُطَاع) نـه دی. بلکـه مـامور، ملتـزم او مطیع دي چې په هر څه کې به د اللهﷻ او د هغـه د رسـول ﷺ خبره او د (اولامـر) خبره مني، تر څو ئې چې ورتـه د معصیت امـر نـه وي کړی. پـه شـوری کې امـام پـه هرڅـه کې د اکثریـت د حکـم پـه منلـو ملـزم نـه دی، بلکـه

اکثریت د امام په طاعت ملزم دی. تر هغه وخته چې طاعت په معروف کې وي.

**پنځم توپیر:**

په ډیموکراسۍ کې دقانون مصدر دخلکو خواهشات، او دحق معیار د (اکثریت) رایه ده. خو د اسلام په شورى کې اکثریت د احکادموپه وضع او معیاریت کې هیڅ دخل نه لري. بلکه د اکثریت پر ځای د دلیل قوت اعتبار لري. که څه هم د یوشخص لخوا وړاندې شي.

**شپږم توپیر:**

ډیموکراسي د اروپا په هغې الحاد ځپلې ټولنه کې پیدا شوې او نشات ئې کړی چې هلته (دین) د ژونداو نظام په ټولو چارو کې (بې واکه) شوی. او یوازې دکلیسا په کونج کې بندي دی. خو شورى بیا د اسلام نظام دی چې د ژوند او نظام په هغو ټولو چارو کې چې صریح نصوص ورکښې موجود نه وي خپل تاثیر لري. او مسلمانان ئې عملي کولو ته تشویق شوي دي.

نو د پورتنیو توپیرونو پر اساس شورى او ډیموکراسۍ دوه جلا جلا نظامونه دي چې یو ئې له اسلام او بل ئې له الحاد څخه سرچینه اخلي. او هغه خلک چې کوښښ کوي ډیموکراسي خلکو ته د شورى مرادف ښکاره کړي هغوئ یا د اسلام دشورى نظام او حیثیت نه پیژني، او یا ډیموکراسي نه پیژني. او یا دواړه ښه پیژني، خو دمنافقت له مخې د ډیموکراسۍ کفري نظام عامو مسلمانانو ته د اسلام دشورى په قالب کې معرفي کوي، تر څو مسلمانان له هغې څخه کرکه ونه کړي او وئې مني.

## څلورمه شبهه- د دعوت د مصلحت لپاره په ډیموکراسۍ کې مشارکت

**ځینې اسلامي تنظیمونه او یا اشخاص ددعوت دمصلحت په بهانه په ډیموکراسۍ کې برخه اخلي او دادلیل نیسي چې که دوئ د انتخابیدلو لپاره ونه دریږي کیدی شي هلته یوبل اسلام دښمن تنظیم او یا شخص هغه ځای اشغال کړي. او یا دا دلیل نیسي چې دوئ کوښښ کوي د پارلمان له لارې د اسلامي قوانینو دعملي کولولپاره زمینه برابره کړي. او یا هم پدې خبره استدلال کوي چې په ډیموکراتیکو نظامونو او حکومتونو کې دهغه چا لپاره د دعوتي فعالیت علني اجازه موجوده وي چې ډیموکراسي مني، اود ډیموکراتیک نظام په چوکاټ کې اوسیږي. او هغه څوک چې له ډیموکراتیک چوکاټ څخه دباندی وي هغوئ له ډول ډول محدود یتونو سره مخ وي، نو ددې لپاره چې په علني ډول دعوت وکولی شي، او د ټولنې ټولو طبقوته خپل غږ په ښکاره ورسولی شي، د دعوت مصلحت دا تقاضا کوي چې په ډیموکراتیک جوړښت کې دې د ننه کار وکړای شي، او په ډیموکراسۍ کې د بیان له آزادۍ دې استفاده وشي.**

د پورتنیو وهمي دلایلو اوبهانو په هکله دا لاندې څو ځوابونه وړاندې کوو:

## ددې شبهې څلور ځوابونه

**اول ځواب:** پداسې یو نظام کې چې اساساً په کفر ولاړ وي لکه ډیموکراسي چې د سیکولریزم په کفر ولاړه ده، دین او (وحیې) ته د ژونداوحکومت په چارو کې هیڅ د مداخلې حق نه ورکول کیږي، او دحلال او حرام تعیین ورکښې د بشر په خوښه د اکثریت دتائید په شکل کې ترسره کیږي، له الله ﷻ څخه د تشریع مطلق حق اخیستل شوي او په مطلق ډول بشر ته ورکړل شوي وي، او د کفر او اسلام تر

منځ فرق دې موجود نه وي، او ټولو ته دې یوازې د انسان په سترګه کتل کیږي، او د دواړو رایه دي په اشخاصو او اشیاؤ باندې د حکم کولو یو ډول ارزښت او صلاحیت ولري، (امر بالمعروف او نهي عن المنکر) دې د شخصي آزادۍ سره د ټکر له امله ممنوع ګرځول شوي وي، ارتداد دې د انسان خپل حق وي، او له هر ډول مجازات څخه دې مصؤن وي، د اسلام په خلاف غږ پورته کول دې د رایې د اظهار د آزادۍ له امله روا او قانوني کار وي. نو په دغه ډول کفري نظام کې مشارکت به دهغه تائید او منل نه وي؟ آیا ددغه ډول نظام په چوکاټ کې کار کول او د هغه منل دهغه (توحید) منافي نه دي چې تر ټولو لومړی پر طاغوت کافر کیدل غواړي؟ هغه توحید چې اول په (لااله) سره تر (الاّ الله) د مخه له هر ډول طاغوت څخه دانکار اعلان غواړي؟ په اسلام کې خو دهغه چا ایمان اصلاً نه صحیح کیږي چې توحید مني خو د شرک په خلاف بې موقفه وي او له هغه سره جنګ نه اعلانوي. الله خو (کفر بالطاغوت) تر (ایمان بالله) دمخه یاد کړی لکه چې فرمایې: ﴿ فَمَن يَكْفُرْ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسْتَمْسَكَ بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَا ۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥٦﴾ ﴾ البقرة: ٢٥٦

**ترجمه:** (نو هغه څوک چې کافر شي پر طاغوت، او ایمان راوړي پرالله، نو یقیناً ئې منګولې ښخې کړي په هغې کلکې کړۍ چې نشته پریکیدل هغې لره، او الله ﷻ ښه اوریدونکی او ښه عالم دی).

نو آیا د اسلامي دعوت مصلحت به پدې کې وي چې دکفر صف جلا او دایمان صف جلاوي. تر څو خالص توحید متحقق شي، او له کفر څخه د بیزارۍ او انکار ښکاره اعلان وشي؟ او که په دې کې به وي چې د ځینې موهومو جزئې مصالحو لپاره دې د توحید د اعلی مصلحت قرباني ورکړل شي؟

په اسلام کې خو تر ټولو مصالحو لوی مصلحت د اللهﷻ توحید او له طاغوت څخه بیزاري ده. که دا مصلحت له منځه ځي نو نور مصلحتونه دې زر ځلې له منځه ولاړ شي. له مشرکانو، سیکولرو، کمونستانو، او ملحدانو سره په یوه مجلس کې دیوه قانون په حدودو کې، د یوه نظام دچلولو لپاره غاړه غړی کښیناستل، او یا هغوئ ته د کفر د بیانولو حق ورکول هیڅکله نه اسلام دي، او نه د اسلامي دعوت لپاره مصلحت. بلکه الله ﷻ په ښکاره له داسې خلکو سره له یوځای کښیناستلو منع کړې ده لکه چې فرمايي: ﴿ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ۚ إِنَّكُمْ إِذًا مِثْلُهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾ ﴾ النساء: ١٤٠

**ترجمه:** (او یقیناً نازل کړی دی الله ﷻ پر تاسو دا حکم چې کله مو واوریدل د الله ﷻ آیاتونه چې کفر ورباندې کولی شو، او مسخرې ورپورې کیدلې، نو تاسي مه کښینئ له هغوئ سره تر هغې چې په نورو خبروکې مشغول شي (او که چیری تاسی ورسره کښینئ) نو تاسو به هم دهغو په څېر یاست. یقیناً الله ﷻ یوځای کوونکی د ی د منافقانو او کافرانو په جهنم کې د ټولو).

په موجوده پارلمانونوکې په ښکاره لیدل کیږي چې سیکولر (بی دینه) عناصر، کمونستان، دهوی او هوس بنده ګان، او نورې ګمراه ډلې په صراحت سره له ارتداد څخه دفاع کوي، دکفري قوانینو پلوی او په اسلامي احکامو لکه جهاد، حدودو، حجاب، او نورو پورې مسخرې کوي، او په ډول ډول بدو نومونو ئې یادوي، خو بیا هم تش په نامه

ديموکرات او پارلماني مسلمانان د دعوت د مصحلت په بهانه له مرتدانو سره يو ځای په يوه پارلمان کې کار کوي.
**دوهم ځواب:** د اسلامي نړۍ په اکثرو پارلمانونوکې هغه ډلې چې ځان د مسلمانانو استازې بولي په (اقليت)کې دي، چې د(سيکولر) (اکثريت) په مقابل کې دخپل اقليت له امله په نااسلامي قوانينو کې هيڅ تبديلي نشي راوستلی. ځکه چې په ډيموکراسۍ کې د اکثريت رای حق بلله کيږي. له همدې امله په تيرو اتيا کلونو کې چې ډيموکراسي د اسلامي نړۍ حکومتونو ته راغلې ده په هيڅ ځای کې ونه ليدل شول چې د ډيموکراسۍ او انتخاباتو له لارې دې په کوم اسلامي هيواد کې اسلامي شريعت نافذ شوی وي. خو د ډيموکراسۍ مسلمان ډ وله (ليوني) بيا هم له هغې لاس نه اخلي، او د بدلون لپاره د اسلام نبوي منهج ته رجوع نه کوي، چې دا په خپله د هغوئ په نيتونو او اخلاص باندې د شک باعث ګرځي.
**دريم ځواب:** رسول الله ﷺ ته هم د مکې مشرکانه نظام همدغه ډول ډيموکراسۍ ته ورته ديو مشترک نظام وړانديز کاوه. داسې يونظام چې هم به شرکي عقايد، نظريات، تصورات او اعمال ورکښې خوندي وو، او هم به تر يوحده اسلام هم ورکښې ليدل کيدو، خو له اوسنۍ ډيموکراسۍ سره ئې فرق دا وو چې پرته له انتخاباتو او اکثريت څخه ئې مشري، زعامت، مال، حکومت، او سياسي قيادت هم پيغمبرﷺ ته ورکاوو، لکه چې د پيغمبر ﷺ په مبارک سيرت کې راغلي چې د مکې د مشرکانو مشرانو د شوری مجلس دائر کړ، او فيصله ئې وکړه چې (عتبه بن ربيعه عبشمي) چې د بنو عبد شمس له مشرانو څخه وو له دغه وړانديز سره رسول الله ﷺ ته ور وليږي، عتبه رسول الله ﷺ ته دمشرکينو وړانديز داسې وړاندې کړ:
(ای وراره! ته پوهيږې چې ته په مونږ کې د ښه نسب او حسب خاوند ئې، خو تا دې خپل قوم ته داسې يو دين راوړی چې دهغه له امله دې دخپل قوم اتحاد او اتفاق ورختم کړ، هغوئ دې کم عقلان وګڼل،

دهغـوئ معبـودان دې بـد یـاد کـړل، دهغـوئ دیـن دې کفـر،او د هغـوئ پلرونه دې کفار وبلل. زه یو څو وړاندیزونه درته لرم، وائـي وره کیـدای شي چې ځینې ئې ومنې) . رسول الله ﷺ هغه ته و فرمایل: ابو الولیده وئې وایه اورم ئې.

عتبه خپل وړاندیزونه داسې بیان کړل:

(ای وراره! که ته په دې پیغمبرۍ مال غواړې دومره مال بـه درتـه راټول کړو چې تر مونږ ټولو به ستا مال ډیر وي. او که عزت وربانـدې غـواړې خپل داسې (سید) او مشربه دې وټاکو چې له تا پرته به یو فیصله هم نـه کوو. او که بادشاهي غـواړې نـو بادشـاه بـه دې کـړو، او کـه چیـرې کـوم پیری دربانـدې ناست وي او ځان ترې نشې خلاصولی، نو کوم (دم ګري) کاهن ته بـه دې ورولـو چې دم دې کـړي. او پـدې لار کـې کـه زمـونږ هر څومره مال مصرفیږي مصرفوو ئې، تر څو تا لـه دې تکلیفـه خلاص کړو.

رسـول الله ﷺ چـې کلـه دهغـه خبـرې واوریـدې ورتـه وئـې فرمایـل: ابولولیده خبرې دې خلاصې شوې؟ هغه وویل هو. رسول الله ﷺ ورته و فرمایل: اوس ئې له ما واوره:. او بیا ئې د (فصلت) د سورت څو آیاتونه ورته ولوستل، او له قریشو سره ئې د داسې یو مشترک نظام وړاندیز رد کړ چې مشربه ئې هم په خپله رسول الله ﷺ وو.

د رسول الله ﷺ لخوا له کفارو سره د مشترک نظام د وړاندیز لـه ردلو څخه دا په ښکاره معلومیږي چې هغـه لادمظلومیت او محرومیت په وخت کې چې دی مبارک او اصحاب (رض) ئـې د مشـرکینو لـه شدید اذیت او تکلیف سره مخ ول هم له هغوئ سره دګډ نظام نظریه ونه منله. پداسې حال کې چې کیدای شو چې د وړاندیز د منلو په صورت کې به پر مسلمانانو چې په مظلومیت کې واقع ول یو څه آسانی راغلې وه. خو بیا هم رسول الله ﷺ دا کار ځکه ونه کړ چې مسلمانانو ته دا وروښیې چې مؤمن او کافر په یوه نظام کې چې ریښتنی واک ورکـې د جاهلیت او کفر په لاس کې وي سره یوځای نشي پاتي کیدای.

قریش لکه د اوسنۍ زمانې کفار درواغجن او دوه مخې نه ول، هغوئ کفار ول خو دروغ او دوکه به ئې نه خوښوله. هغوئ په خپلو وعدو کې له رسول الله ﷺ سره رښتني ول، هغوئ په رښتیا رسول الله ﷺ ته (سیادت)، مال، بادشاهي، او زعامت ورکاوو، خو په مقابل کې ئې له هغه څخه د دوئ د جاهلیت پر خلاف د رسول الله ﷺ د مبارزې توقف غوښتو، او دا هغه کار دی چې د اوسنۍ زمانې د ډیموکراسۍ کفار ئې هم له مسلمانانو څخه غواړي. خو رسول الله ﷺ بیا هم ورسره دغه ډول وړاندیزونه ونه منل. اوس پوښتنه دا ده چې آیا اوسنیو هغو تنظیمونو ته چې ځان اسلامي بولي، او په ډیموکراسۍ کې په خپل مشارکت دهغې تائید کوي، او تور مخ یې ورسپینوي، دغه ډول حیثیت ورکول کیږي؟ هغوئ ته خو د ډیموکراسۍ د کفر د تائید په بدل کې له یو څو پیسو پرته بل هیڅ نه ورکول کیږي.

آیا رښتیا هم دغه ډول ځان تیرایستونکو اسلامي تنظیمونو ته په ډیموکراسۍ کې د ریښتني اسلام د بیانولو، اودکفر د ټولو انواعو د ردولو، او دهغو پرخلاف دعملي اقدام اجازه ورکول کیږي؟ که ورکول کیږي نو په تیره یوه پیړۍ کې دغه حق په کوم مسلمان هیواد کې ولیدل شو؟ او که نه ورکول کیږي نو بیا ولې په دغه ډول باطل حجت استدلال کوي، او اسلام ته د دعوت له نبوي منهج څخه چې مثال ئې د صحابه و ژوند او دعوت دی په څنګ ځي؟ که چیرې په دغه ډول مشارکت کې د دعوت مصلحت وای نو رسول الله ﷺ به په هغه وخت کې منلی وی چې مسلمانانو پرته له زغم او صبر څخه بله هیڅ لاره نه درلوده. په هغه وخت کې رسول الله ﷺ خپلو مظلومو اصحابو ته امر وکړ چې (حبشې) ته مهاجر شي، خو له کفارو سره ئې په مشترک نظام کې یو ځای اوسیدلو ته پرې نښودل، تر څو وښیي چې اسلام د ژوند لپاره د جاهلیت له هرقید او بند څخه آزاد محیط او نظام غواړي، اومسلمانان به تر هغې په کراره نه کښینې چې تر څو ئې ځانته خپلواک، خالص، اسلامي نظام نه وي جوړ کړی.

**څلورم ځواب:** د اسلامي نړۍ د هیوادونو په نږدې ماضي کې تاریخ او مشاهدې دواړو دا ثابته کړه چې ډیموکراسي او انتخابات یوازې د کفري نظام د اقامې لپاره دي. او په ډیموکراسۍ کې د (صحیح) اسلام لپاره هیڅ ځای نشته، که څه هم چې مسلمانان د ډیموکراسۍ او انتخاباتو له لارې قدرت ته ورسیږي.

په مصر کې تقریباً له تیرو اتیاوو کلونو راهیسې (الاخوان المسلمون) په ډیموکراسۍ کې د مشارکت له لارې د اسلامي حکومت لپاره ښه جدي فعالیت کوي. خو کله چې هم مصري نظام د (الاخوان) په لاس د څه بدلون علامې ویني نو سمدستي هغوئ له یوه مصیبت سره مخ کړي. یا ئې مشران او اعضاء زندانونو ته ور وغورځوي، یا ئې په سیاسي فعالیت محدودیتونه ولګوي، او یا ئې په تنظیم باندې بندیز ولګوي، ټولې شتمنۍ ئې مصادره کړي، او مشران ئې د سیاست او تاثیر له صحنې څخه محروم کړي. نتیجه ئې دا شوه چې له تیرو اتیاؤ کلونو راهیسې نه په مصر کې حکومت اسلامي شو، نه اسلامي ټولنه منځته راغله، او نه هم ((الاخوان)) تنظیم په خپلو اصولو او هغې تګلارې ټینګ پاتې شوکومه چې امام حسن البنا او شهید سید قطب په خپلو ویناؤ او تالیفانو کې د (الاخوان المسلمون) لپاره د فکري او عملي منهج په حیث واضح کړې وه. بلکه دزمانې په تیریدلو ډیموکراسۍ دهغوئ عزم ورسست او تګلاره ئې ور بدله کړه.

په ترکیه کې چې کله د نجم الدین اربکان اسلام پلوي ګوند په انتخاباتو کې د ډیموکراسۍ د اصولو مطابق اکثریت ترلاسه کړ، او حکومت ئې جوړ کړ، خو کله چې د ترکیې له ډیموکراسۍ څخه مدافع سیکولر پوځ د اسلام په ګټه د بدلون علامې ولیدې فوراً ئې حکومت ړنګ او د اربکان په تنظیم ئې بندیز ولګاوه. او د تنظیم مشران ئې له سیاسي فعالیت څخه منع کړل.

همدا ډول د شمالي افریقا په تر ټولو لوی هیواد (الجزایر) کې چې کله د (انقاذ اسلامي جبهې) د غربي ډیموکراسۍ د اصولو مطابق په

انتخاباتو کې اکثريت تر لاسه کړ، هلته هم سيکولر پوځ مداخله وکړه، د انتخاباتو نتائج ئې لغوه اعلان کړل، او د اسلامي جبهې مشران او منسوبين ئې په زندانونو کې واچول. او د الجزاير مسلمان ملت يې له داسې يوې داخلي جګړې سره مخ کړ چې تر ننه ئې لمبې او لوخړې پورته کيږي، او لسګونه زره انسانان ئې په اور کې وسوځيدل، او لا نور هم سوځي.

په پاکستان کې هم کله چې ځينې اسلامي تنظيمونو د (بل چا) د قربانيو له برکته په ۲۰۰۲ م کې دسرحد صوبې انتخابات وګټل او خپل حکومت ئې جوړ کړ، دخپل حکومت په ټوله موده کې ئې يو اسلامي قانون هم نافذ نه کړای شو. او نه ئې د اسلام په ګټه کوم داسې اقدام وکړای شو چې تاريخ ئې دهغوئ دلاسته راوړنې په حيث له ځانه سره وساتي. بلکه په ډيرو مشکلاتو ئې يوازې هغه کارونه پرمخ بوتلل چې سيکولر حکومتونو به په آسانۍ پرمخ بيول. او دا ځکه چې دغه ډيموکراتيک حکومت ته د مرکزي حکومت لخوا د اسلام د تنفيذ اجازه نه ورکول کيده، او دوئ هم له ډيموکراسۍ (جمهوريت) سره د (وفادارۍ)سوګند پورته کړی وو.

همدغه ډول په ټوله اسلامي نړۍ کې اسلامي شريعت له عملي کيدو څخه ليرې ساتل کيږي. او پلويان ئې له حاکميت څخه محروميږي، که څه هم چې د ډيموکراسۍ له لارې واک ته رسيدلي وي. نو معلومه شوه چې په ډيموکراسۍ کې دصحيح اسلام لپاره هيڅ ځای نشته. البته دا کيدای شي چې د ډيموکراسۍ له لارې دې کفر د اسلام په حيث معرفي شي.

## پای

د ډيموکراسۍ په هکله ددغې مقالې په پای کې دې نتيجې ته رسيږو چې ډيموکراسۍ يو غير اسلامي، کفري شيطاني دين دی چې د انساني ژوند ټولې خواوې ئې احتوا کړې دي. ډيموکراسۍ په حقيقت

کې له الله ﷻ څخه د بشریت لپاره د هر ډول نظام او قانون د جوړنې د حق سلبلول او دهغه – نعوذ بالله – بې واکه کول دي. ډیموکراسي په غرب کې د مسیحیت د انحراف، او د الحاد د رامنځته کیدو په نتیجه کې منځته راغلې چې هر څه ورکښې له هر دیني قید او بند څخه آزاد د انسانانو په خپله خوښه تر سره کیږي. په ډیموکراسۍ کې د الله ﷻ منل او نه منل دواړه یو ډول ارزښت لري. ځکه چې دمنلو په صورت کې ئې بیا هم د قانون او شریعت منل د ډیموکراسي د اصولو خلاف کار دی.
ډیموکراسۍ د غرب د ملحدو فیلسوفانو د افکارو او نظریاتو پر بنسټ ولاړه ده. او له اسلام سره هیڅ ډول مشابهت او رابطه نه لري. خو غرب ځیلي سیکولر (بی دینه) عناصر او له هغوئ څخه یو څو متاثر غولیدلي مسلمانان کوښښ کوي چې عامو مسلمانانو ته په درواغو د اسلام او ډیموکراسۍ تر منځ روابط او مشابهتونه وتراشي. تر څو لدې لارې هغوئ د ډیموکراسۍ د کفري دین په خلاف له مبارزې او جهاد څخه راوګرځوي. ډیموکراسي په اسلامي نړۍ باندې دغربي استعمار او تسلط د دایمي ساتلو یو خطرناک تضمین دي چې غرب ئې د زور، زر، تزویر، زندان، او مرګونو په مټ په اسلامي نړۍ کې دخپلو غلامو حکومتونو له لارې خوندي او تلپاتې ساتي، او دهغې د خورلو او تنفیذ په لاره کې په زرګونو ملیارده ډالره، په لکونو پوځیان او پوځي وسایل مصرفوي. او د مخالفت د له منځه وړلو لپاره ئې په لکونو مسلمانان په اسلامي هیوادونو کې وژني، او اسلامي حرکتونه او نهضتونه لدې ویرې له منځه وړي چې مظلوم او ځپل شوي مسلمانان د ډیموکراسۍ له کرغیړن حقیقت څخه خبر نه کړي.
اوس چې افغانستان د غرب تر یرغل لاندې راغلی، او پدې هیواد کې ئې مرګوني جګړه پدې خاطر روانه کړې چې ډیموکراسي ورکښې نافذه کړي، نو په کار ده چې افغان مسلمان ملت د خپل دغه دښمن په فکري، عقائدي او اخلاقي ماهیت پوه شي، او د دښمن هویت ورته له

هرې زاویې معلوم شي. د همدغه مقصد لپاره مې دغه موضوع په تفصیل سره د خپل مجاهد ملت بچیانو ته د لسګونو کتابونو له منځه او د زرګونو صفحو له مطالعې وروسته راوویسته او په روانه ساده پښتو مې دخپل ملت د هغو ځوانانو مخې ته کیښوده چې له اسلام څخه د دفاع په لارکې هرې قربانۍ ته تیار، او عملاً د ډیموکراسۍ دکفر په خلاف په جهاد بوخت دي.

په پای کې دومره ویل غواړم چې که پدې موضوع کې زه حق ته رسیدلی یم نو دا به د الله ﷻ له لوري وي. او که چیرې زه په کوم ځای کې خطا شوي یم نو دا به زما دکم علمۍ او ناتوانۍ نتیجه وي چې له مخلصو علماؤ څخه ئې د تصحیح لپاره د متوجه کولو هیله لرم.

# امریکایي اسلام

په اوس وخت کې په نړۍ کې دوه ډوله اسلام وجود لري. یو هغه اسلام دې چې الله ﷻ پر محمد ﷺ نازل کړي، او هغه خپل امت ته په مکمل ډول رسولي دی. او د اسلامي امت د تاریخ په اوږدو کې مسلمانانو منلی، اوهم ئې په خپل فردي او اجتماعي ژوند کې تطبیق کړي دی. او همدا ډول ئې له هغه څخه د دفاع په لار کې په میلیونونو سرونه قربان کړي دي.
د اسلام علماؤ هم تل دهمدغه اسلام په اړه د دښمنانو د تورونو او شکونو علمي او معقول ځوابونه ویلي، او ددغه دین د مختلفو اړخونو او احکامو د شرح کولو لپاره ئې په لکونو کتابونه لیکلي چې د نړۍ په بیلا بیلو ژبو کې په پراخه پیمانه موجود دي. دا هغه اسلام دي چې الله ﷻ له هغه څخه پرته بل هیڅ دین نه قبلوي لکه چې فرمایي: ﴿ إِنَّ ٱلدِّينَ عِندَ ٱللَّهِ ٱلۡإِسۡلَٰمُۗ ﴾ آل عمران: ۱۹

﴿ وَمَن يَبۡتَغِ غَيۡرَ ٱلۡإِسۡلَٰمِ دِينٗا فَلَن يُقۡبَلَ مِنۡهُ وَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ٨٥ ﴾ آل عمران: ۸۵

**ترجمه:** (د الله ﷻ په نزد منل شوي دین اسلام دی) (او که څوک پرته له اسلام څخه بل دین غواړي نو هیڅکله به ورڅخه ونه منل شي، او په آخرت کې به له زیان کارانو څخه وي).
دغه اسلام هغه دین دی چې په هیڅ صورت، او په هیڅ وخت کې کافران دهغه له دښمنۍ څخه لاس نه اخلي، او په هر شکل او وسیله به دهغه د منونکو په خلاف په همیشني جنګ اخته وي. او تر هغه به دغه جنګ جاري ساتي تر څو مسلمانان له اسلام څخه وباسي. چې دغه کار به هیڅکله تر سره هم نه کړای

شـــــي. الله ﷻ فرمـــــايي: ﴿وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا﴾ البقرة: ٢١٧

**ترجمه:** (همیشه به وي کافران چې جګړه به کوي له تاسې سره تر هغې چې بیرته وباسي تاسې له خپل دین (اسلام) څخه که چیرې دوئ په دې کارو وتوانیږي) یعنې تر څو چې مسلمانان په هغه اسلام ټینګ ولاړ وي چې الله ﷻ نازل کړی دی، نو دکفارو جنګ به د دوئ په خلاف هر وخت په یوه یا بل شکل حتماً روان وي، او مسلمانان به یوازې هغه وخت د دوئ دوستان کیدای شي چې له اسلامه ووځي.

الله ﷻ په بل آیت کې همدغه مفهوم داسې بیانوي: ﴿وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ﴾ البقرة: ١٢٠

**ترجمه:** (هیڅکه به یهود او نصارئ له تاڅخه خوشحاله نه شي تر هغه چې د دوئ په ملت (دین) روان نه شې). له یادوشو آیتونو په واضح ډول معلومیږي چې (الهي اسلام) هیڅکله یهودو، نصاراؤ، او نورو کافرانو ته د منلو نه دی. او له همدې امله ئې په ټوله دنیا کې خپل ټول مادي او معنوي وسائل په کار اچولي تر څو (الهی اسلام) په هیڅ ځای کې تطبیق نه شي. او که چیرې تطبیق شوی هم وي هغه باید په هره طریقه چې وي له منځه یوړل شي.

خو د الهي اسلام په مقابل کې یو بل ډول اسلام هغه دی چې غرب او په راس کې ئې امریکا دهغه د معرفي کولو، خورولو، او تطبیقولو لپاره کار کوي. او خپل ټول مادي او معنوي وسائل په کار اچوي تر څو په اسلامي نړۍ کې همدغه (امریکایي اسلام) د (الهی اسلام) پر ځای د مسلمانانو په ژوند کې ځای ونیسي. ددغه امریکایي اسلام د معرفي کولو لپاره دامریکا تر ټولو مهمې تحقیقاتي ادارې RAND Corporation چې د امریکا حکومت ته د اسلامي نړۍ په چاروکې په سیاسي،اجتماعي، دفاعي، او استراتیژیکو چاروکې پالیسۍ جوړوي،

د اسلامي چارو څیړونکي ورکښي د مسلمانانو په ژوند مسلسلې څیړنې کوي، او نتائج ئې دامریکا د حکومت بیلا بیلو ادارو ته د تطبیق لپاره ورکوي، یوه طرحه دهمدغې اداري یوې ډلې مستشرقینو چې Cheryal Benard ئې مشري کوي وړاندې کړې ده. Cheryal Benard چې په خپله یهودۍ او د افغان امریکا یې (زلمي خلیل زاد) ښځه ده دغه طرحه ئې د Civil democratic Islam Partners Resources and strategies یعنې (متمدن، ډیموکراتیک اسلام، ملګري، منابع، او استرتیژاې) په نامه په دري اتیا صفحو کې ترتیب کړې چې دخلیل زاد ترڅنګ نهو نورو مستشرقینو او څیړونکو هم ورسره مرسته کړې ده.
یاده شوې طرحه یو نوی امریکایي اسلام معرفي کوي، او بیا ددغه نوي اسلام د خپرولو لپاره په اسلامي نړۍ کې ملګري تشخیصوي، او هغه منابع په ګوته کوي چې ددغه نوي اسلام په تطبیق کې ورڅخه استفاده کیدی شي. او هم دالهي اسلام د له منځه وړلو او یا محدودولو او مسخ کولو لپاره استراتیژۍ وړاندې کوي.

# د امریکایې اسلام تعریف

هغه اسلام چې رنډ کارپوریشن یې غواړي (چیریل بنارډ) ئې پدې ډول تعریفوي:
**(امریکا، نوې صنعتي نړۍ، او په مجموع کې بین المللي ټولنه داسې یو اسلام غواړي چې دنورې نړۍ له نظامونو سره په یوه لار روان شي. ډیموکراتیک او مترقي اسلام وي، او په نړیوالو قوانینو، احکامو، او اخلاقو وچلیږي)**[1] اتم مخ. په یاد شوي تعریف کې دغه نقطې مشخصې شوې دي:

١. اسلام باید د امریکا او بین المللي ټولنې په خوښه وي.

[1] – اتم مخ Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

۲. اسلام باید یو بیل تشخص او ځانګړی نظام ونه لري، بلکه دنورې نړۍ له نظامونو سره دې یوشی وي.
۳. اسلام دې ډیموکراتیک وي. یعنې دخلکو لخوا دې رامنځته شي، نه دا چې د (وحيې) پربنسټ دې ولاړ وي.
۴. دغه اسلام دې خپل زړو شکل پرې ایښی وي، او نوی مترقي شکل دې ئې غوره کړی وي.
۵. دغه اسلام دې په احکامو او اخلاقي فلسفه کې د غرب له احکامو او اخلاقو سره یوډول وي.

وروسته په همدې اتمه صفحه کې ددغه اسلام دمنونکو د ملاتړ او تشویق په هکله لیکی:

**(دابه د حکمت کار وي چې په مسلمانانو کې دهغو عناصرو ملاتړ او تشویق وشي چې له (نړیوالې سولې) او بین المللي ټولنې سره یو ځای په لاره ځي، او ډیموکراسي او تمدن خپلوي)**[1]

په پورتنۍ جمله کې دغه مفاهیم جوت شوي دي:

۱. د ټولو مسلمانانو ملاتړ باید ونه شي. بلکه د خاصو عناصرو ملاتړ دې وشي.
۲. دهغو عناصرو ملاتړ دې وشي چې له کفارو سره هیڅ ډول مشکل نه لري. بلکه له هغوئ سره په نړیواله سوله کې ژوند تیروي، او په جهاد هیڅ باور نه لري، که څه هم چې کفار په مسلمانانو هر څه کوي.
۳. دهغو مسلمانانو ملاتړ دې وشي چې د ډیموکراسي د ژوند د تګلارې، او غربي تمدن د ژوند د بنې په حیث مني.

لیکواله د مسلمانانو او کفارو تر منځ د بیلوالي عامل ددغو دوو امتونو تر منځ د غرب له فرهنګ څخه چې هغه ئې (نړیوال فرهنګ) بولي د مسلمانانو لیرې والی بنیي او لیکي:

---

[1]- پورتنۍ مرجع .

**(له نړیوال معاصر فرهنګ څخه د مسلمانانو لیرې والی دهغوئ او د نورو تر منځ د کړکیچ زمینه برابره کړې ده.)** [١] اتم مخ.

د پورتني عبارت معنی دا ده چې د مسلمانانو او نورو تر منځ به تر هغه وخته کړکیچ دوام ولري تر څو چې مسلمانانو خپل اسلامي فرهنګ پرې ایښی نه وي، او نړیوال فرهنګ ئې خپل کړی نه وي. او هر کله چې د فرهنګ دغه توپیر له منځه ولاړ شي نو کړکیچ به په خپله له منځه ځي. او دا کټ مټ هماغه مفهوم دی چې الله ﷻ ئې په قران کریم کې داسي یادونه کړې ده:

﴿ وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَـٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ﴾ البقـــــرة: ١٢٠

یهود او نصاری به تر هغه له تا څخه راضي نشي تر څو چې د د وئ ملت ونه منې) او دا ښکاره خبره ده چې ننی نړیوال نظام او نړیوال فرهنګ یهودانو ایجاد او ډیزاین کړي، او نصاری چې برتانیه او امریکا ئې په راس کې دي په ټولې نړۍ تطبیقوي. او د همدغه نړیوال فرهنګ د عملي کولو لپاره ئې ټوله اسلامي نړۍ دجنګ میدان ګرځولې ده تر څو خپل نوی اسلام ورکښې عملي کړي.

# د امریکایي اسلام دخپرولو پلان

دکتاب لیکواله د خپل کتاب په نهم مخ کې دنوي امریکایې اسلام د پیروانو دنقش د تقویه کولو لپاره یو منظم پلان وړاندې کوي او امریکایي حکومت ته دتوصیې په شکل لیکي:

**(...... ددې لپاره چې په اسلامي نړۍ کې د ډیرې ډیموکراسۍ، ماډرنیزم، او معاصر نړیوال نظام سره دیوځای کیدو په خاطر یو مثبت بدلون رامنځته شي امریکا او غرب ته په کار ده چې په ټول جدیت او دقت سره په مسلمانانو کې هغه عناصر ولټوي چې اسلام (امریکایي**

[١] - Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

اسلام) تقويه کيدل غواړي. او همدا راز په امريکا او ملګرو ئې لاژمه ده چې د دغو عناصرو لپاره په دقت سره اهداف او ارزښتونه وټاکي، او پدې هم پوه شي چې ددغو عناصرو د کار له پرمختګ څخه کوم نتائج په لاس ورځي. او کيداى شي چې د دوئ د تقويې لپاره لاندې پروګرامونه په نظر کې ونيول شي:

۱. د دغو عناصرو ليکنې او مطبوعات بايد چاپ او په ارزانه خپاره شي.
۲. بايد دغه ډلې او عناصر تشويق کړاى شي چې د عامو خلکو او ځوانانو لپاره ليکنې وکړي.
۳. د دوئ نظريات او افکار بايد د حکومتي تعليمي نصاب د دينياتو په کتابونو کې ځاى کړاى شي.
۴. هغوئ ته بايد راډيوګانې، ډله يزې رسنۍ، او د وينا منبرونه په اختيار کې ورکړاى شي.
۵. د اسلامي احکامو او مسايلو په اړه بايد د د وئ تعبيراو تفسير په خلکو کې عام کړاى شي، تر څو وکولاى شي له هغو بنسټګرو سره رقابت وکړي چې مدرسې، معاهد او کتابخانې لري. او د نظرياتو د خپرولو لپاره عصري اليکټرونکي وسايل په کار اچوي.
۶. (ماډرن) او (سيکولر) علماء بايد په پراخه پيمانه خلکو ته معرفي شي، تر څو د د وئ له لارې د قهريدلو مسلمانو ځوانانو څپاند عواطف او احساسات ساړه کړاى شي.
۷. دغير اسلامي تاريخ او فرهنګ د پوهې او کتابونو د خپرولو لپاره بايد خپروونکي تشويق شي. او د چاپ او خپرولو چاري ئې ورته آسانه شي. او هم بايد دغه ډول معارف د اسلامي هيوادونو په تعليمي نصاب او مطبوعاتو کې ځاى پرځاى کړاى شي. په خاص ډول هغه تاريخ او معارف بايد ډير خپاره شي چې له اسلام څخه دمخه په اسلامي هيوادونو کې موجود ول.

**۸. دمدني ټولنې په نامه دې د مستقلو تنظیمونو، ټولنو، او احزابو په رامنځته کولو کې مرسته وکړای شي، تر څو د مدني ټولنې فرهنګ په خلکو کې خورشي. او هم دې دعامو خلکو لپاره د سیاسي اجرآتو دزده کړې او د بیان د آزا دۍ فرصتونه برابر کړای شي[۱].**

# په افغانستان کې د امریکایي توصیود تطبیق مثالونه او مصداقونه

ددې لپاره چې عام افغانان پدې پوه شي چې ددغې امریکایې ادارې RAND Corporation د (امریکا يي اسلام)د خپرولو پلان په افغانستان کې په څه ډول عملي کیږي؟ او څوک ورته په کوم شکل کار کوي؟ د یادشوي پلان په اته ګونو مادو جلا جلا لنډه تبصره کوو، او عملي مثالونه او مصداقونه ئې ښیو:

۱. او له ماده د دیموکراتیک اسلام د پلویانو د لیکنو دچاپولو او ارزانه خپرولو توصیه کوي چې په افغانستان کې پدې ډول تر تطبیق لاندې نیولې شوې ده:

امریکا په افغانستان باندې له خپل یرغل سره سم اکثره هغه افغاني لیکوالان، ادیبان، شاعران، فلم جوړونکي، ژورنالستان، مترجمین، ممثلین (سینماګران)، ناشران، علمي او فرهنګي کدرونه او اشخاص چې په غرب کې روزل شوي، او یا له غربي فرهنګ څخه متاثر شوي ول له ځانه سره افغانستان ته راووستل، او دلته ئې ورته د فکر په بیلا بیلو ډګرونو کې دکار فرصتونه او وسایل تیار کړل. دغو واردو شویو عناصرو دلته په فکري او فرهنګي ډګرونو کې ښه پراخه کار شروع کړ، او په سلګونو کتابونه، مجلې، اخبارونه، نشریې او خپرنې ئې رامنځته کړې، دومره په پراخه پیمانه مطبوعات رامنځته شول چې د

[۱]- ۷۲ مخ Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

اخستلو ئې څوک نه پیداکیږي، او په بیلا بیلو ادارو او افرادو پـه وړیـا ډول ویشل کیږي. دا چې عام افغانان د اقتصادي کمزورتیا او یا نـورو دلایلو له امله په کتاب او مطبوعاتو پیسې نه ورکوي، او نـه مطبوعـات داسـې محتـوی خپـروي چـې دملـت دذوق مطـابق وي، او د افغانـانو دمشکلاتو حل دې وړاندې کړای شي، بلکه ټول ئې تقریباً د (وارداتي) مفـاهیمو او نظریـاتو پـه خپرولـو بوخت دي. نـو لـه همدې املـه اوسـني افغـاني مطبوعـات د سـرمایه ګـذارۍ او تجـارتي فعالیـت پـه مـټ نـه چلیـږي، بلکـه دهمـدغو امریکایـانو او دهغـوئ دملګـرو لخـوا مرسـته ورسره کیـږي.. او ټـول مصـارف ئې د بـیلا بیلـو امریکـایي او اروپـایي مؤسساتو لخوا دهغه پلان دتطبیق پخاطر ورکول کیږي چې د RAND Corporation لخوا په مسلمانانو کې د یو (ډیموکراټ اسلام) دخپرولـو په خاطر جوړ شوی دی.

۲. دوهمه ماده د ډیموکراټ اسلام پلویان عـام ولـس او پـه خـاص ډول ځوانانو ته دډیرو لیکلو لپاره تشویقوي چې ددې مـادې تطبیـق هـم په پوره جدیت تر کار لاندې نیول شوی دی. ټـول هغـه لیکـوالان او د قلم خاوندان چې یوځه لیکلی شي پـه لـوړو معاشـونو د بیلابیلـو مؤسسو لخوا په فرهنګي کارو ګومارل شوي دي. او دغه سیکولر لیکوالان بیا نه یوازې دا چې پـه سیاسـي او اجتمـاعي موضـوعاتو کې لیکنی کوي، بلکه په دین او شرعي موضوعاتو کې هم خپـل نظریـات ښـکاره کـوي. او ځینـې خـو ئـې حتـی دارتـداد تـر سـرحده پورې دعلني رسید لو جرات هم کوي چې مثـالونه ئـې (علـي محقـق نسب) (پرویز کامبخش) (لطیـف پـدرام) او ځینـې نـور دي. پـدې لـړ کې ځینو نورو په تحریف شوي شکل دقران ترجمه چې دقران کـریم متن هم ورسره نه ؤ دعامو خلکو دګمراه کولـو پـه مقصـد چـاپ ګـړ چې د افغانستان خلکو ددې ټولو په خلاف شدید غبرګون ښـکاره کړ.

۳. د سیاسـي، دینـي، او اجتمـاعي، موضـوعاتو ترڅنـګ د ادب او ادبیاتو تر عنوان لاندې داخلاقي فساد په زرګونو فحش، لویدلې او مبتذلې کیسې ځوانانو ته خپرېږي چې په لوستو ځوانانو او پیغلو کې جنسي عواطف تحریکوي، او د فساد لورته ئې سوق کوي. چې یومثال ئې (دیوې شپې ډیموکراسي) په نامه کیسه ده چې د یوې خبریالې نجلۍ او یوه بل خبریال هلک ترمنځ په سفر کې دزنا یو کیسه ده، او د آزادۍ د راډیویوې خبریالې نجلۍ لیکلې ده.

۴. دریمه ماده توصیه کوي چې د ډیموکراټ اسلام د پلویانو نظریات دې په تعلیمي نصاب کې شامل کړای شي تر څو په لازمي شکل ټول خلک د دغو نظریاتو لوستلو ته مجبور شي. او بیا همدغه نظریات د دینیاتو دمضمون له لارې د دین او عقیدې په حیث ومني.

پدی لارکې هم امریکا په افغانستان کې دخپلو دوو موسسو هري یوې (USAID) اود (نبرانسکا) د پوهنتون له لاري ښه ډیر کار وکړ.

د(نبراسکا) په پوهنتون کې د افغانسـتان د تعلیم او تربیې مرکز د افغانستان د تعلیم او تربیې دوزرات لپاره نوي تعلیمی نصاب تیار او (USAID) چاپ کړ. دغه نصاب د امریکایي مشاورینو تر نظارت لاندې جوړ شو، او ټول هغه مضامین چې دجهاد، له کفارو سره د دښمنۍ، حجاب، او پر اسلام د ټینګ پاتې کیدلو مفاهیم ورکښې ول هغه ئې ټول له نصاب څخه وایستل، او پر ځای ئې له کفارو سره دسولې او تفاهم، د بشر دحقوقو، او دښځو د آزادي، د تروریزم په خلاف دجکړې، او غربي ژوند، مفاهیم ځای پرځای کړل[۱]. همدغه کوښښونه په مسلسل ډول دوام لري، او په هر کال کې د دینیاتو، اجتماعیاتو، تاریخ، او ادبیاتو په کتابونو کې نوي نوي، مضامین داخلیږي. دغه

[۱]- پدې هکله دمثا ل په ډول په همدې کتاب کې د امریکایانو دوخت او دمجاهدینو د وخت دنصاب د اول صنف مقارنه په (۲۰۶) مخ کې وګورئ.

کار نه یوازې دا چې په افغانستان کې جریان لري، بلکه د ټولې نړۍ په اسلامي هیوادونو کې او بیا په خاص ډول په هغو هیوادونو کې چې امریکایي پوځیان ورکښې پراته دي، او یا هلته د امریکا مصالح تر تهدید لاندې دي، په ټول زور سره عملي کیږي. امریکا ددې کار لپاره هر کال په سلګونو میلیونو ډالر د (USAID)، آغاخان فاونډیشن، ایشا فاونډیشن، او نورو موسسو په اختیار کې ورکوي، تر څو په تدریج سره د مسلمانو هیوادونو تعلیمي نصابونه له حقیقي اسلام څخه خالي کړي، او پر ځای ئې د نوي ډیموکراټ اسلام مفاهیم خلکو ته معرفي کړي.

**۵**. د RAND Corporation دامریکایي اسلام د طرحې څلورمه ماده په اسلامي نړۍ کې سیکولر عناصرو ته د رسنیو په اختیار کې ورکولو خبره کوي چې په افغانستان کې پدې ډول عملي شوه:

ددې لپاره چې په افغانستان کې ډیموکراټو او سیکولر عناصرو ته دوینا درسولو پراخ وسایل او ډیرفرصتونه په لاس ورغلي وي امریکا یو منظم تبلیغاتي پلان جوړ کړ چې په دریو سطحو کې تطبیق شو:

**اول**: ټولې هغه بهرنۍ راډیوګانې چې د افغانستان لپاره یې د ورځې د نیم ساعت یا یو ساعت پروګرامونه درلودل خپل پروګرامونه ئې دولسو ساعتو، او څلرویشتو ساعتو ته وغزول، تر څو په پراخه پیمانه د ټولنې ډیر خلک تر تبلیغاتي پوښښ لاندې ونیسي، او دغو راډیوګانو چې پخوا ئې یوازې اخباري پروګرامونه درلودل اوس ئې د هغو تر څنګ په پراخه پیمانه د سیاسي، اجتماعي، تعلیمي، ادبي، فرهنګي، اقتصادي، او دیني پروګرامونو سلسلې او سریالونه هم خپرول شروع کړل. او هم دغو راډیوګانو د افغانستان تکړه خبریالان، ژورنالستان، څیړونکي، ادیبان، او سیاسي کارپوهان د ډیرو لوړو ډالري معاشونو په بدل کې خپلو ادارو ته جذب کړل، تر څو د افغانانو د (غربي) کولو لپاره هر اړخیز کار وشي.

غرب د امريکا غږ، او بي بي سي، ترځنګ نوري راډيوګانې لکه د آزادۍ راډيو، چې د امريکا د کانګرس لخوا چليږي، ډيوه راډيو، او د مشال راډيو هم په کار واچولې. او بيا غرب د خپلو دغو راډيوګانو لپاره سيمه ييز د F.M سټيشنونه هم په بيلا بيلو ښارونو کې پرانستل، تر څو خپل نشرات په ښه کيفيت خلکوته ورسولی شي.

**دوهم:** غرب په افغانستان له خپل يرغل څخه وروسته د افغانستان په بيلا بيلو لويو ښارونو کې په لسکونه محلي نادولتي راديوګانې فعالې کړې، او په زرګونو د امريکايي اسلام منونکي ئې ورکښې توظيف کړل، چې هره يوه ئې د بيلا بيلو اهدافو لپاره خپرونې کوي. پدې لړ کې يوازې د کابل له ښار څخه شل دولتي او نا دولتي راډيوګانې خپرونې کوي.

**دريم:** امريکايانو د افغانستان د ولاياتو په ډيرو ولسواليو کې محلي راډيوګانې جوړې کړې چې اکثره ئې په منطقه کې پرتو دامريکايانو له پوځي مراکزو څخه خپرونې کوي، او د ټولو لپاره د امريکا د بين المللي پراختيا اداره (USAID) بوديجه برابروي، چې تر اوسه پورې د دغه ډول سيمه ييزو راډيوګانو شمير په ولسواليو کې تر يوسل اواويا راډيوګانو لوړ شوی دی.

دا ټول هر څه هماغه د RAND Corporation د (ډيموکراټ او متمدن) اسلام د پلويانو د پيغام د خپرولو لپاره تر سره کيږي.

۶. د دغه امريکايي پلان پنځمه ماده دا ده چې اسلامي احکام بايد هغه ډول تعبير او تفسير شي چې د امريکا سيکولر ملکري ئې غواړي. يعنې د اسلام دين بايد دغربي کلتور د مفاهيمو مطابق، او د غرب لخوا دوضع شوو بشري حقوقو په چوکاټ کې تعبير شي. او هر هغه حکم چې د غرب له بشري حقوقو، نړيوالو ميثاقونو، بين المللي قوانينو، او همدارنګه د غربي فرهنګ له معيارونو سره مخالف وي هغه بايد ارتجاعي، بيرته پاتې، او زوړ وبللی شي، چې اوس د دوئ په ګومان د تطبيق وړتيا نه لري.

غرب همدغه تجربه په ډیرو اسلامي هیوادونو لکه، ترکیې، مصر، لیبیا ،تونس، الجزائر، مراکش، هندوستان، پاکستان، او نورو اسلامي هیوادونو کې تکرار کړې ده، چې په نتیجه کې ئې هلته د خلکو په ذهنونو کې د داسې یو اسلام تصور قائم شوی چې له کفر او کفري ژوند سره هیڅ حساسیت نه لري. له نورو ادیانو او مذاهبو سره یې دومره دښمني نشته لکه له حقیقي اسلام سره ئې چې لري. همدغه وجه ده چې غرب ځپلي تش په نامه مسلمانان د اسلامي نظام د قائمولو تر غربیانو هم سخت دښمنان دي، او په هر قیمت ئې د قیام مخه نیسي.
امریکا او ملګري ئې اوس غواړي په افغانستان کې هم همدغه ډول یو غرب پلوی اسلام چې تفسیر او تعبیر ئې د غرب له معیارونو سره سم تر سره کیږي عملي کړي، چې پدې لړ کې ئې لاندې اقدامات تر سره کړي دي

# د اسلام د غربي تعبیر لپاره په افغانستان کې د امریکا اقدامات

**اول**: د حقیقي اسلام د پلویانو (مجاهدینو) فکر او تصور دیو افراطي، بیګانه، تندلاري، او داسې یو فکر او تصور په حیث معرفي کول چې د تطبیق وړتیا نه لري. او دهغه پر ځای له غرب څخه په راغلو نظریاتو، د افغانانو په زړو رواجونو، او له شریعت څخه د منحرفو خلکو په خواهشاتو ټینګار کول، او هماغه د دین په حیث معرفي کول.
**دوهم**: راډیوګانو، تلویزونونو، او نورو رسنیو ته دهغو علماؤ رابلل چې دغرب د نظریې مطابق د اسلام تفسیر کوي، او اسلام ئې له استشراقي منابعو څخه زده کړ ی وي.
**دریم**: د امریکایانو د ګوډاګي رژیم لخوا په مرکز او ولایاتو کې د یرغلګرو په بودیجه دیني مدرسې جوړول، او په هغو کې د هغه دیني نصاب تدریسول چې د تعلیم او تربیې په وزارت کې د دیني

تدریسـاتو د ریاست لپـاره د امریکـا یـي مشـاورینو تـر نظـارت لاندې جوړ شوی دی.

**څلورم:** د افغانستان عدلي او قضائي سیستم چې تر ډیره حده په اسلام ولاړ ؤ، اوس په هغه کې د ایټالیا دهیواد لخوا بیا کتنه، او تعدیلات راوستل، او هم د ایټالیا دحقوقي او قانوني ماهرینو له لوري د افغاني قاضیانو، څارنوالانو، عدلي او حقوقي کارپوهانو روزل چې له تیرو اوو کلونو راهیسې په مسلسل ډول دغه پروسه په چټکۍ سره روانه ده، او په سلکونو میلیونونه ډالر ددې لپاره وربانـدي مصرفیږي چې د افغانستان عدلي او قضائي نظام هم دهمغه اسلام مطابق عیار کړي چې د RAND Corporation لخوا ئې د Civil democratic Islam په نامه طرحه تیاره شوې ده. ددې مقصد لپاره په تیرو اتوکلونو کې په افغانستان کې د ایټالیا د سفارت له لوري د افغانستان د عدلي او قضایي سیستم دادارو د کارکوونکو قاضیانو، څارنوالانو، حقوق پوهانو، مدافع وکیلانو او نورو لپاره په لسګونه تعلیمي سمینارونه جوړ شول. له دغو سیمنارونو څخه فارغ شوو قاضیانو ته له حکومتي تنخواه څخه علاوه هره میاشت د ایټالیا د هیوادو لخوا دهغوئ د رتبو او فعالیت په تناسب په سلګونو ډالره نور معاش هم ورکول کیږي، تر څو دعدلي او قضائي سیستم د غربي کولو د پروسې په وړاندې حساسیت ونه ښئي.

**پنځم:** په افغانستان کې دمصر دالازهر د سیکولر پوهنتون د څانګې پرانستل:

امریکا پدې پوهیږي چې تر څو پورې افغانان له خپلو مخلصو علماؤ څخه په مسجد، محراب او مدرسه کې دین زده کوي تر هغه پورې به په افغانستان کې خلک حقیقي اسلام د دین په حیث مني. او له هغه څخه د دفاع پخاطر به په ملیونونو ککرۍ هم قربانۍ ته وړاندې کوي، لکه چې په تیرو څلویښتو کلونو کې ولیدل شول. نو باید امریکایان د افغاني مخلصو علماؤ او دهغوئ د مدارسو پر ځای افغانانو ته داسې

نوي او غرب پلوي علماء چی په امریکایي اسلام روزل شوي وي لـه بـل ځایه راوارد کړي. او دغـه ډيمـوکراټ علمـاء بایـد لـه داسـې یـو هیـواد څخه را وارد کړي چې هم د غرب لپاره کار وکړي، او هم یـو څـه دیـني او علمـي وجاهـت ولـري، چـې دغـه صـفات پـه اوسـني ازهـر، او ازهـري علماؤ کې لیدل کیږي. له همدې امله د کابـل ګـوډاګـې اداري لـه مصـر څخه چې په عربي نړۍ کې د اسرائیلو او امریکا تر ټولو لوی حلیف دی په کابل کې د ازهر د پوهنتون د یوي څانګې د پرانستلو غوښـتنه وکـړه چې ومنله شوه.

یـوه خبـره د یـادولو وړ ده چې ازهر پخـوا د حقیقـي اسـلام د زدړه کـړې مرکز، د اسلام یوه ستره کلا، او له الله ﷻ څخه د ویریـدونکو علمـاؤ د روزنې ځای وو. خو اوس ازهر د مصر دسیکولر حکومت یـوه سـیکولر تعلیمي مؤسسه ده چې یو مسخ شوی اسلام تقـدیموي. د ازهـر اوسـني مدرسین داسې خلک دي چې ډیرې ئې خریـلې وي، سګرټ څکوي، تــدین ئــې کمــزوری وي، هــر څــه چــې حکومــت ورتــه وایــې همـاغــه تدریسوي. په نږدې ماضی کې چې څومره ازهریان جمهور رئیسان او یا وزیران او د لوړو رتبو خاوندان شوي دي ټولو ئې ښه تاریخ نه دی پرې ایښی. دمثال په ډول پـه انـدونیزیا کـې عبـدالرحمن وحیـد، پـه مالـدیف کـې مـامون عبـدالقیوم، پـه افغانسـتـان کـې ربـانی او مجـددي، د رئیسـانو په حیث، او سیاف د یو تنظیم د مشر په حیث، او اوس د ستري محکمې رئیس عبدالسلام عظیمي هم یو سـیکولر ازهـری عـالم دی.

په اوسنیو ازهریـانو کـې د ټولـې اسـلامي نـړۍ پـه سـطحه یـوه مشـترکه نظریه موجوده ده، او هغه دا چې د غرب په خلاف هر ډول مسلح جد او جهد باید جهاد ونه بللی شي، هغه ته باید تروریزم، افراطی تـوب، او خارجیت وویلـی شـي، بایـد دهغـه مخالفـت وشـي، او ځوانـان ورڅخـه واړول شـي، چـې همدغـه دغـرب هدفونـه دی. تـر اوسـه پـوري ډیـر لـږ

معاصرازهريان داسې ليدل شوي چې د اسلام او جهاد په اړه ئې ښه مواقف لرلي وي.
امريکا اوس په افغانستان کې د ازهر د پوهنتون د څانګې له لارې د امريکايی (سيکولر اسلام) علماء روزل غواړي، تر څو په مستقبل کې ددغه ډول (امريکايي اسلام) لپاره کار او دعوت وکړي، او هم په سيمه کی د رښتنيو او مخلصو مسلمانو علماؤ په مقابل کې يوه داخلي جبهه پرانيزي.
شپږم: شپږمه ماده ټولنې ته د ډيموکراتو علماؤ دمعرفي توصيه کوي چې په افغانستان کې پدې ډول عملي شوې ده.
امريکايانو له خپل يرغل وروسته ټول حق پالونکي علماء په يوه او بل نامه تر تعقيب او مجازات لاندې ونيول. ځينې ئې بنديان کړل، ځينې ئې شهيدان کړل. او ځينې نور ئې دهيواد پريښودلو او يا د خولې بندولو ته اړ کړل، تر څو پدې ډول منبر او محراب، مکتب، او مدرسه له هغو علماؤ څخه خالي کړي چې د(امريکايي اسلام) د خوريدو مخينوی کوي. او په عين وخت کې ئې دغه تشه په هغو علماؤ او پوهانو ډکه کړه چې له امريکا او غرب څخه متاثره دي، ډيموکراسۍ مني، او د ډيموکراسۍ په چوکاټ کې هغومره ديني فعاليت کوي چې ډيموکراسي ورته اجازه ورکوي. او د دي لپاره چې د ډيموکراسۍ دافاديت او د بيان د آزادۍ حق ئې ادا کړي وي کله ناکله دحکومت په ځينو اقداماتو نقد هم کوي، چې پدی کار سره دوه هدفه تر لاسه کول غواړي. يو دا چې عامو خلکو ترڅنګ په خپل شتون دهغه تور مخ هم ورسپين کړي، او خلکو ته دا وښيي چې امريکايان له علماؤ سره هيڅ دښمني نه لري. او که څوک غواړي د اسلام لپاره کار وکړي، نو رادې شي د دوئ په څير دې د ډيموکراسۍ په قالب کې دين ته خدمت وکړي.
امريکايانو دغو غرب پلوو ملايانو او استاذانو ته د شهرت د ترلاسه کولو لپاره د نشراتو اجازه هم ورکړې ده. په مرکز او ولاياتو کې ئې

دمراکـزو د جوړولـو، او دهیـواد پـه پوهنتونونـو کـې د محصـلینو او استاذانو پـه منځ کې د علني فعالیت جواز هم ورکړی دی. ددغې اجازې په بدل کې دغه تش په نامه مسلمانان د امریکا له لوري جوړ شوي ګوډاګي حکومت ته لاندې خدمات تر سره کوي.

# امریکا ته د غرب پلوو علماؤ خدمات

**اول:** په افغانستان کې د دیني علماؤ په حیث د ډیموکراسۍ منل، او له یوه سیکولر ډیموکراټ حکومت سره حساسیت نه ښودل.
**دوهـم:** د ځوانـانو او عـامو مسـلمانانو لـه ذهـن څخـه دجهـاد، قتـال، هجرت، ولاء او براء یعني (د الله ﷻ لپاره له چا سره وستي او دښمني کول) د مفاهیمو ویستل، او خلکو تـه دا خبره تلقینول چې جنګ او ټوپک د مشکل حل ندی، جنګ او ټوپک افغانستان وران کړی دی، نور باید له نړیوالې ټولنې سره د وطن په آبادولو کې لاس یو کړو. او هم خلکو ته دا تبلیغات کول چې طالبان او مجاهدین د فلاني او فلاني جهت ایجنټان دي، او هیڅ افغاني اجنډا نه لري، نو باید د هغوئ خبره ونه منل شي.
لـه جهـاد او قتـال څخـه د خلکـو را ایسـارول یـو لـوی منافقت، او د امریکایانو د هدف پوره کول دي چې دغه ډول ډیموکراټ علماء ئې په ډیرې بې شرمۍ ترسره کوي.
**دریـم:** د شـکوکو او شـبهاتو پـه خپرولـو د حقیقـي علمـاؤ د دعـوت پـه وړانـدې د خنډونو راولاړول، د مثـال پـه ډول: ځوانـانو تـه دا ویـل چې دجهاد لپاره د متفق علیه امیر شتون او د بیرغ یـو والـی شرط وي چې اوس په افغانستان کې نشته. نو پـه همدې بنا پـه اوسنیو شرایطو کې جنګ شرعي جهاد نـه، بلکـه دوطـن ورانـول دي. خـو دوئ د نفـاق لـه مخې له خلکو دا خبره پټه ساتي چې یاد شوي شرایط پـه (جهـاد طلب یعنې هغـه جهـاد کې چې مسلمانان ئې د کفارو پـه خـاوره کې کـوي

ضروري دي. اوس خو په افغانستان کې د فاعي جهاد دی چې په ټولو افغانانو د لمانځه په څیر فرض دی.
**څلورم**: په اسلامي نړۍ کې دغرب یو لوی هدف دا دی چې څنګه مسلمانې ښځې له کور څخه دباندې راوباسي، او هغه موانع او بندونه مات کړي چې دښځو او نرو ترمنځ داختلاط مخنیوی کوي. پدې لار کې غرب په تدریج سره حرکت کوي، او ټول ممکن وسائل په کار اچوي، که څه هم چې ځینې به ئې اسلامي بڼه هم ولري، لکه په ۲۰۰۹ / ۷ / ۴ تاریخ کې چې دکونړ په مرکز اسدآباد کې د امریکا د P. R. T د ولایتي بیارغونې ادارې د یو لک او اتیازره ډالرو په مصرف خاص د ښځو لپاره د یوه مسجد بنسټ کیښود. ډیره د تعجب خبره ده چې امریکا دې طالبان، عالمان، په مساجدو کې په لمانځه ولاړ مسلمانان، په بمباردونو وژني، خو د هغوئ ښځو او خویندو ته دې بیا په ښارونو کې له خپلې جنګي بودیجې څخه ځانګړي ښځینه مساجد جوړوي.
دغه ډیموکراسي پلوي علماء د دیني غونډو، تعلیمي محافلو، او تربیوي اجتماعاتو په نامه په زرګونو مسلمانې خویندې او میرمنې له کوره څخه د باندې راوباسي، په پارکونو، دښارونو په عیدګاهونو، او لوبغالو کې ورته د راجمع کیدلو فرصتونه برابروي. داکار که څه هم چې د دین په نامه تر سره کیږي، خو په حقیقت کې هماغه د غرب د اجنډا پوره کول دي چې دمسلمانو میرمنو له کوره د باندې ویستل غواړي. د اسلام په تاریخ کې مسلمانو علماؤ ددعوت دغه ډول اسلوب ښځو ته د دین د د ورزده کولو لپاره نه دی غوره کړی، او نه هم دا د اسلام له عمومي روح سره سمون لري چې د ښځو لپاره ئې کورونه تر مساجدو هم دعبادت لپاره غوره ګڼلي دي.
درنډکار پوریشن د امریکایې طرحې اومه ماده په اسلامي هیوادونو کې دغیر اسلامي هیودادونو، او ولسونو د تاریخ او تمدن دمعرفي خبره کوي، او بیا په خاص ډول توصیه کوي چې د (ماقبل اسلام) زماني تاریخ دې مسلمانانو ته معرفي شي، تر څو هغه خپل تاریخ وګڼي او هغه ته د خپل ځان په منسوبولو افتخار وکړي.

پدې هکله ګوډاګي حکومت تر اوسه په پراخه پیمانه دمکتب په کتابونو کې لدې ویرې پراخ تغییر ندی راوستلی چې د افغانستان په کلیو او ولسونو کې لاتر اوسه اسلامي احساس ژوندی دی، او ډیرې سیمې داسې دي چې حکومت وربانـدي تسلط نه لري. خو همدغه کسر ئې د میډیا او مطبوعاتو له لارې پوره کړی دی. پدې ډول چې ښه ډیر تلویزونونه، او راډیوګانې چې د پردیو لخوا تمولیږي، او سیکولر افغانان ئې چلوي، شپه او ورځ افغانانو ته د غرب او دهندوانو تاریخ، تمدن، او فرهنګ وړاندې کوي.

دا چې ددغو تلویزونونو چلوونکي دهغو غربیانو لخوا استخدام شوي چې د افغانستان اوسنی ګوډاګی حکومت ئې هم جوړ کړي دی، نو ځکه داطلاعاتو او کلتور و زیر(عبدالکریم خرم) ونشو کولای چې ځینې تلویزونونه له هغو نشراتو څخه منع کړي چې د افغانانو له دین، فرهنګ، اخلاقو، او ملي ارزښتونو سره په تضاد کې دي.

همدا ډول هغه سیکولر لیکوالان او څیړونکي چې له اسلام او اسلامي تاریخ سره کینه لري. کوښښ کوي چې خپلې لیکنې په افغانستان کې له اسلام څخه دمخه زمانې دتاریخ او ادیانو لپاره وقف کړي، تر څو وکولای شي خلکو ته دا ورتلقین کړي چې اسلام او اسلامي تمدن د افغانانو په تمدني ژوند کې یو عارضي شی دی چې د فاتحینو په زور دلته راغلی دی. او ددغو ولسونو اصالت په (آریائیت) (زردشتیت) (مزدکیت) او (بودایيت) کې دی. له همدې امله ورته په بودا پورې تړلي آثار، او د تیرو پخوانیو ادیانو بقایا ډیر د اهمیت وړ دي. او د هغو په هکله په سلګونو مقالې په (دایرة المعارفونو) او نور مجلو کې چاپوي. او له دې لارې هڅه کوي خلک په له اسلام څخه په مخکې زمانې پورې وتړي.

د ررنډکار پوریشن د پلان اتمه ماده په اسلامي نړۍ کې د سیاسي پلورالیزم او مدني ټولني، سیاسي احزابو، او تنظیمونو د رامنځته کولو توصیه کوي، او د ولس عام خلک په سیاسي اجرآتو کې فعال

مشارکت ته رابولي. دغه توصيه چې په حقيقت کې د اسلامي ټولنې دټوټه کولو او په بې شميره ګوندونو دويشلو يوه دسيسه ده په افغانستان کې هم په ډير مهارت سره عملي شوه.
دامريکا له راتګ وروسته افغاني ټولنه چې لا د اتو يا نهو احزابود تفرق او منازعاتو له بلا څخه خلاصه شوې نه وه، او نه ئې هغه د رزونه سره بيرته پيوند شوي ول چې دمجاهدينو د اووګوندونو او شعيه ګانو د دوو ګوندونو د جګړو په نيتجه کې په افغاني ټولنه کې رامنځته شوي وو، چې امريکايانو افغاني ټولنه يوځل بيا بيرته په تقريباً دوو سوو سياسي احزابو او ډلونو وويشله.
هر اروپايي هيواد د تقريبا يو يو درجن سياسي احزابو د تاسيس، تمويل، او چلولو، کفالت په غاړه واخيست. له اروپايي هيوادونو پرته ګاونډيو هيوادونو هم په افغانستان کې په قومي او ژبنيو بنسټونو دخپلو سياسي او کلتوري مصالحو د خوندي ساتلو په هدف احزاب او ټولنې رامنځته کړې، او دهغو لپاره ئې په پراخه پيمانه تبليغاتي وسايل او ډله ييزې رسنۍ په کار واچولې.
دغو احزابو او سياسي جريانونو افغانې ټولنه پداسې ډول وويشله چې د ملي وحدت خبره يوائې يو شعار پاتې شوچې هيڅ عملي تحقق نشي موندلای.
مستعمرين هر ځای استعمار شوي ملتونه همداسې په ډلو او ټپلو ويشي، تر څو د د وئ په خلاف ديو کيدلو امکان له لاسه ورکړي. او هم هره ډله د بلې په مقابل کې د ځان لپاره محتاجه وساتي، او په دې ډول د خپلو پاليسيو او طرحو د عملي کولو لپاره له يوه څخه زيات بديلونه په اختيار کې ولري. او همدغه د انګريزانو د پخواني استعماري شعار عملي مصداق دی چې وايې divide and rule يعنې بيل ئې کړه ايل ئې کړه.
په سياسي اجرآتوکې د عامو خلکو د ګډون او د بيان د غربي ډوله آزادۍ مقصد دا دې چې په مسلمانانو کې د اطاعت اوله مرکز څخه د

ملاتړ پر ځای په محلي سطحه د تصمیم نیولو متعدد مراجع رامنځته شي، او د ټولنې افراد دې ته تشویق شي چې مرکزي حکومتونه د خپلو سیاسي اقداماتو په نتیجه کې تر فشارونو لاندې وساتي، چې دا په یوه وخت کې غرب ته دوه فایدې په لاس ورکوي، چې یوه یې د مرکزي حکومتونو کمزوري کول، او بله یې په عامو خلکو کې په خلاص لاس د فعالیت د زمینې برابرول، او هغوئ د حکومتونو په مقابل کې د بیلا بیلو سیاسي او اجتماعي جریاناتو له لارې متحرک کول دي.

# د اسلام پرضد له رواجي ملایانو څخه کار اخیستل

د RAND Corporation تحقیقاتي اداره د امریکایي اسلام د خپرولو په کار کې یوه ډله نور خلک هم تشخیصوي چې اصلاً د دوئ ملګري نه دي، خو له هغوئ څخه استفاده ممکنه ده.
دغه ډله خلک هغه رواجي ملایان دي چې د شرعي علم پانګه ئې لږده، د اسلام له روح او عمومي رسالت سره آشنائي نه لري. بلکه په Professional (حرفوي) ډول په ټولنه کې د دیني چارو په سمبالولو کې اخته دي. او د هر هغه حرکت او نوښت مخالفت کوي چې غواړي اسلام له رواجي شکل څخه راوباسي، او بیرته ئې خپل هغه اصلي شکل ته ستون کړي چې یو وخت ئې په ټوله نړۍ کې هم دین او هم دنیا سمبالوله.
دغه ډول رواجي ملایان فکر کوي چې پدغه ډول یو بدلون دوئ خپل هغه ټول مادي او معنوي مصالح له لاسه ورکوي چې په Professional (حرفوي) ملایۍ کې ئې لري. نو له همدې امله نه غواړي تحریکي او سیاسي علماء دې په ټولنه کې د دوئ ځای ونیسي.

Cheryal Benard دخپـل دغـه کتـاب civil democratic Islam په دوه اویا یمه صفحه کې هغه لارې چارې په ګوته کوي چې څنګه رواجي ملایان د جهادي فکر د تحریکي علماؤ او ځوانانو په خلاف استعمال کړای شي، هغه لیکی:

۱. (د رواجي ملایانو هغه نیوکې او انتقادونه چې دجهادي تحریکی فکر د لرونکو په کړو وړو ئې لري باید په ښه زور او شور سره نشر شي، او ددې دواړو ډلو تر منځ دې د اختلاف اور نور هم تازه کړای شي.
۲. د بنسټګرو او رواجي ملایانو د یوځاي کیدو په لاره کې باید خنډونه ایجاد کړای شي.
۳. د رواجي ملایانو او غرب پلوو ډیموکراټو علماؤ تر منځ دې د نږدې کولو کوښښونه تشویق کړای شي.
۴. رواجي ملایانو ته باید له بنسټګرو سره د مناقشو او مناظرو ښوونه وکړای شي، تر څو و کولای شي د استدلال په ډګر کې د بنسټګرو مقابله وکړای شي. او دا ځکه چې په عمومي ډول بنسټګر د بلاغ او استدلال په ډګر کې تر رواجي ملایانو ډیر قوي دي.
۵. په ځینې هیوادونو کې باید رواجي ملایانو ته د (ډیموکراټ اسلام) تعلیم او تربیت ورکړای شي، تر څو په قوت سره د بنسټګرو په مخکې ودریدلی شي.
۶. د رواجي ملایانو په مدرسو او مراکزو کې دې (ماډرن) علماء ځای پر ځای کړای شي.
۷. دهغو حنفي رواجي ملایانو ملا تړ دې وشي، او نظریات دې ئې خپاره شي، چې د ماډرن علماؤ له نظریاتو سره توافق لري، تر څو د سخت دریزه وهابي نظریاتو مخنیوی وربانديې وشي، چې د غه کار پیسو او علم ته ضرورت لري، ځکه چې د سخت دریزه وهابی

**نظریاتو د خپرولو لپاره هغوئ هم ډیر مال مصرفوي، او هم ئې په علمي لحاظ ډیر پرمختګ کړي دي) .**[1]

د پورتنیـو یادوشـویو توصـیو د عملـي کولـو پخـاطر ولیـدل شـول چـې امریکا تر خپل یرغل وروسته په افغانستان او پاکستان کې لـه رواجي ملایانو او دهغوئ له مدارسو په لاندي ډول استفاده وکړه:

په افغانسـتان کې د امریکـا حکومت پـه مرکز او ولایاتو کـې د علمـاؤ شـوری ګـانې جـوړې کـړې، هغـوئ تـه ئـې معاشـونه مقـرر کـړل، او دمجاهدینو د بد معرفي کولو لپـاره ئې لـه منبر او محراب څخـه سوء استفاده وکړه. یرغلګرو ته ئې مستامنین، او مجاهدنیو ته ئې باغیـان وویل. هر کال ئې ددغو اجیرو ملایانو یو زیات شمیر په دولتـي پیسـو حج ته هم ولیږل.

همدا ډول په پاکستان کې امریکا پلوي حکومت د پاکستان د رواجي اوجمهوري ملایانو ټول تنظیمونـه، مـدارس، او دارالافتـاء ګـانې د(لال مسجد) له حرکت، د نفـاذ شریعت محمدي لـه حرکت،او د طالبـانو لـه حرکت څخـه نـه یـوازې دا چـې لیـرې وسـاتلې، بلکـه پـه ښـکاره ئـې لـه هغوئ څخه ددغو جهادي او تحریکي نهضتونو په غندلو کې بیـا نونـه هم صادر کړل، او هم ئې له هغوئ سره دهمکارۍ د نه کولو فتواګـانې صادرې کړي. چې دې کار په پاکستاني ټولنه کې د رواجي او جمهـوري ملایانو موقف ته ډیر سخت تاوان هم ور واړاوه، او د عـامو مسـلمانانو اعتماد ئې له هغوئ څخه سلب کړ.

ددې تر څنګ دا هم ولیدل شول چې د برتانیې او امریکا حکومتونو په مستقیم ډول د پاکستان له ځینې مشهورو مدارسو او په خاص ډول له هغو سره چې په سرحد کې نه دي تماسونه ونیول، او ځینې مشهورو مدرسو خو لا په کراچۍ کې په هغو موضوعاتو (تقریري مسابقې) هم په کار واچولې چې غرب ته په اوسني وخت کې ډیر اهمیت لري، لکه د بشر د حقوقو، دمذهبي زغم، سوله ییز ژوند، او دې ته ورته

[1] - ۷۲ مخ Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

موضوعات، او په دغو مسابقو کې دکامیابانو لپاره درنې نقدي جائزې هم په نظر کې نیول شوې وې.
د شپږمي توصیې د پرځای کولو لپاره په افغانستان کې د P.R.T ګانو او امریکایانو لخوا په بیلا بیلو ولایاتو کې مساجد او مدارس جوړ شول، او هغه ماډرن، او یا رواجي ملایان ورکې موظف شول چې له جهاد او مجاهدینو سره حساسیت لري. او هم په پاکستان کې د دیني مدارسو په چوکاټ کې حکومتي ډوله د شرعیاتو غیر رسمي فاکولتې جوړې شوې، او هغه محصلین ورکښې جذب شول چې پخوا ئې مدرسې نه وې ویلې، د دولتي پوهنتونونو او کالجونو فارغان ول، او یوازې د څو لنډو دورو (Short courses) له لارې چې هغه هم اکثره د حکومتي پوهنتونونو د استاذانو لخوا ورته تر سره کیږي، د علماؤ په القابو نازول کیږي، او د مدارسو اداري، توجیهي او مطبوعاتي چارې ورسپارل کیږي، تر څو په راتلونکي وخت کې دغه ډله خلک دماډرن علماؤ په حیث په مدارسو کې تبارز وکړي. د تعجب ځای خو لادا دی چې دغه ډول ماډرن شاګردانو ته د شاګردۍ په وخت کې هم تر مدرسینو ئې لوړې تنخواګانې ورکول کیږي، پداسې حال کې چې دمدرسې نور طالبان دچندو په راټولولو ګومارل کیږي، او ډیره موده په داسې علومو او فنونو مصروف ساتل کیږي چې اصلاً ورته هیڅ ضرورت نه لري. همدغه پاکستاني مدارس اوس په ښکاره خپل شاګران له مجاهدینو سره له یوځای کیدو منع کوي، او مجاهدین ورته د دین او دوطن د دښمنانو په حیث معرفي کوي. البته دغه خبره یوازې په هغو مدارسو پورې خاصه ده چې چلوونکي ئې له حکومت سره قوي روابط لري، او سیاسي اجنډا ئې هم له حکومت سره شریکه ده.
د اوومي توصیې د عملي کولو لپاره چې باید دمجاهدینو نظریاتوته دوهابیانو نظریات وویل شي هم په ساحه کې پراخ کار روان دی.
غربي مطبوعات هڅه کوي جهادي فکر یو وهابي فکر وښیي. او په دې هکله ښه پراخ تبلیغات هم کوي. او هم په غیر مستقیمه طریقه رواجي

ملایـان تحریکـوي تـر څـو لـه مـذهب څخـه د دفـاع پـه نامـه دهغـو عربـو مجاهدینو په خلاف موقف ونیسي چې یوازې د الله ﷻ د رضا پـه خـاطر ئې دجهاد لاره نیـولې ده، او پـدې لاره کـې ئـې لـه مـاڼیو، وظیفو،هوسا ژوند، خپل کور او کلي، او بالآخره له هر دنیـاوي نعمت څخـه ځانونـه محـروم کـړي دي. دغرونـو او غـارونو ژونـد، او د شـهادت او تـوتـه تـوتـه کیـدلو مـرګ ئـې خـوښ کـړي،.تـر څـو د الله ﷻ لـه دیـن، او د مظلومـو مسلمانانو له ننګ او ناموس څخه دفاع وکړي.

امریکایان غواړې چې عام افغانـان بایـد دغـه مجاهـدین پـردي وبـولي، خـو د د وئ پـه خـلاف راغلـي یرغلګـر صـلیبي پوځیـان خپـل دوسـتان وګڼي.

او که خبره دوهابیت وي، نـو دوهابیـانو تنظیمونـو خـو پـه افغانسـتان، پاکسـتان، او سعودي، دري واړو کـې لـه امریکـا پلـوو حکومتونـو سـره بیعت کړی دی. او د مجاهدینو پر خلاف د حکومتونو له نعمتونو څخه خوندونه اخلي. د مجاهـدینو پـه خـلاف فتـواوې صـادر وي، او(خـوارج) ئې بولي، او په ښکاره د صلیبي ځواکونو په خلاف جنګیدونکو مؤمنو مجاهدوته د (ګمراه ډلې) خطاب کوي.

## د بنسټګرو مخالفت او مخنیوی

د RAND Corporation امریکایې تحقیقاتي اداره دسیکولر عناصرو له ملاتړ او له رواجي ملایانو څخه د استفادې دلارو چارو تر تشخیصولو وروسته په خپل کتاپ ((Civil democratic Islam)) کې د رښتینیو مسلمانانو چې دوئ ئې بنسټګر بولي د مخالفت او مخنیوي یوه مفصله طرحه وړاندې کوي چې عناصر ئې په لاندې ډول معرفي کوي او لیکي:

۱. ( (د اسـلام پـه اړه بایـد د بنسـټګرو د تعبیـر او تفسـیر مخالفـت وشي. او غلطي ئې بربنډې کړای شي.

۲. د بنسټګرو هغه روابط باید راوسپړل شي چې لـه غیـر شرعي ډلـو سره ئې لري.
۳. د بنسټګرو زور زیاتی، او دهغه عواقب باید خلکو ته نشر شي
۴. د دې خبرې د اثبات لپاره باید ډیر کار وشي چې بنسټګر دخپلو ټولنو او دولتونو د ترقۍ او پرمختګ لپاره هیڅ پروګرام نه لري. او همدغه پیغام باید په خاص ډول ځوانانو، عامو او ساده خلکو، ښځو، او په غرب کې میشتو اقلیتونو ته ورسول شي. (تر څو خلک په هغوئ اعتماد ونه کړي) .
۵. د خلکو له ذهنونو څخه باید د بنسټګرو احترام، او د هغوئ د کارنامو تقدیرول وایستلی شي. او هم باید په بدو نومونو لکه: ویره اچوونکو، ورانکارو، او ډارنو، یاد کړای شي.
۶. لیکوالان، ژورنالستان، څیړونکي باید وهڅول شي چې دبنسټګرو په هکله د فساد، نفاق، او فسق لیکنې وکړي، راپورونه تیار کړي او خپاره ئې کړي.
۷. باید کوښښ وشي چې بنسټګر په بیلابیلو طبقووویشل شي)).[۱]

پورتنۍ توصیې هم په دقیق ډول په افغانستان کې په لاندې ډول د عملي کیدلو په لار کې دي:

۱. امریکا د خپلې میډیا لـه لارې کوښښ کوې (حقیقي اسلام) د مجاهدینو یو خپل (افراطي تعبیر) وبولي چې په اوسنۍ زمانه کې دعملي کیدلو وړتیا نه لري. او هغه اسلام حقیقي اسلام وبولي چې د دوئ لخوا په (سیکولر) اسلامي هیوادونو کې رامنځته شوی او همدوئ ئې تر شا ولاړ دي.
۲. امریکا او ملګري ئې کوښښ کوي چې په درواغو دمجاهدینو او (مافیایي) ډلو تر منځ د رابطو خبرونه خپاره کړي. او د مجاهدینو مصاریف له مخدرو موادو څخه له لاسته راغلو پیسو څخه وګڼي.

[۱] - Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

۳. دغـرب میـډیا شـپه او ورځ د مجاهـدینو پـه خلاف منفـي تبلیغـات کـوي چـې د امریکـا او غـرب د ړنـدو او وحشـیانه بمباریو دمـرګ ژوبلې پړه پر مجاهدینو واچوي. کـه امریکایان پـه سلګونو کلیوالـ او عـام خلک ووژنـي هغـه یـوه سـهوه او غلطـي هـم نـه بـولي، بلکـه اصلاً ئې خبر نه تائیدوي، که څه هم د دوئ ګوډاګیانو څو څو ځلـه هغه تائید کړې هم وي. خو که مجاهدین چیرته کوم خائن، غدار، او جاسوس ووژني، او یا کوم شرعي حد نافذ کړي، لـه هغـه ثخـه بیا ډنډوره جوړوي او په هفتو هفتو دغرب میډیا ور باندې مرکـې او تبصرې خپروي.

۴. امریکـا کوښـښ کـوي مجاهـدین ورانکـاري او دسـولې دښـمنان معرفي کړي، خو خپله ئې چې نیم افغانسـتان لوټې لـوټې کـړ، پـه لکونو خلک ئې دوطن پریښودو ته اړ کړل، او په لس ګونـو زره بـې ګنـاه خلـک ئـې پـه تیـرو اتـو کلونـو کـې ووژل، او مؤسسـوئې پـه لسګونو ملیارده ډالره غلا او اختلاس کړل، بیا هم غـواړي ځان د سولې کوتره وښیي، او د افغانستان د آبادولو دعوه وکړي.

۵. غـرب هڅـه کـوي چـې د خپلـو تبلیغـاتو لـه لارې د اسـلام ریښـتیني علماء او مجاهدین دتنګ نظرو، بیرته پاتو، نامهذبو، سخت زړو، کم علمو، او بې سوادو، په حیث معرفي کړي. او د مجاهدینو هغو زړورو او حیرانوونکو کارنامو ته چې ټول کفار ئې هیښ او حیـران کړي دي، ډارن او بزدلانه بریدونه ووائي. که د اسلام حقیقي علماء بیرتـه پـاتې، نامهـذب او کم علمـه وي، نـو ټـول غـرب ئـې د خبـرو ځواب په خبرو او منطق ولـې نشـي ورکولی؟ ولـې دخبـرو او منطـق پرځای لـه بمونـو او مرګونوکـار اخلـي؟ او کـه مجاهـدین ډارن وي، نوبیا امریکا یوازې ولې نه را میدان ته کیږي؟ ولـې ئـې ټولـه دنیـا په زاریو او ننواتو د ځان تر څنګ درولې ده؟

۶. دا چې د ریښتنیو علماؤ او د الله ﷻ د لارې دمجاهدینو په منځ کې فسق او اخلاقي فساد وجود نه لري، نو ځکه غرب پلوو لیکوالو ته هم څه په لاس نه ورځي چې لیکل پرې وکړي.

۷. د مجاهدینو په بیلا بیلو ډلو او طبقو دویشلو هڅه له پخوا راهیسې روانه ده، کله کوښښ کوي یوه ډله د منځلارو په نامه، او کله بله ډله د منځلارو په نامه ونوموي،خو تر اوسه هیڅوک د دوئ دخوښې په منځلاریتوب ندي راوتلي.

## د ډیموکراتو عناصرو مرسته

رنډکارپوریشن که په خپلې طرحې کې له یوې خوا د رښتینو مسلمانانو او مجاهدینو د بدنامولو او په هغوئ پورې د تورونو او تهمتونو د پورې کولو توصیه کوي، له بلې خوا په اسلامي هیوادونو کې د هغو بې دینه (سیکولر) عناصرو د تقویې او د هغوئ د مواقفو په ستایلو، او په ټولنه کې ورته د قیادي حیثیت د ور ښلو طرحه هم په لاندې ټکو کې وړاندې کوي او لیکي:

۱. ((سیکولر او ډیموکرات عناصرو باید وپوهولای شي چې بنسټګر د دوئ او د امریکا مشترک دښمنان دي.

۲. په اسلامي هیوادونو کې باید کوښښ وشي چې غرب پلوي ډیموکراټ عناصر له هغو جهتونو سره له ائتلاف څخه لیرې وساتل شي چې له امریکا سره اختلاف لري لکه نشنلستان او یا د کمونیستي ایډیالوژۍ لرونکي عناصر، (هسی نه چې غرب پلوي دیموکراتان د غرب په ځای د بل چا د اجنډا لپاره په کار اخته شي).

۳. په اسلامي نړۍ کې باید د دین او دولت د جلا والي نظریه تقویه شي. او پدې لار کې باید مسلمانانو،ته دا تلقین وشي چې دغه نظریه دین ته هیڅ خطر نه پیښوي، بلکه دین نور هم خالص کوي او تقویه کوي ئې.

۴. په اسلامي ټولنو کې باید نوي قیادتونه ایجاد، او هغو ته رشد ورکړل شي
۵. هغه غرب پلوي نوي قیادتونه چې د ذلت له خطر سره مخ دي باید په هغو کې له مدني حقوقو څخه د مدافعو قیادتونو زړورتیا او مواصفات پیدا کړو. په خاص ډول په ښځو کې لکه په افغانستان کې چې (سیما ثمر) او په مصر کې (نوال سعداوي) رامنځته شوې.
۶. د مسلمانانو اکثریت باید په پراخو سیاسي فعالیتونو کې شریک کړای شي، تر څو دعامو مسلمانانو د (افراطي مسلمان کیدو) مخینوی وشي. او د افراطي مسلمان کیدو په عوض دا خبره ورته تلقین کړای شي چې اسلام خو د دوئ د فرهنګ یوازې یو جزء تشکیلوي او دهغه ترڅنګ نور شیان هم شته چې د ټولنی عمومي فرهنګ ترې جوړیږي.
۷. د مدنې ټولنې فرهنګ ته دې وده ورکړل شي. په خاص ډول په جنګ ځپلو سیمو، مهاجرینو، او له کړکیچ څخه په راوتلو ټولنو کې. سیکولر او دیموکرات قیادت باید له دغه ډول وضعیت څخه استفاده وکړي، او د غیر حکومتي مؤسساتو او ټولنو په جوړولو په کلیو او ښارونو کې داسې بنسټیز فرصتونه ایجاد کړي چې په نتیجه کې په خلکوکې معتدل (ماډرن) سیاسي قیادتونه او سیاسي فرهنګ راوټوکیږي) ) [1]

پورتنۍ یادې شوې توصیې هم د نورو توصیو په څیر په پوره دقت په اسلامي هیوادونو او بیا په خاص ډول په هغو هیوادونو کې چې جهادي حرکتونه ورکښې موجود دي عملي شوې دي.
امریکا نه یوازې د سیمې ډیموکراټ او سیکولرعناصر پدې وپوهول چې رښتني مسلمانان د دوئ او د امریکا مشترک دښمنان دي، بلکه عملاً ئې دیموکرات حکومتونه دخپل ځان ترڅنګ د مسلمانانو په

[1] - ۷۰-۷۳ مخونه Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

خلاف د جنګ په صف کې ودرول. همدغه سیکولرحکومتونه دي چې په لکونو مسلمانان بې کوره کوي، وژني ئې، او په کلیو او کورونو ئې پدې جرم بمونه اوروي چې هغوئ اسلامي ژوند غواړي.
او همدغه د پردیو په لاس جوړ شویو حکومتونو داسې نظامونه جوړ کړي چې اسلام ورکښې هیڅ ځای او نقش نه لري. دین ئې د دولت او نظام له چارو محروم کړي، او په ټولنه کې ئې یوازې تش نوم غواړي او بس. او که څوک د عملي اسلام غوښتنه کوي هغه د تروریستو، بنسټپالو، سخت دریځو، او ورانکارو په نامه ځپل کیږي.
غربیانو مسلمانو ملتونو ته د حقیقي قیادتونو او قهرمانانو پر ځای ډمان، سندرغاړي، لوبغاړي، ګډاګر، کرکټیان، او د فلمونو ممثلین د قهرمانانو په حیث ور معرفي کړل. او شپه او ورځ د غرب او دهغوئ د ډیموکراټو ملګرو مطبوعاتي او نشراتي اداري د همدغو جعلي قهرمانانو په ځلولو او ستایلو بوخت دي. غواړي چې د مسلمانو ولسونو ځوانان دې په هر څه کې ددغو خلکو تقلید وکړي. او دغو جعلي قیادتونو ته د رشد او تبارز ورکولو پخاطر ئې په سلګونو بیلابیلې ټولنې، جرګې، سازمانونه، ادبي بهیرونه، کلبونه، قومي جرګې، او کلتوري بنیادونه ایجاد کړي، تر څو همدوئ د ټولنی په اجتماعي ذهنیت کې دقهرمانانو په حیث ځای و نیسي.
په افغانستان او نورو اسلامي هیوادونو کې د ډیموکراټانو تعلیمي نظام او میډیا هڅه کوي خلکو ته اسلام د یو رواجي دین په حیث چې په عرفونو او عنعناتو ولاړ دی معرفي کړي. او دا هم ورته تلقینوي چې اسلام باید د دوئ د فرهنګ یو جزء وي، نه دا چې د ژوند هر څه دې یې د اسلام تابع وي.
د غرب او دهغه دلاسپوڅو ډیموکراتانو اخبارونه، راډیوګانې، تلویزیونونه،د مسلمانانو د بیلا بیلو مهمو سیاسي، اجتماعي، فرهنګي، پوځي او ستراتیژیکو چارو په هکله له داسې شخصیتونو سره مرکې کوي چې هغوئ اصلاً نه په اسلام خبر دي، او نه د اسلامي

نړي د مشکلاتو د تشخیص استعداد او ظرفیت لري. بلکه ټول ئې هغه خلک دي چې کوښښ کوي په هر څه کې دغرب تله درنه، او د ریځ ئې پرحقه وښئې. او دا هر څه ددې لپاره تر سره کیږي چې دغه ډول خلکو ته په ټولنه کې قیادي حیثیت وروبښي.

## د بنسټګرو په خلاف هجومي کړنلاره

د Civil democratic Islam کتاب په پای کې د مسلمانانوپه خلاف غرب او دهغه سیکولرو ملګرو ته یوه هجومي کړنلاره ټاکي، تر څو اسلام او مسلمانان په خپل کور کې تر هجوم لاندې ونیول شي، او دا توانائې له لاسه ورکړي چې خپل دعوت او جهاد غرب ته ورسوي. په دغې هجومي کړنلارې کې استعمالیدونکي وسایل بیا هم له اسلامي نړۍ څخه غوره شوي دي، تر څو د مسلمانانو په خپله وسله بیرته همدوئ له منځه یوړل شي.

دغه کړنلاره په دریو مهمو بنسټونو درول شوې ده چې په لاندې ډول دې:

١. مسلمانان له هجومي استعداد او صلاحیت څخه محرومول.
٢. له صوفیانو او تصوف څخه د غرب د اهدافو د تر سره کولو لپاره استفاده کول.
٣. د نوي نسل غربي ډوله روزل.

چیریل بینارډ دغه هجومي تګلاره پدې ډول تشریح کوي او لیکي:

**(( . . . . . په بنسټګر اسلام پورې له مربوطو اشخاصو او منصبونو څخه باید د قانونیت او صلاحیت حیثیت سلب کړای شي، او هم ورباندې اخلاقي بریدونه تر سره شي. تر څو هغوئ له خپل ځان څخه په دفاع مصروف وساتل شي، او د غرب اخلاقي فساد ئې له یاده ووځي ))** [١]

---

١- ٧٢ مخ Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

همدارنګه له تصوف څخه د استفادي په هکله ليکي:

**( (صوفي مذهب ته بايد ډير اهميت ورکړل شي. هغه هيوادونه چې صوفيانه توجهات لري دهغو اوسيدونکي بايد دې ته وهڅول شي چې پر خپل صوفيانه تاريخ او فرهنګ ټينګار او ترکيز وکړي، او د اسلام صوفيانه فهم ته دې په تعليمي نصابونو کې ځای ورکړي، تر څو خلک صوفيانه اسلام ته راوبولي) ) .** [1]

چيريل د تصوف او صوفيانو په هکله ليکي:

**((..... صوفيان په ماډرنستانو کې شميرل کيدی شي. هغوئ د اسلام په اړه يو آزاد فکر او تعبير لري. په کار ده چې په افغانستان او عراق کې چې خلک ئې صوفيانه عنعنات لري صوفيانه تاثيرات په تعليمي نصابونو او دخلکو په کلتوري معيارونو کې تشويق او تائيد کړای شي... صوفی حرکت د خپلې فلسفې، خپلو صوفيانه اشعارو، اوخپلې موسيقۍ له لارې د بيلا بيلو دينونو ترمنځ دوصل کيدو قوي پلونه غزوي))**

له صوفيانو او تصوف څخه د استفادې توصيې په افغانستان کې په لاندې ډول عملي شوې:

دامريکايانو له راتګ سره سم د افغانستان اوسيمې په لويو او وړو ښارونو کې د خرافي زيارتونو بازار ډير ګرم شو. د اطلاعاتو او کلتور وزارت چې د امريکايې تابعيت لرونکی (مخدوم رهين) ئې په راس کې وو په ښارونو کې د صوفيانه دربارونو او خانقا وو جوړولو ته پوره توجه وکړه. بيلابيلو منحرفو صوفيانه ډلو په کابل او ولاياتو کې د عوتي پروګرامونه پيل کړل.

حکومت د بلخ په ولايت، او د کابل د آسمائې غره په لمن (کارته سخي) کې په خرافي زيارتونو، او هلته په ترسره کيدونکو مشرکانه مراسمو په لکونو ډالره ولګول. د سيمې دهيوادونو په مزارونو کې د ملنګۍ، چرسيتوب، موسيقۍ او ګډا د محفلونو د برابرولو لپاره ډيرې

---

[1]- پورتنی مصدر ۵۸ مخ .

آسانتیاوې رامنځ ته شوې. او دا هر څه د صوفیانه اسلام د مظهر، او روحانیت ته د توجه تر عنوان لاندې تر سره کیږي. مساجد او مدارس بمبارديږي، مدرسین او طالبان وژل کیږي، خو په مقابل کې ئې خانقاوې او صوفیانه دربارونه ودانیږي.

همدغه صوفیانه اسلام ته د رواج ورکولو په نیت ۲۰۰۷ م کال د یونسکو لخوا د مشهور صوفي شخصیت جلالدین رومي په نامه ونومول شو. او د هغه د صوفیانه شخصیت، فلسفې او افکارو په اړه د اروپا په بیلا بیلو ښارونو او استشراقي مراکزو کې سیمنارونه او غونډې جوړې شوې، تر څو دهغه صوفیانه افکار خلکو ته د اسلام په حیث معرفي کړای شي.

البته دا یوه خبره باید ضرور واضحه کړای شي چې تصوف په دوه ډوله دی.یو هغه تصوف دی چې خلکو ته دزهد ، تقوی، اذکارو، او په سنت دعمل درس ورکوي. چې پدې معنې کې تصوف زهد ، تقوی، حسن خلق، او ایثار ته ویل کیږي چې پدغه معنی باید هر مسلمان صوفي او زاهد وي. او بل فلسفي تصوف دی چې د (وحدة الوجود) (وحدة الشهود)، (حلول)، (اشراق)، عباداتو د ضرورت د نشتوالي، او یوازې د زړه د پاکوالي په مشرکانه فلسفې ولاړ دی، چې کټ مټ همدغه ډول تصوف په هندویزم، مسیحیت، یهودیت، بودائیت، کنفوشیسیت، زردشتیت، او نورو فلسفو کې هم وجود لري. دغه ډول تصوف په اسلام کې هیڅ ځای نه لري، او د اسلام پوښتنیو علماؤ تل دهغه له خطر څخه مسلمانان ویرولي دي. خو غرب ته بیا همدغه تصوف مطلوب دی، ځکه چې په دغه تصوف باندې یهودیت، مسیحیت، هندویزم، او نور د ینونه او فلسفې د حقیقي اسلام په مقابل کې سره راټولیدی شي. لکه چې همدا اوس ئې دجهاد په خلاف یوه مشترکه جبهه نیولې ده.

# له تعليم څخه د اسلام په خلاف کار اخيستل:

دا چې تعليم څه ډول د اسلام په خلاف ديوې وسيلې په حيث وکارول شي، او د ښې کارونې په صورت کې کوم نتائج د امريکا په لاس ورځي (چيريل بنارډ) ئې داسې وضاحت کوي:

**((. . . په آسانۍ سره دا ممکنه نده چې بالغ متدين خلک چې له اسلامي حرکتونو سره تړاو لري تر تاثير لاندې راوستل شي، او د خپلو نظرياتو پريښودلو ته دې وهڅول شي. خو دا کار په ډيرې آسانۍ سره په نوي نسل کې ترسره کيداى شي، چې د ډيموکراتيک اسلام پيغام او مفاهيم ورته په تعليمي نصاب، او عمومی نشراتو کې وړاندې کړاى شي)) [1].**

وروسته پدی لاره کې د پرتو خنډونو په هکله ليکي:

**((... خو پدې ډګر کې هم بنسټګرو د خپل تسلط د ټينګولو لپاره ډير کار کړى دى. او ښکاري چې هغوئ ددې ميدان پريښودلو ته له سختې جګړې پرته تيار نه دي. نو په کار ده چې په هماغه قوت او پيمانه چې بنسټګر پدې ميدان مسلط دي مونږ هم کار وکړو، تر څو دا ميدان هم له دوئ څخه خپل کړو)) [2].**

د تعليم د استعمالولو په اړه هم د RAND Corporation توصيې ښې په دقت سره په افغانستان او سيمه کې دعملي کيدو په حال کې دي د مثال په ډول:

١. امريکايانو په افغانسان د تسلط د قايمولوسره سم په يوه مياشت کې ټول تعليمي نصاب تبديل کړ. دمجاهدينو او طالبانو دوخت نصاب چې له تجربوي علوموسره ئې د دين ښوونه هم کوله لغوه شو. او په ځاى ئې د امريکا د (نبراسکا) د پوهنتون لخوا جوړشوى نصاب مقرر شو. له نوي تعليمي نصاب څخه د جهاد او هجرت،

---

١- ٧٢ مخ. Civil democratic Islam Partners Resources and strategies
٢- پورتنی مصدر .

او له کفارو سره د دښمنۍ په اړه ټول مضامین ویستل شوي، او پر ځای ئې د سولې او تفاهم، ښځې او ننني نړۍ، او د تروریزم پر خلاف دجدو جهد په هکله مضامین ځای پرځای شوي دي.

٢. امریکا چې د نبراسکا په پوهنتون کې د افغانستان دتعلیمي چارو کوم د ځیړنو مرکز جوړ کړی ؤ هغه ئې افغانستان ته رانقل کړ، او د پوهنې د وزرات د ټولو چارو نګراني ئې ددغه مرکز او نورو امریکایې تعلیمي مراکزو دمسؤلینو په غاړه ور واچوله.

د امریکا سفارت څو څو ځلې افغان ښځینه او نارینه معلمان د زده کړې، او د امریکا د تعلیم له روحیې سره د آشنا کیدو لپاره امریکا ته ولیږل، او

همدا سلسله لاتر اوسه روانه ده. د تعلیم د سیکولر کولو لپاره د کابل د رژیم ترڅنګ په سلګونو نورې اروپایې او امریکایې موسسې هم په بیلا بیلو شکلونو په کار اخته دي چې ځینې ئې په لاندې ډول دي:

١. د آغاخان تعلیمي خدمات (AKES)
٢. د آغاخان دکلتوري خدماتو مرکز AKTC) )
٣. د افغان تحصیلي بورسونو بنیاد FSA) )
۴. د افغان ترک د تعلیمي خدماتو مؤسسه ATCE) )
۵. د افغانستان انکشافي او تربیوي مرکز AITM) )
۶. د افغانستان د لومړنیو زده کړو پروګرام APEP) )
٧. دافغانستان دښځو لپاره تعلیمي اوخدماتي مؤسسه AWSE) )
٨. دافغانستان د ماشومانو تعلیمي او تربیوي سرکس MMCC) )
٩. دافغانستان دښځو لپاره د بشر دحقوقو د روزنې مرکز(THRA)
١٠. د BBC روزنیزه پروژه: BBC-AEP) )
١١. د تعلیمي پرمختیاؤ اکاډمي ACD) )
١٢. د زده کړې لپاره مشورتي سازمان ACT) )
١٣. دسرف تربیوي او اضطراري دفتر SERVE) )
١۴. د سي آی سي روزنیز مرکز CIC- ETC) )

١٥. د ښوونې انکشافي مرکز EDC) )
١۶. د افغانستان دښځو تعلیمي مرکز AWEC) )
١٧. دمیډې د تعلیمي مرستو مرکز MESAA) )

دا ټولې هغه مؤسسې دي چې په افغانستان کې د اروپايي او امریکايي ادارو لخوا په تعلیمي چارو کې د فعالیت لپاره جوړې شوې دي، او ټولې په هم آهنګ شکل په افغانستان کې دتعلیم دنصاب، محیط، تګلارې، او اهدافو د غربي کولو لپاره کار کوي.

# دامریکایانو له راتګ سره په تعلیمي نصاب کې تبدیلي

افغانستان ته د امریکایانو او اروپایانو له راتګ سره څو ځله تعلیمي نصاب تبدیل شو، او ل ځل یې هغه نصاب له منځه یووړ چې د جهاد په کلونو کې د اسلام د اساساتو پر بنا په یوه سالمه اسلامي روحیه لیکل شوی وو. دمجاهدینو د نصاب پر ځای ئې یو بل نصاب راوړ چې د جهاد او د فاع په اړه ټول مضامین او مفاهیم ورڅخه ویستل شوي وو، تر هغه وروسته یې بل نصاب عملي کړ چې په بشپړ ډول د(سیکولریزم) په روحیه لیکل شوی او عیار شوی دی.
په وروستي نصاب کې داسې ادبیات او مفاهیم ځای کړل شوي دي چې په شعوري ډول نوی نسل له اسلامي مفاهیمو او عقائدو څخه په داسې ډول لیرې کوي، او د غرب له فکري، اخلاقي، او اجتماعي ارزښتونو سره یې آشنا کوي چې هغوئ ورباندې پوه هم نشي. د غرب مفاهیم لکه سیکولریزم، لیبرالیزم، ډیموکراسي، په غربي معیار بشري حقوق، له کفر او کافرانو څخه کرکه نه کول، له کفارو سره ګډه سوله ییز ژوند، او نور ډیر غربي مفاهیم په نوي نصاب کې په ډیرې زیرکۍ او ماهرانه طریقه په تدریجي ډول ځای پرځای شوي دي. او په مقابل کې یې ټول هغه مفاهیم له کتابونوڅخه ویستل شوي چې د نوي

نسل پر اسلام د ټينګ پاتې کيدلو په مقصد د مجاهدينو دوخت په نصاب کې ځای پر ځای شوي ول.
ددې لپاره چې ددې مدعا ثبوت مووړاندې کړی وي يوازې د مثال په ډول د مجاهدينو دوخت د نصاب، او د امريکايانو تر نګرانۍ لاندې د جوړ شوي نصاب، د اول صنف د کتاب محتوی په مقايسوي ډول وړاندې کوو، او دهر مضمون په پای کې د راوړل شوې تبديلۍ د وضاحت پخاطر يوه مختصره تبصره ليکو. لوستونکي به وګوري چې په څومره پيمانه اسلامي مفاهيم يوازې د اول صنف له کتاب څخه ويستل شوي دي.

| دمجاهدينو دوخت نصاب | د کرزي د وخت نصاب |
|---|---|
| (الف) | (الف) |
| الله | الله |
| الله يو د ی. | الله يو دی. |
| محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دی. | مونږ د الله بنده ګان يو. |

**تبصره :** د (محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دی) جمله چې دکلمې طيبې دوهم جز دی غورځول شوې ده.

| | |
|---|---|
| (ب) | (ب) |
| بابا | بريالی |
| بابا قرآن شريف وايي. | بريالی کباب خوري. |
| قرآن شريف د الله ﷻ کتاب دی. | بابا هم کباب خوري. |

**تبصره:**

١. (قرآن او دهغه لوستل) غورځول شوي.

۲. (قرآن شریف د الله کتاب ګڼل) غورځول شوي.

| (پ) | (پ) |
|---|---|
| پاک | پوپل |
| زه خپل کالي پاک ساتم. | پوپل توپ لري. |
| | په توپ لوبې کوي. |
| پاکوالی ښه دی. | زما توپ سپین دی. |

**تبصره :** پاکوالي ته د تشویق پر ځای توپ کولو ته د تشویق مفهوم وړاندې شوی.

| (ت) | (ت) |
|---|---|
| توره | تله |
| احمد توره لري. | دا تله ده |
| په توره جهاد کوي. | په تله تول کوي. |
| | توتیا توت تلي. |

**تبصره:** د تورې او جهاد درس ټول غورځول شوي دی.

| (ټ) | (ټ) |
|---|---|
| ټوپک | ټال |
| زما ماما ټوپک لري. | خاټول په ټال کې زانګي. |
| په ټوپک جهاد کوي. | ختک د خاټولې ورور دی. |

**تبصـره:** د ټوپـک او جهـاد درس غورځـول شـوی، او پرځـای ئـې د بـې پیغامه جملو درس راوړل شوی دی.

(ث)
ثواب
د ناروغ پوښتنه ثواب لري.
زه د ثواب کارونه کوم.

(ث)
ثور د پسرلي دویمه میاشت ده.
په ثور کې ګلان شنه کیږي.
کوثر په باغچه کې ګلان کري.

تبصره: د ناروغ پوښتنه او د ثواب کارونه چې دیني مفاهیم دي غورځول شوي دي.

(ج)
جهاد
جهاد فرض دی
احمد جهاد ته تللی دی.
زه به هم جهاد ته ځم.

(ج)
جاله وان
دا جاله ده
سراج جاله وان دی.
جاله له ژیو څخه جوړیږي.

تبصره: دجهاد دکولو، او دهغه د فرضیت درس په جالې او جاله وان تبدیل شوی دی.

(چ)
چمن
دا چمن شین دی.
په چمن کې ګلان شنه کیږي.
مونږ دچمن ګلان نه شکوو.

(چ)
چمن چارمغز راوړل
کوچی توت او چارمغز خوري.
چمن د مچیو له شاتو سره مینه لري

تبصره: دچمن دګلانو د نه شکولو مفهوم د ماشومانو لپاره په اخلاقي لحاظ د توتو او د چارمغزو له خوړلو غوره دی، خو دلته غورځول شوی دی.

(ح)

حج

زما کاکا حج ته ځي.
د حامد پلار حاجي دی.
حج کول فرض دي.

(ح)

حج

ذبیح حج ته ځي.
دجمال کاکا حاجي دی.
حج کول فرض دي.

**تبصره**: مشکل نه لري.

(خ)

خدای ﷻ

خدایﷻ یو دی.
زه د خدایﷻ بنده یم.
زه په خدای ﷻ ایمان لرم.

(خ)

خیمه

کوچیان خیمې لري.
په خیمو کې ژوند کوي.
اختر په خره بار وړي.

**تبصره**: د خدایﷻ د توحید، دهغه د بنده ګۍ، او پر هغه د ایمان درس غورځول شوی، او پر ځای یې د کوچیانو د ژوند او دخره یادونه شوې ده.

(ښ)

ښادر

اسلم ښادر لري.
د اسلم ښادر نوی دی.
زه په ښادر لمونځ کوم.

(ښ)

ښرخی

زما مور ښرخی کوي.
ښرخي ته په لومښي ناسته ده.
لومښی د وړیو ښخه جوړیږي.

**تبصره**: په ښادر د لمانځه کولو دیني مفهوم غورځول شوی دی.

(ځ)
**ځان**
زه خپل ځان پاک ساتم.
زلمی په پاک ځای کې کښيني.
ښه هلک بې ځایه خبرې نه کوي.

(ځ)
**ځنګل**
دا ځنګل دی.
توریالی هره ورځ ځنګله ته ځي.
ښځې او نارینه په ځنګله کې
پانې ټولوي.

**تبصره:** دماشومانو لپاره په اخلاقي لحاظ د ځان پاک ساتلو، په پاک ځای دکښیناستلو، او د بې ځایه خبرو نه کولو مفاهیم تر ځنګله، او په هغه کې له پاڼو ټولولو غوره دي، خو دلته غورځول شوي دي.

(د)
دین
اسلام زمونږ دین دی.
زه په خپل دین سر ورکوم.
روسان او ټول کافران زمونږ د
دین دښمنان دي.

(د)
دوکان
ودود دوکان لري.
په د وکان کې سودا خرڅوي.
داود له ودود سره مرسته کوي.

**تبصره:** د اسلام د دین، په هغه د سر ورکولو، او د دین دښمنانو د پیژندلو، درس غورځول شوی، او پر ځای یې د د وکان درس راوړل شوی دی.

(ډ)
ډوډۍ
زه د ډوډۍ خوړلو په شروع کې
بسم الله الرحمن الرحیم وایم.
مونږ په کور کې یوځای ډوډۍ خورو.
زما پلار مجاهدینوته ډوډۍ
ورکوي.

(ډ)
ډنډ
مونږ په باغچه کې یو ډنډ لرو.
ماشومان په ډنډ کې لامبو
وهي.
مونږ کله کله د ډنډ په غاړه
ډوډۍ هم خورو.

**تبصره**: د ډوډۍ خوړلو په پیل کې بسم الله الرحمن الرحیم ویل، په کورنۍ کې یوځای ډوډۍ خوړل، او مجاهدینو ته ډوډۍ ورکول ټول دیني او اخلاقي مفاهیم دي چې ټول له یوې مخې غورځول شوي دي.

(ذ)
ذکر
زه د الله ﷻ ذکر کوم.
مسلمانان د الله ﷻ ذکر کوي.
د الله ذکر ثواب لري.

(ذ)
آذان
ملا آذان کوي.
ذکي جومات ته ځي.
په جومات کې لمونځ کوي.

**تبصره**: دومره ډیر فرق یې نشته.

(ر)
روژه
روژه نیول فرض دي.
مونږ په کال کې یوه میاشت روژه نیسو.
روژه روغتیا ته ګټه رسوي.

(ر)
رمه
کوثر رمه لري.
رمه په غره کې پیایي.
له رمې څخه شیدې اخلي.

**تبصره**: د روژې د فرضیت، د روژې د نیولو، او دهغې دګټې درس ټول غورځول شوی دی، او پرځای یې درمې او غره خبره راوړل شوې ده.

(ړ)
ړوند
ړوند سړی څه نه ویني.
د ړانده سره مرسته ښه ده.
زه د ړانده سره کومک کوم.

(ړ)
د زړګې پلار ړوند دی.
د ړانده سره مرسته کول ښه کار دی.
ړوند سړی اوریدل، لیکل او لوستل کولای شي.

**تبصره**: څه مشکل نه لري.

(ز)

زکات

زکات پر مسلمانانو فرض دی.

زکات په مال کې برکت پیداکوي.

زکات بې وزلو ته ورکول کیږي.

(ز)

زرګر

زما زوی زرګر دی.

زمرک له زرو څخه ګاڼې جوړوي.

په ګردیز کې د کاڼو دوکان لري.

تبصره :

۱. د زکات د فرضیت، د زکات له امله په مال کې د برکت، او بې وزلو ته د زکات دورکولو د دیني مفاهیمو درس ټول غورځول شوي دی، او پر ځای یې د زرګر، زور، او کاڼو خبره راوړل شوې ده.

۲. د اول ټولګي د ماشوم لپاره دا جمله غیر منطقي او بې ځایه ده چې ووایي (زما زوی زرګر دی).

(ژ)

ژمی

ژمي کې ډیر ساړه وي.

ژمي کې واوره اوري.

خلک په ژمي کې تودې جامې اغوندي.

(ژ)

ژرنده

نژند یوه ژرنده لري.

پژواک د نژند ملګری دی.

پژواک ژرندې ته نژدې اوسیږي

تبصره: د کرزي د نصاب په درسونو کې د افغانانو لپاره دداسې نومونو د معرفي هڅه شوي چې هیڅ اسلامی معنی نه لري، لکه نژند، پژواک، وږمه، تورګل،ګل اندامه، ګلناره، او داسې نور. پداسې حا ل کې چې افغانان په خپلو اولادونو اکثره داسې نومونه ږدي چې عربی بڼه او دیني مفهوم لري.

( ړ )

ړیره

ړیره پریښودل مؤکد سنت ده.

زما پلار ړیره لري.

د ړیري خلالول په اوداسه کې سنت دي.

(ړ)

وړی

وړمې او تورګل غنم وریبل.

سپموړمۍ دغنمو وړي راټول کړل.

وړمې دغنمو د وړو څخه کودې جوړې کړې.

تبصره: د ړیرې د پریښودلو، دپلار د ړیري لرلو، او د ړیري د خلالولو د سنتوالي، د دیني مفاهیمو درس غورځول شوي دی، او پرځای یې د وړمې او تورګل دغنمو خبره شوې ده.

(س)

سبق

زه په مدرسه کې سبق وایم.

استاذ مونږ ته سبق ښئي.

ما د قرآن شریف سبق یاد کړی دی.

(س)

سابه

اسلم له بازار څخه سابه راوړل..

بسم الله سابه پاک ومینځل.

سابه روغتیا ته ډیره ګټه رسوي.

تبصره: د مدرسې، سبق ویلو، د استاذ له لوري د سبق ښودلو، او د قرآن د سبق دیادولو، ددیني مفاهیمو درس غورځول شوی دی، او پرځای یې دسابو خبره شوې ده.

(ش)

شیدې

غوا شیدې کوي.

له شیدو څخه مستې جوړیږي.

زما شیدې خوښې دي.

(ش)

شپون

شپون رمه پیایي.

رمه چې مړه شي بیا شپیلۍ وهي.

دی په غره کې روشې هم خوري.

تبصره: د کرزې د نصاب په درس کې د شپیلۍ د وهلو چې شرعاً یو ناروا عمل دی د تلقین په هدف یادونه شوې ده.

(ښ)
ښار
دا ښار لوی دی.
دا ښار بریښنا لري.
دا ښار زما خوښ دی.

(ښ)
ښار
زه په ښار کې اوسیږم.
ښار جګ جګ تعمیرونه لري.
په ښار کې کارخانې ډیرې دي.

**تبصره:** مشکل نه لري.

( ص)
صداقت
صداقت ښه کار دی.
صادق سړی د هر چا خوښ وي.
مسلمان سړی صادق وي.

(ص)
صندلۍ
موږ ژمی صندلۍ ږدو.
د بصیر دوئ صندلۍ توده ده.
د صندلۍ ذغال خلاص شول.

**تبصره:** د صداقت، صادق سړي، مسلمان سړی، عبارتونه چې اسلامي روحیه لري غورځول شوي دي، او پر ځای یې د صندلۍ او ذغالو خبره شوې ده.

(ض)
ضرر
ضرر رسول ګناه ده.
ښه هلک چاته ضرر نه رسوي.
مسلمان سړی بې ضرره وي.

(ض)
حوض
مونږ په باغ کې حوض لرو.
دا حوض افضل جوړ کړی دی.
په حوض کې ضمیر لامبو وهي.

**تبصره:** ضرر رسول دګناه په حیث معرفي کول، دښه شاګرد ضرر نه رسول، او د مسلمان بې ضرره والی، په اخلاقي لحاظ د ماشومانو لپاره تر حوض او لامبو وهلو غوره دي، خو دلته غورځول شوي دي.

(ط)

طالب

زما ورور د مدرسې طالب دی.

دعلم طلب په هر مسلمان فرض دی.

طــارق د اســلام يــو نوميــالی مجاهد دی.

(ط)

طوطي

دا د طاهر طوطي دی.

طاهر له طوطي سره خبري کوي..

دخياط طوطي شپيلۍ وهي.

**تبصره**: د طالب، مدرسې، دعلم د طلب د فرض والي، او د طارق (بن زياد) د اسلام د نوميالي مجاهد ګڼلو د ديني مفاهيمو ارزښتمن درس غورځول شوی دی. او پرځای يې دطوطي، اوشپيلۍ وهلو يادونه شوې، او د همدې درس په صفحه کې د طبلې عکس چې د ډمتوب يوه آله ده هم لګول شوی دی.

(ظ)

ظريف

ظريف خپل نظافت ساتي.

نظافت د ايمان يوه برخه ده.

نظافت د روغتيا لپاره ګټه لري.

(ظ)

منظره

دا دمحفوظ د کلي منظره ده.

زمونږ هيواد ښکلې منظرې لري.

ښکلې منظرې د هرچا خوښيږي.

**تبصـره**: د نظافـت سـاتل، هغـه دايمـان يـوه برخـه معرفـي کـول، او د روغتيا لپاره د نظافت د ګټې ښودل، په يقيني ډول په اخلاقي او ديني لحاظ د منظرې تر معرفۍ د ماشومانو لپاره ډير غوره دي. خو د کرزي په نصاب کې غورځول شوي دي.

(ع)
علم
دعلم زده کړه په هر چا فرض ده.
مونږ په مدرسه او مسجد کې علم زده کوو.
بی علمه ژوندون ګران دی.

(ع)
ساعت
دا ساعت دی.
ساعت بیل بیل ډولونه لري.
عبدالله ساعت جوړونکی دی.

تبصره: د علم د زده کړې د فرضوالي، مدرسه او مسجد دعلم ځای ګڼل، او د بي علمه ژوندون د ګران ګڼلو ددیني مفاهیمو درس غورځول شوی دی، چې له علم، فرض، مسجد او مدرسې سره د دښمنۍ مقصد ورکښې له ورایه ښکاري.

(غ)
غیرت
هرمسلمان په اسلام غیرت کوي.
افغانستان یو غرنی اسلامي مملکت دی.
د افغانستان مسلمانان دهیچا غلامي نه مني.

(غ)
غاښ
غمی غاښونه برس کوي.
دغمي غاښونه روغ دي.
غمی روغتیا ته ډیر پام کوي.

تبصره: په اسلام د هر مسلمان دغیرت کولو، د افغانستان د غرني اسلامي مملکت ګڼلو، او دهیچا د غلامۍ د نه کولو، د مفاهیمو ارزښتمن درس غورځول شوی دی.

(ف)
فرمان
قرآن شریف د اللهﷻ فرمان دی.
مونږ د الله ﷻ فرمان منلی دی.
مجاهدین د خپل مسلمان امیر فرمان مني.

(ف)
فوټبال
فواد او غفور فوټبال کوي.
دوئ د فوټبال د لوبې سره مینه لري.
فوټبال کول روغتیا ته ګټه رسوي.

**تبصــره**: قــرآن شــریف د الله ﷻ فرمــان ګڼــل، د الله ﷻ فرمــان منــل، دمجاهدینو له لـوري دخپـل مسـلمان امیر فرمان منل، چې ټول دیني مفاهیم دي غورځول شوي دي.

| (ق) | (ق) |
|---|---|
| قلم | قلم |
| زما قلم نوی دی. | قد یم سبق وایي. |
| زه په ډیر شوق خط لیکم. | دی په قلم لیکل کوي. |
| مقیم او فقیر خبرې کوي. | مقیم په سبق کې ډیر قابل دی. |

**تبصره**: څه مشکل نه لري. ځکه چې دمجاهدینو په نصاب کې په دي درس کې کوم خاص دیني پیغام نه ؤ چې د ویستلو ضرورت ئې پیښ شوی وای.

| (ک) | (ک) |
|---|---|
| کور | کور |
| افغانستان د مسلمانانو کور دی. | زمونږ کور ښکلی دی. |
| کافران زمونږ د دین او وطن دښمنان دي. | زه خپل کور پاک ساتم. |
| مونږ په خپله پاکه خاوره کې دښمان نه پریږدو. | زمونږ په کور کې ګلان شته. |

**تبصــره**: افغانســتان د مســلمانانو کــور ګڼــل، کــافران د دیــن او وطــن دښمنان ګڼل، او په خپله پاکه خاوره د دښمنانو نه پریښودل، چې ټول دیني مفاهیم دي او دجهاد او دفاع روحیه ورکښې پرته ده غورځول شوي دي.

(ګ)
**ګل**
په پسرلي کې ګلان اوساګ شنه کيږي.
په باغ کې رنګارنګ ګلان وي.
ښه شاګرد د ونو څانګې او ګلان نه شکوي.

(ګ)
**ګلان**
دا دګلوباغ دی.
ګلناري د ګلانو ګيډۍ راوړه.
د ګلناري برګ ګلان خوښيږي.

**تبصره**: څهٔ مشکل نه لري. کوم خاص اسلامي مفهوم ورکښې نه و چې د غورځولو ضرورت ئې پيښ شوی وای.

(ل)
لمونځ
پر مسلمانانو لمونځ فرض دی.
مسلمانان په شپه او ورځ کې پنځه وخته لمونځ کوي.
زه لمونځ کوم.
لمونځ سړي له بدو کارو څخه ساتي.

(ل)
لو
لالا لو کوي.
غنم په لاره ريبل کيږي.
لوګرى د لو کالي اغوندي.

**تبصره**: دلمانځه د فرض والي، د پنځه وخته لمانځه دکولو، او د لمانځه په سبب له بد وکارونو څخه د منع کيدلو درس چې دماشومانو لپاره ډير ارزښمن ديني پيغام لري غورځول شوی دی چې له لمانځه سره د دښمنۍ ښکاره بيلګه ده.

(م)
مجاهد
د افغانستان مسلمانان مجاهدين دي.
مجاهدين له کافرانو سره جهاد کوي.
جهاد کول له کافرانو سره فرض دي.
زما کاکا جهاد ته ځي.

(م)
مور
زما مور کالي ګنډي.
مور په اولاد حق لري.
زه د مور احترام کوم.

**تبصره**: د افغانستان مسلمانان مجاهدین ګڼل، له کافرانو سره جهاد کول، د کافرانو په خلاف د جهاد فرض والی، او د کاکا جهاد ته تلل، ټول جهادي مفاهیم دي چې له یوې مخې غورځول شوي دي.

(ن)
نوم
زه خپل نوم لیکلی شم.
زمونږ د پیغمبر نوم حضرت محمد ﷺ دی.
زمونږ د ټولګي زده کوونکي خپل نوم لیکلی شي.
سپک او بد نوم اخیستل ګناه ده.

(ن)
نارنج
زما نارنج خوښیږي.
نارنج ډیره ښه میوه ده.
په ننګرهار کې نارنج ډیر پیدا کیږي.

**تبصره** : د پیغمبر صلي الله علیه وسلم نوم، او دسپک او بد نوم اخیستل ګناه ګڼل، چې اسلامي مفاهیم دي، غورځول شوي دي.

(ڼ)
منړه
دا بڼ د منړو ونې لري.
دا منړه پخه ده.
پخه منړه خوږه وي.
زه خامه منړه نه خورم.

(ڼ)
اتڼ
اتڼ دافغانانو ملي دود دی.
افغانان له اتڼ سره مینه لري.
زما اتڼ ډیر خوښیږي.

**تبصره**: پدې درس کې اتڼ چې د ګډا یو ډول دی، د افغانانو ملي دود ښودل شوی. له هغه سره دافغانانو مینه ښودل شوې، او د شاګرد په ژبه ویل شوي چې زما اتڼ خوښیږي. او د درس په سرکې داسې یو عکس لګول شوي چې د څو ډمانو غټ غټ ډولونه په غاړه دي، او یوه ډله ځوانان ګډېږي. درس یوه ناروا عمل ته د ماشومانو د تشویقولو مفهوم افاده کوي، او داسې انګیرنه ورکوي لکه چې ټول افغانان

ګډیدونکي او اتڼچیان وي. پداسې حال کې چې د افغانانو شهرت دیو قوم په حیث په میړانه، شجاعت، جهاد، او دفاع کې د ی. نه په ګډا او اتڼ کې.

(و)

وروړ

زما کشر وروړ مدرسې ته ځي.
زه دخپل مشر وروړ عزت کوم.
حامد له خپلو وروڼو سره ډیره مینه لري.
ټول مسلمانان سره وروڼه دي.

(و)

واوره

په ژمې کې واروه اوري.
واوره ډیره یخه ده.
کوچنیان په واوره کې لوبې کوي.

**تبصره:** مدرسې ته تلل، دمشر وروړ عزت کول، د ټولو مسلمانانو وروري، ټول اسلامي مفاهیم دي چې غورځول شوي دي. او پر ځای یې واوره او په هغې کې د لوبو کولو بي پیغامه جملي راوړل شوي دي.

(هـ)

هوا

په پسرلي کې هوا ښه وي.
د دوبي په ډیره توده هوا کې ګرځیدل ښه نه دي.
سهار تازه هوابدن ته ګټه رسوي.
زمونږ هیواد ډیره ښه هوا لري.

( هـ)

اره

اره تیره غاښونه لري.
په اره لرګې اره کیږي.
نجار په اره کار کوي.

**تبصره:** په توده هوا کې د نه ګرځیدلو، بدن ته د تازه هوا د ګټې، او دهیواد دښې هوا د ستایلو مفاهیم په صحي، اخلاقي او دوطن پالنې په لحاظ دماشومانو لپاره د ارې تر غاښونو، او د لرګې تر اره کیدولو غوره دي، خو ټول غورځول شوي دي.

(همزه (ء)

قرائت

زه هر سهار د قرآن کريم قرائت اورم.
مونږ د قرآن کريم د قرائت په وخت کې
خبرې نه کوو.
د قرآن کريم قرائت اوريدل ثواب لري.
مونږ اوس د پښتو او فارسي کتاب
قرائت کولی شو.

د ( همزی) (ء)
حرف ندی معرفي شوی.

**تبصره**: دمجاهدينو دنصاب دهمزې دحرف ټول درس چې يو اسلامي درس دی غورځول شوی دی.

(ی)

يو

ټول مسلمان په يو الله ﷻ ايمان لري.
او د يو پيغمبر ﷺ امتيان دي.
ټول مسلمانان ديو اسلامي قانون
پيروان دي.
الله مو يو، قرآن مو يو، پيغمبر مو
يو، دين مو يو، او قبله مو يوه ده.
هيڅوک نشي کولي چې مسلمانان
سره بيل کړي.

(ی)

منی

زړگی ختکی خوري
ختکي په منې کې پخيږي.
منی د ميوو موسم دی.

**تبصره**: دمجاهدينو د نصاب د (ی) درس چې پر الله ﷻ او رسولﷺ د مسلمانانو د ايمان، د اسلامي قانون دمنلو، او د ټولو مسلمانانو دوحدت تلقين ورکوي غورځول شوی د ی، او پرځای يې دختکي د خوړلو خبره ياده شوې ده.

اسلام

اسلام تر ټولو د ینونو غوره دین دی.
مونږ د اسلام د مبارک دین پیروان یو.
حضرت محمدﷺ د اسلام پیغمبر او د مسلمانانو ستر لارښود دی.
امام ابوحنیفه د اسلام یو لوی عالم او مجاهد ؤ.
مونږ دامام ابوحنیفه په مذهب یو.

هیڅ نشته

**تبصره:** پورتنی درس چې ټول یو مهم اسلامي درس دی، د کرزي د وخت له نصابه غورځول شوی دی.

مسواک

مسواک وهل سنت دي.
مسواک وهل روغتیا ته ګټه رسوي.
مسواک وهل غاښونه پاکوي او انسان د ناروغۍ څخه ساتي.
څوک چې مسواک نه وهي خوله یې بوی کوي او خلک ترې کرکه کوي او په ډول ډول ناروغیو اخته کیږي.

هیڅ نشته

**تبصره:** پورتنی درس هم چې یو دیني درس دی ټول د کرزي دوخت له نصابه غورځول شوی دی.

سلام اچول

سلام اچول سنت دي. هر مسلمان باید بل مسلمان ته سلام واچوي.
څوک چې سلام واچوي باید دهغه ځواب ورکړ شي. ځکه چې سلام

هیڅ نشته

| | |
|---|---|
| اچول زمونږ ترمنځ مینه او محبت پیداکوي.<br>زلمي پرون خپل پلارته ته وویل:<br>السلام علیکم، پلار یې وویل:<br>وعلیکم السلام، شاباش زویه! مونږ باید مشرانو او کشرانو ته سلام ووایو.<br>استاد چې نن ټولګي ته راغی ټولو ته یې سلام واچاوه او بیا یې په درس پیل وکړ. | |

**تبصره**: پورتنی درس هم چې ټول اسلامی مفاهیم لري غورځول شوی دی.

| | |
|---|---|
| اتحاد<br>اتحاد ډیر ښه کار دی. الله تعالی مسلمانانو ته د اتحاد امر کړیدی او له بې اتفاقۍ څخه یې منع کړیده. ځکه چې په اتفاق سره د مسلمانانو تر منځ مینه پیداکیږي. دافغانستان مجاهدین په اتفاق سره جهاد کوي. پاک الله دې د دنیا ټول مسلمانان په اتفاق ولري (آمین). | هیڅ نشته |

**تبصره**: پورتنی درس دخپل دیني اهمیت له امله ټول د کرزی دوخت له نصابه غورځول شوی دی.

| | |
|---|---|
| زمونږ هیواد<br>افغانستان زمونږ ګران هیواد دی. کابل زمونږ دهیواد | زمونږ هیواد<br>زمونږ هیواد ډیر ښکلی دی. ډیر ځنګلونه او لوی لوی غرونه |

پایتخت دی.
زمونږ هیواد لوی لوی ښارونه او ښکلې هوا لري. روسانو زمونږ پر اسلامي هیواد تیری کړی دی. د افغانستان مسلمان مجاهدین له تیري کوونکو سره جهاد کوي. ددین او هیواد ساتنه پر مونږ فرض ده.

لري. په ښکلو د روکې یې سیندونه بهیږي. او خاوره یې دغلو دانو لپاره زیاته ګټوره ده. دا هیواد په زړه پورې کانونه هم لري. زمونږ هیواد د یوګړ او شریک کور په شان دی. نو راځئ چې خپل هیواد ودان او آباد کړو. آبادی وي زمونږ ګران افغانستان!

**تبصره**: د کرزي د وخت په نصاب کې له پورتني درس څخه د اسلامي، مسلمان، مجاهدین، تیري کوونکو، جهاد، دین او هیواد ساتنه، او فرض، کلمات او مفاهیم چې زده کوونکو ته اسلامي روحیه ورکوي ټول غورځول شوي دي، د آبادۍ خبره یې کړې، خو د آزادۍ خبره یې غورځولې ده.

مرسته
د بې وزلو مرسته کول د هر مسلمان دیني وظیفه ده.
هر څوک چې بې وزلي ویني باید له هغه سره مرسته وکړي.
مرسته کول له یوبل سره په مسلمانانو کې مینه او محبت پیداکوي. که مونږ له یوبې وزلي، غریب او بې چاره سره مرسته او کومک وکړو نو الله ﷻ او پیغمبرﷺ راڅخه رضا کیږي. او که مونږ د بې وزلو او غریبو سره مرسته ونه کړو نوالله ﷻ او پیغمبر ﷺ به

همکاي
ټول ماشومان یو د بل همکارۍ ته اړتیا لري.
دوئ په هر کار کې باید یوبل ته لاس ورکړي. ځکه په ګډو هلوځلو کې هر کار په ښه شان سرته رسیږي.
ماشومان په ګډ کار کې یو د بل څخه زده کړه کوي.

راځخه ناراضه شي.
همدارنګه مونږ باید دکور په
کارونوکې دخپل پلار، مور، وروڼو او
خپلوانو سره هم مرسته وکړو.

**تبصـره:** پـه پـورتني درس کـې د محتـوي د تبـدیلۍ سـربیره، لانـدې اسلامي ټکي لکه: مسلمان، دیني وظیفه، په مسلمانانوکې مینه او محبت، الله ﷻ، پیغمبرﷺ، د الله ﷻ او دهغـه د پیغمبـر ﷺ رضـا هـم غورځول شوي دي.
پر پورتنیو تبدیلیو او غورځوونو سربیره څو نور مضامین هم په بشپړ ډول د اول صـنف لـه کتابـه غورځـول شـوي او پرځـای نـور داسـې مضامین راوړل شوي چې په ظاهره بې ضرره ښکاري، خو په حقیقت کـې هغـه د معاصـرې غربـي فلسـفې د مفرداتـو لپـاره مقدمـه او ذهـن جوړونـه ګڼـل کیـږي، چـې پـه لانـدې ډول د کتـاب ښـۍ خواتـه غورځـول شوي مضامین اوچپ خواته ئې نوي راوړل شوي مضامین لیکو.

## غورځول شوي مضامین

د ناروغ پوښتنه
د ناروغ پوښتنه پر هر مسلمان
لازمه ده.
څوک چې د ناروغ پوښتنه
وکړي الله ﷻ هغه ته ډیر ثواب
ورکوي.
پرون زما پلار د بریالي د کاکا
پوښتنې ته تللي وو او د ډاکتر
څخه یې ورته دوا راوړې وه.

## نوي راوړل شوي مضامین

انسانیت
ټول انسانان یو شان پیداشوي
دي. هر انسان عزت لري، تور
په سپین او سپین په تور،
لوړوالی نه لري، خو هغه انسان
تر نورو ښه دي چې نیکخویه
وي، ښه کارونه وکړي او نورو
ته ګټه ورسوي.

د بریالی کاکا ډیر ښه سړی دی
پنځه وخته لمونځ کوي.
که په جومات کې مسافر وي
هغه ته ډوډي راوړي.
له خلکو سره ښه ګوزاره کوي. له
لارو څخه اغزي، تیږې، او نور
شیان لرې کوي، او که څوک
ناروغ شي پوښتنې ته یې ورځي.

**تبصـــره:** دا درس پـه ظـاهره بـې ضرره ښکاري، خو پـه حقیقت کې د مـؤمن او کـافر تـرمنځ د تـوپیر د نشـتوالي پربنسـټ ولاړ دی. او زده کوونکـو تـه دا تصـور ورکـوي چـې مؤمن او کافر یو ډول ارزښت لـري چـې همدغــه د غــرب دهیــومنیزم (انســانیت) د فلسـفې د مغـز ټکـی دی.

مدرسه

مدرسه دعلم، پوهې، او ادب
د زده کولو ځای دی.
مونږ هره ورځ په ټاکلي وخت
مدرسې ته ځو، کله چې زنګ
ووهل شي خپلو ټولګیو ته ځو
او آرام کښینو.
کله چې استاذ ټولګي ته راشي
مونږ ټول ورته ولاړیږو، او
دهغه احترام کوو.
دخپل استاذ په لارښوونه په
درس پیل کوو.
مونږ په مدرسه کې لمونځ،
قرآن کریم، دینیات، ادب، او
دجهاد کولو لیارې زده کوو.

زغم

کله کله ماشومان په خپلو منځو
کې لانجې کوي، ماشومانو ته په
کار دي چې دشخړو په وخت کې
د زغم او خبرو کولو څخه کار
واخلي. او د ځان څخه دا پوښتنه
وکړي چې آیا دا لانجه په شخړه
ارزي او که نه؟ ځکه چې شخړه
کول ښې اړیکې تاواني کوي، او
ملګري توب ته زیان رسوي.

---

**تبصـــره:** دا مضــمون هــم د تیــر مضـمون پـه څیـر دغـرب د فلسـفې د زغـم (Tolerance) تلقـین ورکـوي، پـدې معنــی چــې مســلمانان دې د غرب د مظالمو په مقابل کې له زغـم څخه کار واخلي، او دبالمثل ځواب پر ځای دې یوازې ډیالوګ ته مخه

وکړي.

میلمه پالنه

مسلمانان په میلمه پالنه کې تکړه دي. مونږ میلمه پالنه له حضرت محمد ﷺ او دهغه له اصحابو څخه زده کړې ده.
مونږ د میلمه په راتګ خوشحالیږو.
د میلمه عزت کول ډیر ثواب لري.
هر مسلمان باید د میلمه عزت وکړي. الله ﷻ دمیلمه په عزت امر کړی دی.

روغ سړی

روغ سړي چې هر سهار له خوبه پاڅیږي سپورت کوي، هغه په وړو خبرو ځان نه خپه کوي او کوښښ کوي چې په ژوند کې خوشحاله وي، روغ سړي نه یوازې خپل ځان بلکې خپل چاپیریال هم پاک او ستره ساتي، روغ سړی تل سابه، میوې، او نور خوراکې شیان په اوبو پاک مینځي او بیا یې خوري. پاکوالی روغتیا ته ډیره ګټه لري.

تبصره: دا درس چې ربنتیا هم ښه مفاهیم لري، خو د درس د پیل په جمله کې په ډیر مهارت شاګردانو ته دا تصور ورکړل شوی چې له خوبه له پاڅیدلو وروسته چې کوم کار د کولو دی هغه سپورت کول دي، نه اودس او لمونځ کول، پداسي حال حې چې په یوه مسلمانه ټولنه کې باید شاګردانو ته دا تصور ورکړل شي چې لـه خوبه په راویښیدلو کې لومړی سړی دعا وایې، اودس کوي، لمونځ کوي او بیا سپورټ کوي.

دمجاهد زوی

زلمي دمجاهد زوی دی، زلمي له خپلي مور څخه پوښتنه وکړه چې: مورې زما پلار چیرته تللی دی؟ مور یې وویل:
زویه پلار دې جهاد ته تللی دی.

لویه جرګه

لویه جرګه زمونږ یو پخوانی دود دی. د لویې جرګي غړ د خلکو غږ دی. په لویه جرګه کې دخلکو ستونزې اواریږي.
د لوي جرګي پریکړو ته هر

زوی پوښتنه وکړه چې د چا په مقابل کې جهاد کوي؟ موریې

وویل: پلار دې د روسانو او دهغوئ د مزدورانو په مقابل کې جهاد کوي. زلمي پوښتنه وکړه: د روسانو مزدوران څوک دي؟

موریې وویل: د روسانو مزدوان خلقیان او پرچمیان دي.

زوی وویل: مورې! زه هم دهغه پلار زوی یم چې دخپل دین او وطن د آزادولو لپاره یې خپل سر په لاس کې نیولی، مورې! دا زمونږ اسلامي وظیفه ده چې د خپل پلار په قدم لاړ شو او خپل سر د الله ﷻ د دین په لار کې قربان، او خپل وطن دروسانو او دهغوئ دمزدوانو له وجود څخه پاک او اسلامي شریعت جاري کړو.

څوک درناوی کوي او هغه مني.

---

تبصـــره: د امریکایـــانو پـــه لاس اوسني جوړشوي نظام او اساسي قانون تش په نامه د لویې جرګې لخـوا رامنځتـه شـوي او تائـید شـــوي دی. دا چـــې مجاهـــدین ددغې لویي جرګې د نـا اسلامي پریکړو په خلاف را پورته شوي دي، او یـو لـوی جهـاد ئـې روان کړی دی، ځکه نـو دغـه ګـوډاګی نظـام د تعلیمـي نصـاب لـه لارې دهیـــواد ماشـــومانو تـــه د لـــویې جرګـــې د پریکـــړو د درنـــاوي او منلـو ذهنیـت او تلقـین ورکـوي. دخلکـــو ســـتونزي پـــه اســـلامي شـــریعت اواریـــږي، نـــه پـــه لویـــو جرګو.

### اسلامی ترانه

دین زمونږ اسلام دی ددې لارې پتنګان یو
مونـږ مسلمـانان یو، مـونږ مسلمانان یـو
رب مو یو الله دې چې قادر په هر یو کار دی
بې مـثلـه واکدار دی بـې مثله واکدار دی
شـکر امـتیـان دمـحمـد آخـــر زمان یـو
مـونـږ مسلمانـان یو، مونږ مسلمـانـان یو
لـوي کـتاب قـرآن زمونږ د لارې بـل مشـال دی

### کوتره

کـاشـکې! زه کوتره وای
غـاړه مـې کـمـــره وای
نـاســتــه پـه ډبـره وای
ډیـره تـیـز نـظـره وای
پښې مې دسرو زرو وای
ژونـد مـې بی خطره وای

مـل مـو ذوالـجلال دی، مـل مو ذوالجلال دی
مونږ ددې مشال په لور دحق په لار روان یو
مـونـږ مسـلمانـان یـو، مـونـږ مسلمانان یو

**تبصره**: د اسلامي ترانې پر ځای داسې یو شعر راوړل شوی چې هيڅ ديني، اخلاقي، اجتماعي، او ادبي پيغام نه لري.

| شعار | بدکارونه |
|---|---|
| ۱- د الله ﷻ رضا زمونږ هدف دی<br>۲- محمد ﷺ زمونږ رهبر دی.<br>۳- قرآن کريم زمونږ قانون دی.<br>۴ – في سبيل الله جهاد زمونږ لاره ده.<br>۵- د الله په لاره کې نصرت او شهادت زمونږ هیله ده.<br>۶ – شرعي حجاب زمونږ پت دی.<br>۷- استقلال زمونږ عزت دی.<br>۸ – د اسلامي نړۍ وحدت زمونږ آرزو ده. | سګرټ، نسوار، چرس، او د نورو نشه يي موادو کارول روغتيا ته زيان رسوي.<br>کله کله داسې بدعملونه د انسان د مرګ سبب هم کيږي. بد عملونه اقتصاد ته هم زيان رسوي. له بدو کارونو ځخه ډډه کول دخدای ﷻ امر هم دی. |

---

**تبصـره**: پـه پـورتنی درس کـې د نورو نشـه يـي مـوادو استعمال بد کار ګڼل شوی چې ربښتيا هم بد کـار دی، خـو (شـراب) چـې (ام الخبائث) دي، او غربيانو ټول افغانستان وربانـدې رنـګ کـړی دی، او پـه لکونـو خلـک يـې وربانـدې اخته کـړي دي، نـوم ئې ندی ياد شوی چې په حقيقت کې شـاګردانو تـه پـه پټـه خولـه ددې تصور د ورکولو په معنی ده چې شـراب بـد عمـل او ضـرري شـی

ندی.
دا تبدیلۍ یوا زې هغه دي چې د اول صنف په کتاب کې راوړل شوي دي. او هغه چې په لوړو کتابونو کې راوړل شوي دي تر دغو ډیرې خطرناکې او ورانوونکې دي.

# د افغانستان لپاره د هندوستان تعلیمي او کلتوري فعالیتونه

یوه بل خطرناک پلان چې دامریکا او هندوستان لخوا په مشترک ډول پرمخ بیول کیږي هغه هم د تعلیم او د کلتور په ډګر کې دتطبیق په حال کې دی، او هغه دا چې:
امریکا فکر کوي چې هندوستان ئې په سیمه کې د پاکستان په پرتله ښه استراتیژیک ملګری کیدای شي، او له همدې امله پاکستان ته دیو مؤقت او شکمن اجیر په سترګه، خو هندوستان ته دیو باثباته استراتیژیک ملګري په سترګه ګوري. په همدې بنا امریکا غواړي په افغانستان کې د پاکستان په نسبت دهندوستان اثر او رسوخ زیات کړي. ځکه چې امریکا د طالبانو پدیده د پاکستان د ددیني مدارسو زیږنده بولي. نو باید په مقابل کې ئې په افغانستان کې د هندوستان لخوا ښه ډیر خلک وروزل شي، او بیا په دولتي پوستونو، او خصوصي سکتور کې ځای پرځای کړای شي، تر څو په داخل کې د طالب د پدیدې مقابله وشي. له همدې امله هندوستان افغاني محصلینو ته دخپلو تعلیمي ادارو او پوهنتونونو غیره خلاصه کړې، او هر کال تقریبا زر تنه افغاني محصلین په هندوستان کې دعالي تحصیلاتولپاره منل کیږي، چې تر اوسه پورې هلته د افغاني محصلینو شمیره د رسمي احصائیو پر بنسټ پنځو زرو تنو ته رسیدلې ده. او دغه شمیره په همدغه تناسب هر کال نوره هم لوړیږي، چې دوخت په تیریدلو به دغه شمیره لسګونو زرو ته رسیږي، او د دولت یوه زیاته برخه ادارې به بیا دهمدغو خلکو لخوا اداره کیږي.

ددې تــر څنــګ امریکــا پــه افغانســتان کــې د هنــدي ژبــې او کلتــور دخوریدو لپاره هم ښه اساسي او پراخه زمینه برابره کړې ده. او هغه په افغانستان کې دامریکا د ملګرو لخوا د لسګونو تلویزوني چینلونو پرانستل، او په هغو کې په زیاته پیمانه د هندي کلتور او ژبې د مـوادو خپرول دي.

همـدا اوس تقریبـا د افغانســتان نیمـائي خلکـو خصوصـا ځوانـانو او پیغلو د تلویزوني پروګرامونو او هنـدي فلمونـو لـه لارې هنـدي ژبـه زده کړې ده.

په تعلیم، سیاست، او دولتي ادارو کې په هند کې روزل شوي خلک، او په ولسي سطحه دهندي فرهنګ خپریدا افغانستان کې د هند دهر ډول فعالیت لپاره پراخه زمینه برابروي. او اټکل کیږي چې امریکایان بـه دخپلې ماتې په صورت کې خپل خلافت هندوستان تـه ورسپاري. ځکـه چې هندوسـتان پـه سیاسـي لحـاظ پـه افغانسـتان کـې دلچسـپي، او پـه فرهنګي، او اقتصادي لحاظ ددې کار وړتیا لـري. او هـم پـه سیمه کـې له چین او پاکستان سره د اختلاف له امله له امریکا سـره اسـتراتیژیکه دوستي لري.

دا ټـول ددې عامـل ګرځـي چې هندوسـتان پـه افغانسـتان کـې تعلیمـي فعالیتونه ولري، او د افغانسـتان د تعیلم په سیکولریزه (بې دینه) کولو کې له امریکا سره لاس یـو کـړي، تـر څـو پـه سـیمې کـې دهغـه اسـلام پـه رواجېدلو کې مرسته وکړي چې RAND Corporation ئې د Civil democratic Islam په حیث خوبونهویني.

# مهم وړاندیزونه او توصیې

اوس نو خبره راجع کیږي په سیمه او افغانسـتان کـې جهـادي قیـادتونو ته چې څنګه د جګړې او مقاومت ترڅنـګ پـه علمـي، فرهنګـي، فکـري او سیاسي ډګرونو کې هم د دښمن د توطیـو مقابلـه وکـړي، او پـه دغـو ټولو ډګرونو کې د اسلامي بدیلونو د لرلو عملي هڅې شروع کړي. چې

دا کار هم په هماغه اندازه کوششونو، مصاریفو، او د پلانونو دجوړولو لپاره د مسلحې مبارزې په صف او منسوبینو کې دشخصیتونو روزلو ته ضرورت لري.
له غرب او دهغه له ملګرو سره په دې سیمه کې کشمکش اوږد تاریخ لري، او په راتلونکي کې به هم په مختلفو شکلونو تر ډیره وختـه دغه جګړه روانه وي.
نو ددې لپاره چې جهادي صف په ځان کې د مبارزې د دوام وړتیا پیداکړي، باید لاندې کارونو ته جدي توجه وکړي.

## لومړۍ توصیه- د مجاهدینو سیاسي او فکري روزنه

د مجاهدینو د سیاسي او فکري روزنې، او د غرب لـه د سایسو او توطیو څخه دهغوئ دخبرولو په منظور دې یو کتاب ولیکل شي چې په هغه کې دیادوشوو موادو ترڅنګ پکښې دجهاد کړنلارې، اهداف، دخپل ملت دخصوصیاتو پیژندل، د سیمې دهیوادونو او ګاونډیو هیوادو هغه ارادې او فعالیتونه چې د افغانستان په اړه ئې لري هم توضیح شوې وي. دغه کتاب باید په پوره دقت سره اړوند موضوعات مجاهدینو ته په ساده ژبه تقدیم کړي. کتاب باید په جیبي کچه (سایز) چاپ شي، او لوستل ئې دیوه فکري نصاب په حیث د قیادت لخوا پر مجاهدینو لازمي وګرځول شي. تر څو مجاهدین د پوره سیاسي بصیرت په رڼا کې خپله جهادي مبارزه په وړاندې بوځي. او ددښمن د تبلیغاتو ښکار نه شي.

## دوهمه توصیه- دفکري جګړې په اړه پوهاوی

د افغانستان په مشهورو ژبو کې دې د غرب د فکري او رواني (روحي) جګړې په اړه چې د پوځې جګړې ترڅنګ په بیلا بیلو شکلونو

روانـه ده کتـاب یـا کتابونـه ولیکـل شـي، او د قیـادت لـه لـوري دې مجاهدین دهغـو پـه لوستلو مکلف شي او هم لـه غـرب سره د فکـري جګړې په هکله درسونه، ویناوې، بیانیې، او حقایق پـه M.P.3 کـې پـه صـوتی شـکل ترتیـب کـړل شي او د مجاهـدینو پـه مـنځ کـې دي خپـاره شي، تر څو هغوئ په ښه ډول د دښمن لـه پلانونـو خبر شي او د مقـابلي لپاره يې په ځان کې وړتیا پیدا کړي.

## دریمه توصیه- دمدارسو په نصاب کې دلاندې مضامینو داخلول

د دینـي مدارسـو پـه نصـاب کـې دې لانـدې مضـامین پـه هـره درجـه (صنف) کې اضافه کړای شي:

### (الف) سیرة النبي:

سـیرة النبـي هغـه مبـارک علـم دی چـې داسـلام د پیغمبـرﷺ دشخصـي، اجتمـاعي، سیاسـي، پـوځي، تربیـوي، تشـریعي، اخلاقـي، او تعبـدي ژوند عملي او تطبیقي نقشه وړاندي کوي. او هغـه مـنهج روښـانه کـوي چـې پیغمبـر ﷺ څنګـه د جزیـرة العـرب لـه نالوسـتو، نـامنظمو، غیـر سیاسي، نادارو، او شاړو شډلو اوسیدونکو څخه د ټولې نړۍ لپـاره د انسانیت، قیادت، علم او تمدن استاذان جوړ کړل.

له بده مرغه دغه مبارک علم ته زمونږ په دیني نصاب کې مناسب ځای ندی ورکړ شوی. او که ورکړ شوی هم دی نـو د عمـر پـه داسـې مرحلـه کې لوستل کیږي چې طالب لادعقل او ادراک د پوخوالي مرحلي تـه نـه وي رسیدلی چې له دغـه علـم څخـه دځـان لپـاره دژونـد یـوه نقشـه جـوړه کړي. دغه علم باید د زده کړې په لوړو درجو کـې تـدریس شـي. دمثـال په ډول د احادیثو په دوره او یا تر هغې یو کال دمخه تدریس شي.

## (ب) په اسلام کې د سیاسي نظام تصور:

له ډیري مودې راهیسې لکه څنګه چې په عملي ډول سیاسي نظام له واقعي مسلمانانو څخه اخستل شوی، او د سیکولر عناصرو په لاس کې ورکړ شوي، همدا ډول ئې تصور او مضمون هم له دیني او دنیاوي دواړو نصابونو څخه ویستل شوی دی. له همدې امله د ډیرو ملایانو او علماؤ په ذهن کې هم دا خبره نه ده پرته چې دنیاوي او سیاسي قیادت هم د معنوي او روحاني قیادت ترڅنګ د علماؤ او دیندارو خلکو حق دی. دغه حق په قران کې د (صالحینو) ښودل شوی دی. رسول الله ﷺ او راشدین خلفاء هم دمسجد امامان ول، او هم د دولت مشران، او د پوځ سرلښکران. هغوئ عملاً امت ته دا وربښودلې وه چې دیني او سیاسي قیادت دواړه د صالحینو حق دی.

وروسته بیا دنامطلوبو شرایطو او حالاتو له امله د دیني اوسیاسي قیادت تر منځ بیلتون راغی، او په دغه ډګر کې د اسلام له منهج څخه انحراف رامنځته شو. دغه انحراف به هغه وخت کې له منځه ځې چې (صالحینو) ته بیا وروپوهولی شي چې سیاسي قیادت د دوئ حق دی. او د دې حق د ترلاسه کولو لپاره باید مبارزه وکړي، تر څو ئې د مفسدو (سیکولر) عناصرو له لاسه بیرته راوباسي.

## (ج) دکفر دمعاصرو انواعو او اشکالو پیژندل:

د معاصر کفر د اشکالو او انواعونه پیژندل په بې علمه مسلمانانو کې ددې علت ګرځي چې خلک د معاصر کفر په لومو کې پر یوځي. دغي موضوع ته قرآن کریم هم پوره توجه کړې ده. که د قرآن طریقې او منهج ته وکتل شي نو وبه وینو چې که قرآن کریم له یوی خوا مسلمانانو ته ایمان او دهغه تقاضاوې معرفي کوي له بل لوري ورته کفر، د کفر انواع او اشکال، او له هغه څخه د ځان ساتلو طریقې، او د کفر مفاسد هم معرفي کوي.

قرآن دخپل نزول په زمانه کې دهغې زمانې د کفر ټول انوع او اشکال معرفي کړي دي. د یهود و کفر، دنصاراؤ کفر، د صابئینو کفر، د

مشرکانو کفر، د حاکمیت کفر، د عبادت کفر، د استعانت کفر، دنذر کفر، د محبت کفر، دمولات کفر، دنفاق کفر، او نور بیلا بیل ډولو نه ئې ښه په تفصیل سره د مثالونو په بیانولو ذکر کړي دي.
قرآن کریم نه یوازې دا چې د رسول الله ﷺ دزمانې دکفر انواع معرفي کړي دي، بلکه د پخوانیو امتونو لکه د نوح علیه السلام د امت کفر، د ابراهیم علیه السلام دامت کفر، دهود، صالح، شعیب، لوط، موسی او نورو پیغمبرانو علیهم السلام د قومونو کفرونه او د هغوئ کفري دلایل یې هم ښه په تفصیل سره ددي لپاره معرفي کړي چې مسلمانان ترې ځان وساتي، او د هغوئ په سرنوشت اخته نه شي.
په همدې ډول د اسلام علماؤ په خپلو خپلو وختونو کې د کفر او ګمراهۍ بیلا بیل ډولونه او دهغوئ کفري او ګمراهانه فلسفې امت ته واضح کړې دي، او ردونه ئې وربانديې لیکلي دي، چې پدې لړ کې مرتدان، زندیقان، چنګیزیان، خوارج، مرجئه، جهمیه، قدریه، روافض، وجودیه، حلولیه، بابیان، بهائیان، ذکریان، قادیانیان، او نور راځي.
دکفر او ګمراهۍ زاړه اشکال ښه په تفصیل سره امت ته واضح شوي دي، خو مشکل اوس په دې کې دی چې د معاصر کفر ډولونه او فلسفې چې په نویو نومو نو او قالبونو کې راڅرګندې شوې دي، او امت ئې د ابوالحسن علي ندوي (رح) په وینا د یو اجتماعي ارتداد له ګواښ سره مخ کړی دی، په پوره او واضح شکل د علماؤ لخوا په تعلیمي نصاب کې ندي معرفي شوي.
د معاصر کفر ډولونه لکه کمونیزم، کپیټالیزم، لیبرالیزم، ډیموکراسي، ماډرنیزم، نشنلیزم، وضعي قوانین، او ګلوبلایزیشن، تر پخوانیو کفرونو ډیر خطرناک دي. ځکه چې پخواینو کفرونو ساده اشکال درلودل، او یوازي به په تعبدي او تصوري ساحه کې محدود ول. خو د اوسني کفر انواع د انساني ژوند ټول اړخونه نیولي دي. سیاست، نظام، عقاید، اخلاق، اقتصاد، تمدن او هر څه په خپله غیږه

کې نیسي. او تر دې هم خطرناکه خبره دا ده چې دغه ډول کفرونه خلک خپـل ځـان تـه د کفـر پـه صـفت نـه رابـولي. بلکـه د ترقـۍ، تمـدن، نړیوالتوب، عدالت، مساوات، او انسانیت په نامه ئې رابولي چې عـام خلک ددغو شعارونو او اصطلاحاتو په حقیقي مدلول او معنی بانـدې نه پـوهیږي. او همدغـه وجه ده چې په ملیونونو مسـلمانان کلـه ځان د کمـونیزم غیـرې، او کلـه هـم د مـاډرنیزم، لیبرالیـزم، دیموکراسـۍ، او هیومنیزم، غیرې ته ورغورځوي، او بیا هم ځانونه مسلمان بولي.
پـدې هکلـه جهـادي او اسـلامي حرکتونـو تـه پـه کـار ده چـې د قـرآن پـه طریقه د دغې زمانې د کفر ټول اشکال او انواع نوي مسلمان نسل تـه د تعلیمي نصاب، مطبوعاتو، او له نورو بیلا بیلو لارو معرفي کړي. او هم ئې د ردلو لپاره پراخې لیکنې وشي. تر څو د مسلمانانو اوسني او راتلـونکي نسـلونه د معاصر کفر لـه خطر څخـه وسـاتل شـي. او کـه داسې ونشي نو ډیر خلک به په مسلمانۍ کې کافر وي، خو دوي به لا په ځان هم خبر نه وي چې کافر شوي دي.

# څلورمه توصیه- د غرب د جنایاتو بربنډول

د اسلامي حرکتونو او مجاهدینو له لوري دې په خپلـو نصابونو کې د غرب له سیاسي، استعماري، پوځي، اقتصادي، اخلاقي، جنـایتونو او ظلمونـو پـرده پورتـه کـړای شـي، تـر څـو دغربیـانو هغـه جنایـات چـې د اسلامي هیوادونو د استعمارولو او په مسلمانانو د خپلې مستقیمې او غیـر مسـتقیمې واکمنـۍ پـه وخت کې ئې کړي دي. هغـه ټول جنایـات بایـد بربنـډ کـړای شـي چـې انګریزانـو پـه آسـیا، او فرانسـویانو، ایټالیایانو، او هسپانویانو، په خپل خپل وخت کې په اسلامي افریقـا، روسانو په منځنۍ اسیا، او امریکا یانو په ټوله دنیا کې پـه مسـلمانانو ترسره کړي دي.
همدا ډول باید هغه پلانونـه هم بربنډ شي چې څرنګـه امریکا غـواړي دخلـیج، منځنـۍ آسـیا، او نـورو اسـلامي هیوادونـو زیرمـې او طبیعـي

مــوارد تــر خپــل کنټــرول لاندې راولــي، کــه څــه هــم پــدې لاره کــې د میلیونونـو انسـانانو دوینـو بهولـو تـه ضرورت هم پیښ شي. د غـرب دجنایاتو پـه سلسـله کې بايد دا هم تشريح شي چې څنګه امريکا او اروپا د یهودو له شرڅخه ځان خلاص کړ، او پـه فلسطين کې ئې د یو یهودي دولت په جوړولو هغوئ د مسلمانانو په اوږو سپاره کړل.
دغـرب دجنايـاتو پـه سلسـله کې بايـد د ملګـرو ملتونـو د اداري، او د امنیـت د شـورى هغـه ټـول جنایـات راوسـپړل شي چې پـه تیـرو شـپیتو کلونو کې ئې د فلسطین، کشمیر، قبـرص، او نـورو اسـلامي هیوادونـو په هکله د منفي مواقفو په لړلو سره تر سره کړي دي.
ددغو ټولو جناياتو په څيړلو او راسپړلو سره مسلمانانو ته د غـرب د عـدالت، مسـاوات، ډیموکراسـۍ، او تمـدن حقیقـي څيـره وربښـکاره کيږي، او مسـلمانان پـدې پوهيږي چې غربيـان د دوئ دوسـتان دي او کــه دښــمنان؟ اوهــم دا چــې د امريکــا لــه لــوري ډيــزاين شــوی Civil democratic Islam (متمدن ډيموكراتيک اسلام) حقيقي اسلام دی او که د کفر يو بل ماډل دي چې د اسلام په نامه ئې معرفي کوي؟
پدې لړ کې بايد د زرګونو هغو غربي غير دولتي موسساتو جنايات هم بربنډ کړای شي چې د جاسوسۍ، مالي اختلاسونو، اخلاقي فجايعو د خورولو، او په مسلمانه نړۍ کې د لويدلي غربي فرهنګ د نشرولو، او مسیحیت ته د دعوت په شکل کې يې تر سره کوي. دغـه مؤسسـې پـه مجمـوعي شـکل د غـرب يـو نـا پـوځي لښـکر دی چـې د وسـلې لـه استعمال پرته د اسلامي نړۍ د نيولو په نيت په اسلامي هیوادونوکې تر بيلا بيلو عنوانولاندې کار کوي.

# پنځمه توصيه- دجهاد تر څنګ دعوت ته هم پاملرنه

يوه مهمه وظيفه چې جهادي حرکت هغې ته ډيره توجه نده کړې هغـه د مسلح جهاد تر څنګ د ريښتني اسلام په لور دخلکو مخلصانه دعـوت

دی. مجاهدین باید په افغانستان کې په کلیو، ولسوالیو، او قومونو کې دکفر په خلاف د جنګ تر څنګ د عوتي کارونه لکه عمومي درسونه، ویناوې، اجتماعات او غونډې، تربیوي سیمینارونه، د پروجکټر په وسیله د کلیوالو عامو خلکو لپاره د جهادي او اسلامي فلمونو نمایش، د ځوانانو او د مکتبونو او مدرسو د هلکانو تر منځ علمي او د قرآن د ځینې سورتونو او یو خاص شمیر احادیثو د حفظ مسابقې، ادبي غونډې، او دکلیو د ځوانانو تر منځ مناسب سپورتي پروګرامونه، هم تر سره کړي. په هره اندازه چې دخلکو تر منځ اسلامي دعوت خپریږي په هماغه اندازه په خلکو کې دجهاد او مبارزې مینه پیداکیږي. او د دښمن دتبلیغاتو تاثیر له منځه ځي. ددغه ډول دعوتي پروګرامونو د اجراء لپاره باید په جهادي صف کې مجاهد ځوانان په خاصو تعلیمي، تربیوي، او دعوتي، استعدادونو وروزل شي. او په هره جبهه کې باید د فرهنګي او دعوتي چارو یوه یوه کمیټه جوړه شي چې د بیلا بیلو ذوقونو او استعدادونو ځوانان مجاهدین او محلي علماء ورکښې غړیتوب ولري او فعالیت وکړي.

په هغو سیمو کې چې د مجاهدینو تر تسلط لاندې دي باید د F.M د وړو وړو سیارو راډیوګانو فعالولو ته توجه وشي چې د دعوت پیغام په پراخه پیمانه کورنیو، او ښځو ته هم ورسیږي. کوښښ دې وشي چې اسلامي مطبوعات په کافي اندازه خلکو ته ورسول شي، او په هغو کې دې په هغو موضوعاتو په خاص ډول ترکیز وشي چې د اسلام او مسلمانانو په اړه دغرب خطرناک پلانونه څیري، او عواقب ئې مسلمانانو ته بیانوي. نو پدې ډول به مو د جهاد ترڅنګ د مسلمانو د ایمان او اخلاقو دخوندي ساتلو لپاره مؤثر دعوت هم په کار اچولی وي، او د دښمن پلان به مو شنډ کړی وي. او مسلمانانو ته به مو دا خبره واضح کړې وي چې د الله ﷻ له لوري رالیږل شوی اسلام یو دین دی، او د امریکا لخوا ډیزاین شوی Civil democratic Islam یو بل کفري دین دی چې غواړي دحقیقي اسلام پر ځای ئې په مسلمانانو کې

خپور کړي او دهغه په وسيله مسلمانان د غرب د استعماري سياستونو په خلاف له جهاد او مبارزې څخه منحرف کړي. ﴿ يُرِيدُونَ لِيُطۡفِـُٔواْ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفۡوَٰهِهِمۡ وَٱللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡكَٰفِرُونَ ٨ ﴾ الصف: ٨

**ترجمه:** (غواړي کافران چې مړه کړي رڼا د الله (شريعت) په خولو خپلو سره او الله پوره کوونکی د رڼا خپلې دی که څه هم دکافرانو خوښۀ نه وي).

# معاصر فکري ارتداد

د غرب له لوري د معاصر ارتداد د خپرولو حرکت په اسلامي نړۍ کې د اسلام او مسلمانانو پر خلاف د تاريخ تر ټولو خطرناک حرکت دی. دغه حرکت د تيرې يونيمې پيړۍ په اوږدو کې له بيلا بيلو لارو او په بيلا بيلو فکري, سياسي, او فرهنګي, وسائلو په ميليونونه مسلمان ځوانان له اسلام څخه پردي کړل، او د غربي الحادي نظرياتو په منلو ئې د ښکاره کفر تر بيرغ لاندې د اسلام پرخلاف ودرول، خو د تأسف وړ خبره دا ده چې نه دغه دغرب د افکارو او نظرياتو منونکي د مسلمانانو زامن دا مني چې دوئ عملاً په يو صريح ارتداد کې اخته دي چې کله د کمونيزم په شکل او کله هم د غربي ليبراليزم، ډيموکراسۍ، او د الله د دين د حاکميت د نه منلو په شکل کې دي. او نه هم دغه ارتداد ته د اسلام ديوې زياتي برخي ديني علماؤ پام وراوښتی دی، او علت ئې کيدي شي داوي چې له يوې خوا دغه ارتداد په داسې پوښلو او پيچلو اشکالو کې دی چې د کفر حقيقت ئې په آسانه نه ښکاري، او له بلې خوا زمونږ د ديني مدارسو او نصابونو په محتوی کې د فکري، عقيدوي، او د معاصرو کفري ايډيالوژيو او نظرياتو موضوعاتو هيڅ ځای ندی ورکړ شوی، نو طبيعي ده چې يوه زياته برخه د دغو ديني نصابونو فارغان د معاصر ارتداد د حرکت له تأثير او خطرونو څخه بې خبره او يا لږ تر لږه د هغو په اړه بې تفاوته پاتې شي.

خو د الله شکر دی چې په امت کې داسې ستري هستۍ، زړه سواندي علماء، او زمانې په فکري او سياسي نبض خبر او پوه عالمان هم شته چې دغو مسائلو ته ئې پوره توجه کړې، امت ئې د معاصر ارتداد له حقيقت او اشکالو څخه خبر کړی، او پدې هکله ئې ټولې اسلامي نړۍ ته د خطر زنګونه وهلي دي.

له دغو علماؤ څخه یو هم (علامه سید ابوالحسن علي الحسنی الندوي) د هندوستان د شلمې پیړۍ ستر عالم، سترګور شخصیت، د نړۍ په ټولو جریانونو او تحولاتو خبیر انسان ؤ.

# د علاّمه ندوي (رح) پیژندګلوي

علامه سید ابوالحسن علي الحسني الندوي په ۱۹۱۴ میلادي کال د هندوستان د اترپردیش د ولایت د (رائې بریلي) د سیمې د (تکیه کلان) دکلي د ستر عالم (علامه سید عبدالحی الحسني) په کور کې دنیا ته سترګې وغړولې. پلارئې د هندوستان د اتو پیړیو د علماؤ د تذکرو او سوانحو په هکله په اتو جلدونو کې د (الإعلام بمن في تاریخ الهند من الأعلام) په نوم یو لوی کتاب ولیکه، چې د نړي د کتابخانو له مهمو کتابو څخه ګڼل کیږي.
علامه ندوي رحمة الله علیه تر څوارلس کلنی پورې مروج علوم ولوستل، فارسي، عربي، او انګلیسي ژبې ئې زده کړې، او په پنځه لس کلنۍ کې ئې په ۱۹۲۹ میلادي د ندوة العلماء له دارالعلوم څخه د حدیثو دوره وکړه وروسته ئې له علامه (احمد علي لاهوري) رحمة الله علیه څخه په لاهور کې د تفسیر علم حاصل کړ، او هم ئې د دیوبند په دارالعلوم کې له علامه (حسین احمد مدني) رحمة الله علیه څخه د حدیثو او تفسیر زده کړه وکړه.
علامه له (۱۹۶۱م) څخه تر (۱۹۹۹م) د ده تر وفات پورې د ندوة العلماء د دارالعلوم رئیس ؤ، د اسلامي فکر او د اسلامي نړۍ د مهمو موضوعاتو په اړه ئې تر اتیا ؤ ډیر کتابونه او په سلګونو مقالې چاپ شوی دي.
علامه ندوي د عربي او اسلامي نړۍ ډیر مجلوته لیکنې کړې، او د نړۍ د لویو علمي مراکزو او ټولنو رئیس او یا غړۍ پاتې شوی چې ځینې ئې په لاندې ډول یاد وو:

۱. د ندوة العلماء د نړیوال دارالعلوم رئیس (هند)
۲. د اسلامي ادبیاتو د نړیوالې رابطې رئیس (ریاض)
۳. د اکسفورډ د اسلامي څیړنو د مرکز رئیس، (انګلستان)
۴. د ټول هند د مسلمانانو د شخصي احوالو د قانون د هیئت رئیس (هند)
۵. د اتراپردیش د ولایت د اسلامي تعلیماتو د هیئت رئیس (هند)
۶. د **رابطة العالم الإسلامي** د تاسیسي مجلس غړی (**مكة المكرمة**)
۷. د اسلامي د عوت د نړیوال مجلس د تاسیسي هیئت غړی (قاهره)
۸. د عربي ژبې او قوامیسو د ټولنې غړی (د مشق)
۹. د عربي ژبې او قوامیسو د ټولنې غړی (قاهره)
۱۰. د عربي ژبې او قوامیسو د ټولنې غړی (اردن)
۱۱. د اسلامي تمدن د څیړنو د شاهي ټولنې غړی (اردن)
۱۲. د نړۍ د اسلامي پوهنتونونو د نړیوالې رابطې غړی (مراکش)
۱۳. د مدینې منورې د نړیوال اسلامي پوهنتون د مشورتي بورډ غړی (مدینه منوره)
۱۴. د اسلام آباد د نړیوال اسلامي پوهنتون د مشورتي بورډ غړی (اسلام آباد)
۱۵. د دیوبند د دارالعلوم د مشورتي مجلس غړی (هند)

علامه ندوي تر بل هر چا پدې ښه پوهیده چې د غرب معاصره فکري او اخلاقي فلسفه په الحاد ولاړه ده، او هر څوک ئې چې له زړه او په قناعت او پوهې سره منې هغه پدغه کار سره مرتد کیږي، نو ځکه ئې خپله دغه تاریخي او علمي مقاله چې د دغه تریخ حقیقت وضاحت ئې ورکښې کړی په لسګونو کلونو مخکې د مصر د (المسلمون) مجلې ته د افتتاحیې په ډول لیکلې وه، د مقالې نوم په عربي کې (ردة ولا أبا بكر لها) دی.

دا چې د علامه په دغه مقاله کې د داسې واقعیتونو په هکله په زغرده علمي او شرعي موقف بیان شوی چې زمونږ ټولنه هم له ډیرې مودې

ورسره مخ ده، او د امریکایانو له یرغل وروسته خو د همدغو نظریاتو په مسلمان ملت تحمیلول حکومت خپله اساسي وظیفه ګڼلې، او دهمدې لپاره امریکایانو قدرت ورته سپارلی، نو ضروري وه چې دغه موضوع دې د یو داسې چا په قلم افغاني مسلمانې او مجاهدې ټولنې ته وړاندې شي چې علم، رسوخ، تقوی، انصاف، جهانګردي، حکمت، او تجارب ئې د نړۍ ټولو مسلمانانو ته پرته له کومې منازعې د منلو دي، نو ځکه د (　　) مجلې دغه مقاله پرته له کوم کمي او زیاتي پښتو ته واړوله. او دادی ستاسو درنو لوستونکو په خدمت کې ئې وړاندې کوو. هیله ده چې پدې کار سره مو د معاصر ارتداد په هکله خپل مجاهد ملت د هغه له خطر څخه خبر کړی وي.

# د معاصر ارتداد په هکله د علامه ندوي د مشهورې مقالې بشپړ پښتو متن (بیا ارتداد دی، خو ابوبکر نشته)

(علاّمه أبو الحسن علي الحسني الندوي)

اسلامي تاریخ د ارتداد ډیرې پیښې لیدلې دي، چې تر ټولو ښکاره او زوروره ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته د عربي قبایلو د ارتداد پیښه وه، دا هغه لوی پاڅون وو چې ابوبکر صدیق رضي الله عنه په خپل بې ساري عزم او ایمان تر خاورو لاندې کړ. او بل هغه د اجباري نصراني کولو حرکت ؤ چې د مسلمانانو تر شړل کیدو وروسته د هسپانیا د مسلمانانو په هغو سیمو کې خپور شوي ؤ چې د مسیحي دولتونو تر تسلط لاندې راغلې وې، او د مسیحي ملایانو او دهغوئ د تبلیغي ډلو فعالیت ورکښې زور اخیستی ؤ، ځینی نورې پیښې هم د هندوستان په ځای ځای کې پیښې شوې وې چې ځینې کم عقل او ضعیف النفسه مسلمانان له اسلامه (برهمیت)، او یا (آریائیت)

ته مرتد شوي وو، خو دغه پیښې ډیرې نادرې وې. په حقیقت کې د اسلام په تاریخ کې عمومي ارتداد نه لیدل کیږي، پرته له هغو پیښو چې په غمځپلې هسپانیا کې ولیدل شوې، هغه هم په هغه صورت کې که ئې ارتداد وګڼو، او دا هغه حقیقت دی چې د ادیانو مؤرخین وربانديې اعتراف کوي.

د ارتداد دغه ډول پیښو به دوه ځانګړتیاوې درلودې: یوه دا چې مسلمانانو به له مرتد شوو خلکو څخه سخته کرکه کوله. او بله د مرتدینو له اسلامي ټولنې څخه جلا والی ؤ. هر څوک به چې مرتد شو د مسلمانانو به ډیر بد ایشیده، او له هغې اسلامي ټولنې به جلا ګڼل کیده، چې دی به ورکښې اوسیده. له ارتداد سره سم به د مرتد او د هغه د خپلوخپلوانو تر منځ ټولې اړیکې او خپلوي پرې شوې. ارتداد به له یوې ټولنې بلې ټولنې، او له یوه ژونده بل ژوند ته لیږدیدل ګڼل کیدل. کورنۍ به ورسره پریکون کاوه، اوله ځانه به ئې لیرې کاوه، نه به چا خیښي ورسره کوله، او نه به چا خور او لور ورکوله، او نه به دده او دده د کورنۍ ترمنځ د میراث معامله وه.

د ارتداد حرکتونو به په مسلمانانو کې د مقاومت، او د ادیانو تر منځ د مقارنې روحیه را پاروله. د مسلمانانو په هره سیمه کې چې د ارتداد پیښې رامنځته شوي هلته عالمان، دعوتګر، او لیکوالان د ارتداد د ردولو او د هغه د اسبابو د لټولو او راسپړلو لپاره را پورته شوي دي، او د اسلام ښیګڼې او ځانګړتیاوې ئې خلکو ته بیان کړې دي. ددغه ډول پیښو په اړه به په مسلمانو ټولنو کې هم د نارضایتۍ، غندنې، او ناکرارۍ زوروري څپې خورې شوې، خلک به ئې کرارې ناستې ته نه پریښودل، د خواصو او د دیني غیرت د لرونکو خلکو تر څنګ به عوام خلک هم همدغو خبرو مشغول کړي وو. دغه به د ارتداد د پیښو وضعیت ؤ. که څه هم چې ډیرې لږې به پیښیدلې، او په ژوند به ئې څه اثر هم نه ښکار یده.

خو پدې وروستیو کې اسلامي نړۍ له یو داسې ارتداد سره مخ شوه چې ټوله اسلامي نړۍ ئې له یوه سره تر بل سره ټوله نیولې، او په خپل قوت، عمومیت او ژوروالي کې تر پخوانیو ټولو ارتدادونو مخکې شوی دی. یو ځای هم ورڅخه خوندي ندی پاتې شوی. د مسلمانانو ډیرې لږې کورنۍ بنائی له دغه ارتداد څخه محفوظې پاتې وي. دا هغه ارتداد دی چې د شرق په خلاف د اروپا د سیاسي او فرهنګي استعمار په نتیجه کې را منځته شو. دغه ارتداد په اسلامي نړۍ او اسلامي تاریخ کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وختـه را نیولې تر دې وخته تر ټولو لوی ارتداد دی.

ارتدادد اسلام په عرف، او د شریعت په اصطلاح کې څه شي ته ویل کیږي؟

ارتداد د یوه دین او عقیدې په بل دین او عقیدې بدلولو، او یاله هغه څه څخه انکار ته ویل کیږي چې رسول صلی الله علیه وسلم راوړي، په تواتر را رسیدلي، او د هغه ثبوت په ضروري ډول د اسلام له دین څخه ګڼل کیږي.

مرتد به پخوا په څه مرتد ګڼل کیده؟ مرتد به پدې مرتد ګڼل کیده چې د محمد صلی الله علیه وسلم له رسالت څخه به ئې انکار کاوه، اسلام به ئې پریښوده، او (مسیحیت)، (یهودیت)، یا (برهمیت) به ئې مانه، او یا به په دین کې د الحاد مرتکب کیده، او له رسالتونو، وحیې، او آخرت څخه به ئې انکار کاوه. دغه ډول کارونو ته به پخوانیو خلکو او ټولنو ارتداد ویلو، او هر څوک به چې مرتد شو، هغه به یا کلیسا ته دا خلیده، او یا به ئې د کوم بل دین معبد او بتخانې ته مخه کوله. پدې کار سره به هغه ټولو خلکو پیژانده. مسلمانانو به هم خپل امید ور نه پریکړ. د هغه ارتداد به اکثره پټ نه پاتې کیده.

اروپا یانو شرق ته داسې نظریات له ځانه سره راوړل چې د دین له اساساتو او هغه رب څخه په انکار ولاړ دي چې د ټول عالم چلوونکی او واکمن دی. د هغه علیم ذات له وجود څخه په انکار ولاړ دي چې د ټول

عالم چارې ئې په واک دي، ﴿الا له الخلق والامر﴾ پیدا کول او حکم چلول یوائې د هغه حق دی.
دغه فلسفې او نظریات له غیبیاتو، وحې، او نبوتونو څخه د انکار پر بنسټ ولاړې دي. له آسماني شریعتونو، روحاني، او اخلاقي ارزښتونو څخه انکار کوي.
د اروپایانو دغه فلسفې ځینې ئې د بیالوژۍ، نشأت، او ارتقا له نظریاتو څخه بحث کوي. ځینې ئې په اخلاقو پورې اړه لري، ځینې ئې د اروا پوهنې په محور څرخي، او د ځینې نورو موضوع ئې بیا اقتصاد او سیاست دې.
دغه فلسفې که څه هم چې په په شکلونو، هدفونو، او بنسټونو کې یو له بل سره توپیر لري، خو ټولې ئې په دا یوه نظریه کې سره شریکې دي چې انسان او دنیا ته په خالص مادي نظر ګوري، او د نړۍ او انسان د چارو تحلیل د مادي علتونو پر اساس کوي.
دغو فلسفو او نظریاتو شرقي ټولنې لاندې کړې، په رګونو کې ئې وچلیدلې، او په تاریخ کې تر اسلام وروسته د لوی دین په حیث را ښکاره شوې. په اسلامي ټولنه کې په پراخه پیمانه او په ژور ډول ئې د خلکو زړونه او عقلونه تر خپل تسلط لاندې راوستل. د اسلامي نړۍ تر ټولو ذکي او باسواده خلکو ورته مخه وکړه، او هغه ئې داسې ومنلې لکه مسلمان چې اسلام، او مسیحي چې مسیحیت په ټوله معنی منې.
دغه خلك د خپلو دغو نظریاتو په لاره کې قرباني ورکوي، شعارونو ته ئې سپڅلتیا ، او لارښوونکو ته ئې عظمت وربښی، په خپلو تألیفاتو او ادبیاتو کې ورته خلك رابلي، او د ټولو هغو دینونو، طریقو، او نظریاتو سپکاوی کوي چې د دوئ د نظریاتو مخالف دي، او ټول هغه خلك خپل ورونه ګڼې چې له دوئ سره د دوئ نظریات منې. دغه خلك ټول سره یوه کورنۍ، یو امت، او یو بلاك دي.
اوس دا خبره چې د دوئ دغه دین څه شی دی؟ که څه هم چې منونکي ئې هغه ته له دین ویلو څخه انکار کوي.

د دوئ دین د ټول عالم له علیم، خبیر، او هغه خالق څخه انکار دی چې هر څه ئې اندازه کړي او بیا ئې لاره ورښوولې ده. د دوئ دین له بیا ژوند، حشر، د جنت، دوزخ، ثواب، او عذاب، پیغمبریۍ او رسالتونو، اسماني شریعتونو، شرعي حدودو، او له دې څخه انکار دی چې الله تعالی په ټولو خلکو د ستر پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم اطاعت فرض کړی دی. او هدایت او سعادت ئې یواځې د هغه په پیروۍ کې منحصر کړی دی. د دوئ دین له دې څخه انکار دی چې اسلام هغه ورستی او تلپاتې رسالت دی چې د ټولو دنیوي او اخروي سعادتونو تضمین او کفالت کوي، او د ژوند لپاره تر ټولو ښه او غوره نظام دی. او دا هغه دین دی چې الله جلّ جلاله له هغه پرته بل دین نه مني، او نه هم نړۍ له هغه پرته په بل دین کې سعادت موندلی شي. ددې خلکو دین له دې څخه هم انکار دی چې دنیا د انسان لپاره پیدا شوې ده، او انسان د الله لپاره پیدا شوی دی.
دا دهغې روڼ اندې طبقې دین دی چې په اسلامي نړۍ کې ئې د چارو واګې په لاس کې دي. که څه هم چې دغه طبقه خلك په دغه دین باندې په ایمان او له هغه څخه په دفاع کې ټول یو ډول ندي ځینې ئې یقیناً په الله جلّ جلاله هم ایمان لري، او اسلام هم د دین په حیث مني، خو ددغې طبقې د غالب اکثریت او د ډیرو افرادو او مشرانو دین ئې مادیت، او د غرب هغه فلسفه ده چې په الحاد ولاړه ده.
دغه ډول نظریات منل پرته له شکه ارتداد دی، چې داسلامي نړۍ له یوه سره تربل سره خپور شوی،او ډیرې لوړې کورنۍ، پوهنتونونه، فاکولتې، مکتبونه، اومؤسسې یې لاندې کړې دي. داسې یوه کورنۍ نده پاتې چې په هغې کې ددغه دین کوم منونکی، او یا ورسره محبت لرونکی، اویا د هغه درناوی کوونکی نه وي، پرته له هغو چې الله تعالی ورڅخه ساتلې دي.
که دغه ډله خلك په خبرو راولې، اویا ورسره د بحث او مناقشې لپاره یواځې شی، نو وبه ګورې چې یابه په الله ایمان نه لري، یا به په آخرت

ایمان نه لري، یا به پیغمبر نه مني، یا به قرآن د یو معجز تلپاتې، او د ژوندانه د قانون د کتاب په حیث نه ګوري، په دوئ کې تر ټولو غوره ئې هغه دي چې وائې: مونږ نه پدې مسایلو کې فکر کوو، او نه هغو ته په څه اهمیت قایل یو.

دغه نظریات پرته له کوم شکه یو ارتداد دی، خو د مسلمانانو پام ئې ځانته ندی را اړولی، او نه ئې دهغوئ ذهن مصروف کړی دی. او دا ځکه چې دغه مرتدین تر ارتداده وروسته نه کومې کلیسا او دبل دین معبد ته ورځي، او نه د خپل ارتداد، اوله یوه دین څخه بل دین ته د ورتللو اعلان کوي. او نه ئې هم کورنۍ دغه ارتداد ته متوجه کیږي. نه ورسره مقاطعه کوي، او نه ئې هم له ځانه شړي. بلکه په خپله کورنۍ کې ژوند کوي، او د کورنۍ ټول حقوق ورته حاصل دي. او کله خو داسې هم پیښیږي چې په کورنۍ باندې واك هم د همدغه مرتد چلیږي. همدارنګه دده ارتداد ته نه ټولنه متوجه کیږي، نه حساب ورسره کوي، نه ئې ملامتوي او نه ئې له ځانه بیلوي. بلکه په دائمي ډول په ټولنه کې اوسیږي، له حقوقو ئې استفاده کوي، او کله خو تسلط هم ورباندې دهمده وي.

دغه ډول ارتداد د اسلامي نړۍ تر ټولو لویه قضیه، او تر ټولو لویه ستونزه ده، ارتداد دی چې خوریږي، ټولنه لاندې کوي، خو د چا پام نه ور اوړي. علماء او د دین پوهان ئې هم په هکله د خطر چیغې نه وهي. مخکې به خلکو ویل: ((قضیه پیښه شوه خو أبو الحسن (علي کرم الله وجهه) ورته نشته دی)) خو زه اوس وایم: قضیه پیښه ده خو ابوبکر ورته نشته.

دغه داسې قضیه ده چې نه جنګ غواړي، او نه هم د خلکو د نظریاتو را پارول. نه کوم انقلابي عمل غواړي، او نه ئې هم تاوتریخوالي ته ضرورت نشته. بلکه د زور استعمال او تاوتریخوالي نور هم ورته تاوان پیښوي او نوره ئې هم راپاروي. په اسلام کې نه د مسیحیت د تفتیش محکمې شته، او نه هم د دین له امله د چا ځپل. بلکه دا داسې یوه

قضیه ده چې عزم، حکمت، صبر، د مشکلاتو زغملو، او څیړنې ته ضرورت لري.
دغه نوی دین ولې په اسلامي نړۍ کې خپور شو؟
دغه نوي ولې وکولی شول چې مسلمانان په خپل کور کې مغلوب کړي؟
او ولې ئې وکولی شول چې د خلکو په عقلونو او زړونو دغه ډول محکم تسلط قایم کړي؟
ددغو ټولو پوښتنو ځواب دقیق او ژور فکر، او پراخې څیړنې ته ضرورت لري.
اسلامي نړۍ په نولسمه مسیحي پیړۍ کې په دعوت، عقیده، عقل او علم کې له کمزورۍ سره مخ شوه، ستوماني او زړښت ورکښې ښکاره شو، پداسې حال کې چې اسلام زړښت او کمزوري نه مني، اسلام د لمر په څیر نوی، د لمر په څیر پخوانی، او د لمر په څیر ځوان دی. دا خو مسلمانان دي چې ستړي او کمزورۍ شوی وو، نه ئې علمي انکشاف وکړ، او نه ئې په فکر او تولید کې څه ابتکار وښود. نه ئې د عقل پیاوړتیا وښوده، او نه ئې په دعوت کې حماس، او نه ئې هم په ښکلي او مؤثر ډول اسلام، د هغه ځانګړتیاوې، او پیغام په پراخه پیمانه خلکو ته وړاندې کړای شو.
نه ئې د امت باسواده او روڼ اندي ځوانان خپل کړای شول. او نه ئې دهغوئ عقل او فکر متأثره کړای شو. پداسې حال کې چې همدغه ځوانان د سبا امت وو، او همدوئ ته د امید سترګې وراووښتې. هغوئ ته چا ددې قناعت دورکولو هڅه ونه کړه چې اسلام د انسانیت دین، او تلپاتې رسالت دی. او قرآن هغه معجز او تلپاتې کتاب دی چې هیڅکله ئې نوي انکشافات نه خلاصیږي. نه ئې د علومو ذخیرې پای لري، او نه ئې ځواني زړیږي.
نه چا دا قناعت ورکړ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله یوه لویه معجزه، د هر نسل پیغمبر، او دهرې زمانې امام دی، او اسلامي

شریعت تر ټولو قوانینو غوره او په هره زمانه کې د ژوند د ټولو چارو د ښه حل او تنظیم صلاحیت لري. او هم دا چې ایمان، عقیده، اخلاق، او معنوي ارزښتونه د یو غوره تمدن او عزتمنې ټولنې بنسټونه تشکیلوي.
ځوانان پدې هم چا پوه نه کړل چې له نوي تمدن سره له وسایلو او آلاتو پرته بل څه نشته، او نه چا دا خبره وروښووله چې د پیغمبرانو لارښوونې د عقیدې، اخلاقو او لوړو اهدافو مصدر دي. او د یو صالح او متوازن تمدن تمه تر هغه نشي کیدای چې تر څو وسایل او اهداف سره یو ځای نه کړای شي.
په دغه ډول یو حالت کې اروپا په اسلامي نړۍ د خپلو فلسفو یرغل وکړ. د هغو فلسفو چې د هغو په تدوین او تهذیب کې د اروپا لویو فیلسوفانو، او د زماني نابغه شخصیتونو، ځانونه ستومانه کړي وو، خپلو نظریاتو ته ئې د داسې علمیت او فلسفې رنګ ورکړی ؤ چې په لیدلو ئې سړي ته داسې ښکاریدل لکه چې همدغه د انساني فکر، عقل، څیړنو، او تجربو وروستي نتائج، او د بشري تأملاتو نچوړ وي. په دغو فلسفو کې ځینې داسې ټکي ؤ چې د تجربې او مشاهدې پر بنسټ ولاړ وو، او تجربې ئې هم تصدیق کاوه، او ځینې ورکښې داسې ټکي وو چې یوازې پر اټکلونو، تخیل، او وهم، ولاړ وو. حق او باطل، علم او جهل، واقعي حقیقتونه او شاعرانه تخیلات، ټول پکښې وو. شعر ئې یوازې په نظم او قافیه کې بند کړی نه ؤ، بلکه هغه ئې په فلسفې او علم کې هم ځای کړی ؤ.
دغه فلسفې له اروپايي مستعمرینو سره راغلې، او دلته هم د انسانانو عقلونه او زړونه ورته تابع شول، او په شرق کې ورته د باسواده او روڼ اندې طبقې خلك ورتسلیم شول. ځینې ئې رښتیا پرې پوهیدل، چې هغوئ ډیر لږ خلك وو. او ډیر ئې داسې وو چې له سره پرې پوهیدل نه، خو ټولو پرې ایمان درلوده، له کوډو ئې متأثر شوي وو، او ظرافت او

ذکاوت به ئې د هغو په منلو کې ګڼي، او هغه به ئې د آزادو روښان فکرو شعار ګڼل.
دغه ډول الحاد او ارتداد په اسلامي ټولنه کې پداسې حال کې خور شو چې پلرونه، استاذان، مربیان، او غیرتمن خلك ورته هیڅ متوجه نه شول. او دا ځکه چې دغه مرتدین نه کومې کلیسا ته تلل، نه کوم معبد ته داخلیدل، نه ئې کوم بت ته سجده کوله، او نه ئې د کوم طاغوت په نامه قرباني او حلاله کوله، چې همدغه به په پخوا زمانه کې د کفر، ارتداد، او زندیقیت دلائل او نښې ګڼل کیدې.
پخوا به چې څوك له اسلامه وتل، هغوئ به له اسلامي ټولنې هم وتل، او له هغې ټولنې سره به یو ځای کیدل چې دوئ به ئې نوی دین منلی ؤ. خپله عقیده او خپل اوښتون به ئې په صراحت او زغرده اعلا ناوو، او د خپلې نوې عقیدې په لاره کې به د هر ډول تاوان زغملو ته تیار وو. په دې به ئې اصرار نه کاوو چې په پخوانۍ ټولنه کې پاتې شي، تر څو د هغې له حقوقو او منافعو څخه هم برخمن شي.
خو نن چې څوك له اسلام سره خپلې اړیکې پریکوي، هغوئ نه غواړي له اسلامي ټولنې سره هم خپلې اړیکې پرې کړي، سره لدې چې اسلامي ټولنه یواځنۍ هغه بشري ټولنه ده چې د عقیدې پر بنسټ ولاړه ده، او له عقیدې پرته دغه ټولنه منځته نه راځي. خو دغه خلك بیا هم اصرار کوي چې باید په اسلامي ټولنه کې پاتې شي، د ټولنې باور هم تر لاسه کړي، او له هغو حقوقو څخه هم مستفید شي چې اسلام ئې د اسلامي ټولنې افرادو ته ورکوي. دغه ډول وضعیت یو شاذ وضعیت دی چې اسلامي تاریخ ئې مثال نه لري.
ځنې نور جاهلي تصورات او افکار هم شته چې اسلام ئې په خلاف ښکاره جګړه اعلان کړې ده، او رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل ټول توان د هغو په خلاف جنګیدلی دی. لکه جاهلي تعصب او قوم پرستي چې د وینې، وطن او توکم د یو والي پربنسټ ولاړه ده. اوس دغه ډول عصبیت ستایلی کیږي، مقدس او سپڅلی ګڼل کیږي، دفاع

ورڅخه کیږي، او تر بیرغ لاندې ئې جګړې کیږي، او انساني ټولنه دهغه پر اساس ویشل کیږي، تردې چې د خلکو دین او عقیده وګرځي، او د خلکو په عقلونو، زړونو، ژوند، او آدابو تسلط پیدا کړي. دغه توکم پالنه (قوم پرستي) یقیناً په خپل ژوروالي، پوخوالي، قوت، او هر اړخیز والي، کې له دینونو سره ډغره وهي، او انسانان خپلې بنده ګۍ ته را بولي، د انبیاؤ علیهم السلام کوښښونه له منځه وړي، او دین چې په ټول ژوند باندې د حاکمیت لپاره راغلی یواځې په یو څو عباداتو، او حرکاتو کې خلاصه کوي. انساني نړۍ په خپلو منځوکې په جنګیدونکو بلاکونو ویشي. او هغه امت چې الله ئې په هکله فرما یې: (إن هذه أمتكم أمة واحدة و أنا ربكم فاتقون) بې شکه دغه امت ستاسې یو امت دی او زه ستاسې رب یم له ما څخه وویریږئ، په ډیرو امتونو ویشي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل ټول قوت د دغه جاهلیت په خلاف جنګیدلی، او پدې لاره کې ئې هیڅ نرمي نده ښودلې، خلك ئې ترې ویرولي، او دهغه ټولې لارې ئې بندې کړې دي. د اسلام نړیوال دین او واحد امت له دغو جاهلیتونو سره نشي پاتې کیدی. د اسلامي شریعت منابع د هغو له انکار، او غندلو څخه ډك دي. او پدې هکله د اسلام بې شمیره دلائل موجود دي.

څوك چې د اسلام په طبیعت پوهیږي، او یا د دینونو په طبیعت پوهیږي، هغوئ پدې پوهیږي چې دینونه دغه ډول قوم پرستۍ نه مني. که څوك تاریخ ته له سیاسي او مذهبي تما یلاتو په یو بې طرفه نظر وګوري، نو وبه ویني چې دغه قوم پرستۍ د انسانانو تر منځ دوراني، تخریب، فساد، او تفرقې تر ټولو زورور عامل دی.

له هغو انسانانو څخه چې غواړي دنیاوال سره یو کړي، او ټول انسانیت د یوه بیرغ تر سیوري لاندې په یوه عقیده را ټول کړي، او له هغوئ څخه یوه داسې نوې ټولنه جوړه کړي چې د دین او پر رب العالمین د ایمان پر اساس ولاړه وي، او د انساني ټولنې د کورنۍ د اعضاؤ تر منځ

سوله او امنیت، مینه او پیوستون خپور کړي، او ټول د یوه داسې جسد په څیر کړي چې که یوه غړي ته ئې څه تکلیف ور رسیږي نو ټول غړي به ورسره په بې خوبۍ او تبه ناکراره وي، له دغو انسانانو څخه خو معقول، او د انتظار وړ کار دا دی چې په ښکاره او پوره وضاحت د عصبیت او قوم پرستیو په خلاف و جنګیږي، او راتلونکو انسانانو ته داسې تاریخ پریږدي چې حق ته د هغوئ دلارښوونې سبب شي.

خو اسلامي نړۍ وروسته له هغه چې اروپایانو په سیاسي او فرهنګي ډول لاندې کړه، دغو عصبیتونو ته چې د وینې، توکم، او وطن، د اختلاف پر بنسټ ولاړ دي ورتسلیم شوه، او هغه ئې د یوې داسې علمي قضیې، منل شوي حقیقت، او واقعیت، په توګه ومنل چې هیڅ خلاصون ورڅخه نشته. او د اسلامي ټولنې ملتونه د هغو عصبیتونو چې اسلام له منځه وړي وو په بیا را ژوندي کولو پسې شول، د هغو بوللې ئې بوللې، د هغو شعائر ئې را ژوندي کړل، په هغو او دهغو پر هغې زمانې ئې وویاړل چې تر اسلام دمخه وه. او دا هغه کار دی چې اسلام ورته په ټینکار سره جاهلیت وایي، او د اسلام په قاموس کې د دغې عقیدې لپاره تر (جاهلیت) بل بد او ویروونکی نوم نشته. له دغه جاهلیت څخه وتل قرآن کریم پر مسلمانانو دیوه احسان په توګه یادوي، او مسلمانان دې ته هڅوي چې پر دغه لوی احسان او نعمت د الله شکر ادا کړي: ﴿ وَٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ كُنتُمۡ أَعۡدَآءٗ فَأَلَّفَ بَيۡنَ قُلُوبِكُمۡ فَأَصۡبَحۡتُم بِنِعۡمَتِهِۦٓ إِخۡوَٰنٗا وَكُنتُمۡ عَلَىٰ شَفَا حُفۡرَةٖ مِّنَ ٱلنَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنۡهَاۗ ﴾ آل عمران: ۱۰۳

ترجمه: او هغه پیرزوونې ئې را یادې کړئ کله چې تاسې یو د بل دښمنان واست، نو ستاسې د زړونو په منځ کې ئې مینه راوستله او د

هغـه پـه دغـه نعمت سـره ورونـه شـوئ او تاسـې د اور د کنـدې پرڅنـډه واست، نوله اور څخه ئې خلاص کړئ.

﴿ بَلِ ٱللَّهُ يَمُنُّ عَلَيۡكُمۡ أَنۡ هَدَىٰكُمۡ لِلۡإِيمَٰنِ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ١٧ ﴾ الحجرات: ١٧

**ترجمه:** بلکه پر تاسې د الله احسـان دی چې د ايمـان پـه لـور ئـې ښـوونه درته کړې، که تاسې ريښتني مؤمنان ياست.

﴿ هُوَ ٱلَّذِي يُنَزِّلُ عَلَىٰ عَبۡدِهِۦٓ ءَايَٰتِۭ بَيِّنَٰتٖ لِّيُخۡرِجَكُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ بِكُمۡ لَرَءُوفٞ رَّحِيمٞ ٩ ﴾ الحديد: ٩

**ترجمه:** الله هغه ذات دی چې پر خپل بنده (محمد صلى الله عليه وسلم) ښکاره دلايل نازلوي تر څو تاسې له تيارونه رڼا ته وباسي، او بې شکه چې الله پر تاسې ډير مهربان او د ډير رحم خاوند دی.

مسلمان ته پـه طبيعـي ډول دا پـه کـار ده چـې د جاهليـت زمانـه لـه بدۍ کرکـې او نفـرت څخـه پرتـه پـه بـل څـه يـاده نـه کړي،کـه هغـه هـر څومره تاريخي او يا اوسنۍ وي. آيا دا به داسې نه وي لکـه لـه زنـدان څخـه يـو آزاد شـوی شـخص چـې خپـل د بنـديتوب سـپکاوي او تعـذيب وختونـه ځانته وريـاد وي، او پـه يـادولو ئـې غـوني زيـږه شـي، ترخـې او دردونکـي خاطرې ئې بيرته په ذهن کې تـازه شـي. يـا بـه داسـې نـه وي لکـه لـه يـوه خطرناک مرض څخه جوړ شوی انسان چې خپـل د هغـه مـرض يادونـه پـه خپل ذهن کې تازه کوي چې يو وخت ئې د مرګ تر پولي رسولی ؤ. چې اوس ئې په يادولو خـاطر پريشـانه کيـږي، او رنـګ ئـې الـوزي. آيـا هغـه انسـان چـې يو خطرناک او ويروونکی خوب ئـې ليـدلی وي پـه ويښـيدلو بـه د الله شـکر نـه ادا کـوي چـې ښـه دی چـې دا هـر څـه ئـې پـه خـوب کـې ليدلي، او په ويښه کې ئې نشته.

هغه جاهليت چې د جهل، ګمراهۍ، له حق څخه د لرې والي، او د دنيا او آخرت خطرونه ورکښې راجمع شوي ؤ تر دې تولو بد دی. او بايد چې د هغه بيا يادول او تازه کول د انسان په زړه کې د هغه په هکله کرکه او نفرت پيدا کړي. او انسان له هغه څخه د خلاصون په بدل کې شکر ته تشويق کړي. څکه خو په يو صحيح حديث کې راغلي چې ((**ثلاث من كن فيه وجد حلاوة الإيمان: أن يكون الله ورسوله أحب إليه مما سواهما، و أن يحب المرأ لا يحبه إلا لله، و أن يكره أن يعود إلى الكفر كما يكره أن يقذف في النار**)) **متفق عليه.**

**ترجمه:** درې صفات داسې دي چې څوك ئې ولري په هغو به د ايمان خوند احساس ګړي: چې الله او د هغه رسول ورته تر بل هر څه ګران وي، او دا چې له چا سره مينه او محبت يوائې د الله لپاره وکړي، او کفر ته بيرته ورګرځيدل ئې داسې بد وايسي لکه اورته ورغورځيدل ئې چې بد ايسي.

الله تعالی په ډير شدت سره د جاهليت د شعائرو او د هغه د نوميالیو او مشرانو بدي بيان کړې ده، او فرمايلي ئې دي:

﴿ وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يُنصَرُونَ ﴿٤١﴾ وَأَتْبَعْنَاهُمْ فِي هَذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ هُم مِّنَ الْمَقْبُوحِينَ ﴿٤٢﴾ ﴾ القصص: ٤١ - ٤٢

**ترجمه:** او مونږ هغوئ د اور په لور د بلنې مشران وګرځول، او د قيامت په ورځ به هيڅ مرسته ورسره ونه شي. او ورپسې موکړ په هغوئ پسې پدې دنيا کې لعنت، او په قيامت کې به هغوئ له غندلو شوو څخه وي.

او همدارنګه فرمايي: ﴿وَمَآ أَمۡرُ فِرۡعَوۡنَ بِرَشِيدٖ ٩٧ يَقۡدُمُ قَوۡمَهُۥ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ فَأَوۡرَدَهُمُ ٱلنَّارَۖ وَبِئۡسَ ٱلۡوِرۡدُ ٱلۡمَوۡرُودُ ٩٨ وَأُتۡبِعُواْ فِي هَٰذِهِۦ لَعۡنَةٗ وَيَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۚ بِئۡسَ ٱلرِّفۡدُ ٱلۡمَرۡفُودُ ٩٩﴾ هود: ۹۷-۹۹

**ترجمه:** د فرعون حکم په سمه برابر نه ؤ، د قيامت په ورځ به د خپل قوم په وړاندې روان وي او ټول به اورته ننه باسي، د ورتګ خورا بد ځاى دغه اور دى چې دوئ پرې وننويستل کيږي، په دنيا کې پرې لعنت دى، او د قيامت په ورځ هم، دا خورا بده ورکړه ده چې دوئ ته ورکول کيږي.
خو اوس د اسلامي نړۍ ډيرې سيمې او ولسونه له غربي فلسفو او افکارو نه د تأثر په نتيجه کې داسې شول چې له اسلام څخه د مخکې زمانې تمدن او عنعنات ستايي، او هغو ته د بيرته ورګرځيدلو لپاره ليوالتيا ښيئ، هڅه کوي چې د هغې زمانې ديني شعائر بيرته راژوندي کړي، او مشهور اشخاص، د جاهليت د وخت اتلان، بادشاهان، او د هغوئ کار نامې تلپاتې وښيئ، لکه هماغه ئې چې د تاريخ زرينه زمانه وي، او يا هغه کوم داسې لوى نعمت وي چې اسلام دوئ ورنه محروم کړي دي. د جاهليت زمانې ته په دغه ورګرځيدلو د اسلام له لوى نعمت څخه انکار، او د هغه د احسانونو ناشکري، او د اسلام د نعمت او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د فضل د قدر نه پيژندل دي. پدې کار سره د خلکو په ذهن کې د کفر، بت پرستۍ، او د جاهليت د خرافاتو، ګمراهيو، بې عقليو، خندوونکو او ژړوونکو هغو عقايدو او نظرياتو چې د هيڅ هوښيار مسلمان عقل ئې نه مني، خطر کم ښودل دي. دا هغه کار دى چې په کولو ئې ددې ويره شته چې مسلمان دې له اسلام او ايمان څخه محروم شي. او د الله له سخت عذاب سره دې مخ شي.

الله فرمايي: ﴿ وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ﴿١١٣﴾ ﴾ هود: ۱۱۳

**ترجمه:** میلان مه کوئ هغو خلکو ته چې ظلم ئې کړی چې اور به مو وسوځوي، او نه به وي ستاسو لپاره له الله پرته نور دوستان، او نه به له تاسو سره مرسته کيږي.

له دغو نظرياتو سره نن په اسلامي نړۍ کې د ماديانو د حاصلولو لپاره شديده ليوالتيا، او ماديات تر هر ډول اصولو او عقيدې غوره ګڼل، دنيا ته پر آخرت ترجيح ورکول، له معنويت څخه پريکون، او په هوی او هوس پسې تلل هم ملګري شوي دي. چې نتيجه ئې بې بندوباري، د الله حرامو ته د حرامو په سترګه نه کتل، په لوړو طبقې کې د شرابو او فسق خپريدل راووتله. تردې چې دغه طبقه خلك په هر اسلامي هيواد کې په همدغه يو شکل او صورت کې را منځته شول، ډير لږ ئې داسې دي چې الله تعالی له دغه ډول وضعيت څخه ساتلي دي. دغه د لوړې طبقې خلك ځان د اسلام له هر ډول قيودو او فرايضو څخه په مکمل ډول داسې آزاد بولي لکه چې له اسلام او شريعت سره ئې هيڅ رابطه نه وي. او يا داسې چې لکه اسلام چې کوم منسوخ شريعت او خيالي افسانه وي.

دغه په اجمالي ډول د اسلامي نړۍ د ديني او اعتقادي وضعيت تصوير دی. دا يوه داسې د جاهليت څپه ده چې اسلامي نړۍ ئې له يوه سره تر بل سره لاندې کړې ده. او دا د اسلامي نړۍ په اوږده تاريخ کې تر ټولو لويه څپه ده چې ورسره مخ دی. دغه څپه په خپل قوت، هر اړخيزوالي، او تأثير کې له ټولو هغو د اسلام مخالفو څپو څخه زياته ده چې اسلامي تاريخ تر اوسه ليدلې دي. خوله نورو څپو څخه ئې فرق دادی چې دغې څپې ته د ډيرو لږو خلکو پام ورګرځيدلی، او هغه خلك چې

ددې په خلاف جنګېږي، او پدې لاره کې خپل ټول قوت او استعدادونه کاروي ډیر لږ دي. پخوا هم د یونان له فلسفې نه د متأثر کیدو په نتیجه کې الحاد او زندیقیت منځته راغلی ؤ، خو په هغه وخت کې د هغه د مقابلې لپاره داسې خلك را میدان ته شوي وو چې په خپل لوی عقل، بې ساري ذکاوت، قوي علم، پراخې ځیرنې، او قوي شخصیت، د هغه پر خلاف وجنګیدل. باطنیان او ملحدان هم پیدا شوي وو، خو د هغو په خلاف هم داسې خلك را میدان ته شول چې په علم، حکمت او دلائلو د هغو په خلاف وجنګیدل، او اسلام خپل عقلي نفوذ، او علمي لوړه مرتبه وساتله، او هره توپاني څپه ئې بیرته په شا کړه، هیڅ توپان او سیلاب د اسلام هسك غر لاندې نکړای شو.

دغه مسأله کومه د اخلاقي تنزل، یا په عباداتو کې د کمزوزی، یا د شعائرو د پریښودلو، او د پردیو د تقلید مسأله نه ده، که څه هم چې دغه مسائل هم توجه، او په خلاف ئې مبارزه غواړي. نن ورځ د اسلامي نړۍ مسأله تردې مسائلو ډیره ډیره لویه او پلنه ده. دا د کفر او د ایمان مسأله ده په اسلام باندې د پاتې کیدلو، او یا له اسلام څخه د وتلو مسأله ده.

نن جګړه د غرب د سیکولر (بې دینې) فلسفې او د وروستي اسماني دین (اسلام) تر منځ روانه ده. د مادیت او د اسماني شریعت تر منځ جګړه ده. او داسې ښکاري چې همدا به د دین او بې دینۍ ترمنځ وروستۍ جګړه وي، او همدا به د نړۍ برخلیك ټاکي.

د نن ورځې جهاد، د نبوت خلافت، الله ته د نږدې کیدلو تر ټولو لویه ذریعه، او تر ټولو غوره عبادت دادی چې د (بې دینۍ) ددغې څپې چې په اسلامي نړۍ ئې یرغل کړی، او د مسلمانانو عقلونه او مرکزونه اشغالوي، مخه دې ونیول شي، او د ځوانانو او روڼ اندو زړونو ته دې بیرته د اسلام په اصولو، عقائدو، حقا ئقو، قوانینو او په محمدي رسالت له منځه تللی باور او اعتماد راستون کړای شي. او هم دې هغه فکري او رواني بې باوري او اضطراب له منځه یوړل شي چې د امت

روښانفکره ځوانان ورباندې اخته دي، هغوئ ته باید د عقل او فرهنګ په ساحه کې په اسلام قناعت ورکړشي. د هغو ټولو جاهلي افکارو او نظریاتو په خلاف باید علمي او عقلي مبارزه وشي چې د خلکو په زړونو، او عقلونو مسلط دي. او پر ځای ئې اسلامي فکر او نظر د قناعت، ایمان، او ایماني غیرت له لارې حاکم شي.
پوره یوه پیړۍ شوه چې اروپا زمونږ ځوانان او زمونږ عقلونه له مونږ څخه یرغمال کړي دي، او زمونږ په ذهنونو کې د شك، الحاد، منافقت، او په ایماني او غیبي حقیقتونو باندې د بې باورۍ تخم شیندي، او په مقابل کې ئې مونږ پر نوو اقتصادي، او سیاسي فلسفو ایمان راوړلو ته را بولي. پداسې حال کې چې مونږ ددغو نوو فلسفو مقاومت ته شاړولي، او یواځې په خپل تاریخي میراث مو اکتفا کړې ده، له نوي ایجاد څخه مو لاس نیولی دی. مونږ د اروپا د فلسفو او قوانینو له علمي محاسبې، نقد، او د جراحي د طبیبانو په څیر د هغو جراحۍ او سپړنې ته هم شاکړې ده. او یواځې په بیړنې او سطحي ډول مو هغه د خپلو پخوانیو علمي معلوماتو د زیاتولو په مقصد یو څه څیړلي دي. ددغه غفلت په نتیجه کې خبره تردې را ورسیده چې په نابېره ډول اسلامي نړۍ پدې وروستیو کې د ایمان او عقیدې په ډګر کې له سقوط سره مخ شوه، او په اسلامي هیوادونو کې د چارو واګې داسې خلکو په لاس کې واخیستل چې نه د اسلام په اصولو او عقیدې باور لري، نه ورڅخه دفاع کوي، او نه ئې له مؤمن او مسلمان ولس سره له یو ډول (اسلامي نشلیزم) او سیاسي مصالحو پرته بله رابطه شته.
دغې د (بې دینۍ) روحیې په کراره کراره د ادبیاتو، فرهنګ، ژورنالیزم، او سیاست له لارې ولسونو ته لاره پیدا کړه، تردې چې مسلمان ولسونه دغې بې دینه طبقې ته لدې امله تابع شول چې هغوئ ډېر مکار خلك وو، او په ټولنه باندې ئې خپل نفوذ او فرهنګ حاکم

کړې ؤ. که څه هم چې په مسلمانو ولسونو کې ډیر خیر، صلاح، او ښه استعداد شته، او په نړۍ کې هغوی له غوره ټولنو څخه دي.
اوکه وضعیت همدغه ډول پاتې شي، نو الحاد او فساد به دغو ټولنو ته نوره هم لاره پیدا کړي، او حتی هغو خلکو ته به هم ورسیږي چې په کلیو او بانډو کې اوسیږي، او په صنعت او زراعت باندې مشغول دي، هغوئ کې به هم (لادینیت) او (زندیقیت) خور شي. همدغه ډول په اروپا کې هم وشول، او دادی اوس په شرق کې هم دا پیښیږي. که وضعیت همدغــه ډول وي، او چــارې پــه همــدې ډول پــر مــخ ولاړې شــي، او الله تعالی ئې په خپل قدرت مخه ونه نیسي.
اسلامي نړۍ نن ورځ یو نوي اسلامي دعوت ته ضرورت لري. او د نن ورځې د دعوتګرو نعره او هدف هم همدادی چې وایي: ((یو ځل بیا د اسلام په لور)). خو پدې لاره کې یواځې شعارونه کافي نه دي. اوس تر کاره دمخه یوحکیمانه تصمیم ته ضرورت دی، باید په سړه سینه پدې غور وکړو چې هغه طبقه چې ځان روشنفکران بولي، او د ولسونو د ژوند د ټولو چارو واګې ئې په لاس کې نیولي دي څنګه ئې بیرته اسلام ته را واړوو؟ او څنګه ئې زړونه بیرته له ایمان، او په اسلام باندې له باور څخه ډك کړو؟ او څنګه ئې د غربي فلسفو، او د معاصر تمدن د بې دینه نظریاتو له غلامۍ څخه خلاص کړو؟
اسلامي نړۍ نن ورځ داسې شخصیتونو ته ضرورت لري چې ددغه دعوت لپاره ځانونه وزګار کړي، خپل علم، استعدادونه، او کفایت ددغه دعوت په لاره کې ولګوي، داسې خلك وي چې نه ئې منصب په کار وي او نه مرتبه، نه د وظیفې په لټه کې وي او نه د حکومت، او نه ئې هم د چا لپاره کینه په زړه کې وي، خلکو ته ګټه رسوي، خو د ځان لپاره په ګټو پسې نه ګرځي، داسې خلك چې خلکو ته ورکړه کوي، خو له خلکو ئې غواړي نه. له هیڅ طبقې سره په کوم داسې دنیاوي شي کې چې هغه ئې ډیر حرص لري، او ځان پرې وژني، په کشمکش کې نه پریوځي. تر څو ددغو خلکو لپاره دغه دعوتګر شخصیتونه پر خپل

ځان نه کوم حجت په لاس ورکړي، او نه هم شیطان ته لاره پریږدي چې د دوی زړونو ته داخل شي. ددغو دعوتګرو شعار باید اخلاص، له هر ډول شهوتونو، ځان غوښتنو، او تعصباتو څخه لیرې اوسیدل وي.
اسلامي نړۍ نن ورځ داسې ټولنو او ادارو ته ضرورت لري چې د یو داسې نوي او قوي اسلامي ادب د رامنځته کولو لپاره کار وکړي چې ځوانان په پراخه معنی بیا د اسلام غیږې ته راوګرځوي، او د هغو غربي فلسفو له غلامۍ نه ئې وژغوري چې ځینو ئې د پوهې او څیړنې په نتیجه کې منلي دي، او ځینو نورو ئې بیا یوازې په پټوسترګو دغربیانو د تقلید په نتیجه کې منلي دي. د دوئ ذهنونو او فکرونو کې باید بیرته د اسلام اصول ځای پرځای شي، فکر او ذهن ئې باید بیرته په اسلام موړ کړای شي. اسلامي نړۍ نن په هره ساحه کې دغه ډول شخصیتونو ته ضرورت لري تر څو په ټینګه او جدي ډول دغه جهاد پر مخ بوځي.
زه له هغو خلکو څخه هیڅکله نه یم چې دین له سیاست څخه جلا بولي، او د دین داسې تعبیر او تفسیر کوي چې له حاکم وضعیت سره په ټکر کې رانشي- که څه هم چې حاکم وضعیت هر څومره له اسلام سره نا آشنا او له هغه نه منحرف هم وي- او یا ئې داسې تعبیر وي چې له هرې ټولنې سره همغاړۍ کیدي شي. او نه هم له هغو خلکو څخه یم چې سیاست (**شجرة ملعونة في القرآن**) ګڼي. بلکه زه د هغو خلکو په سر کې یم چې د مسلمانو ولسونو لپاره د سالم سیاسي پوهاوي او صالح قیادت د ایجاد لپاره کار کوي. زه له هغو څخه یم چې پدې باور دي چې دیني ټولنه له یوه سالم دیني حاکمیت چې د اسلام پر بنسټونو ولاړ وي پرته منځته نشي راتلای. زه به همدې نظرئې ته تر څو چې ژوندی یم خلك رابلم. خو خبره د ترتیب، تقدیم او تأخیر، د دین دحکمت او پوهې د تقاضا، او د اوضاعو د واقعیتونو ده.
مونږ خپل کوښښونه، استعدادونه، موجود فرصتونه، او خپل وسائل په سیاسي او تنظیمي حرکتونو کې مصرف کړل، او دا ټول پدې بنیاد

چې ولس مؤمن دی، او هغه خلك چې د ولسونو قيادت كوي، او د چارو واګي ئې په لاس كې دي – روښانفكران – هغه هم مؤمنان دي، د اسلام په اصولو او عقيدې باور لري، او د اسلام د سرلوړۍ او د حدودو د تنفيذ لپاره به ئې په ليوالتيا سره كار كوي، خو خبره سرچپه راووته، او هغه دا چې د ولس مو پداسې حال كې ايمان كمزوری شو، او اخلاق ئې د انحطاط (لويدنې) په لور لاړل چې نه مونږ ورته متوجه شوو، او نه هغه خپله په ځان پوه شو، او د روښانفكره طبقې د اكثرو خلكو اسلامي عقيده د غرب د فلسفې، سياست، او نفوذ د منلو په نتيجه كې له منځه لاړه، او يوه لويه برخه خلك خو ئې د اسلامي عقيدې په خلاف هم راپورته شول. په هغو غربي نظرياتو ئې ايمان راووړ، او دفاع ئې ور څخه پيل كړه، او د هغو د خورولو او تطبيقولو لپاره ئې متې راونغښتې چې اصلاً له دين سره په ټكر كې دي. دغه خلك غواړي چې د ژوندچارې ټولې د همدغو غربي نظرياتو پر اساس او دهغو په رڼا كې تنظيم كړي. او ملت په هغو باندې عمل كولو ته اړباسي. ځينې ئې غواړي د دغه نظرياتو تطبيق په بيړه او افراط سره عملي كړي، او ځينې ئې غواړي يو څه له حكمت څخه كار واخلي، او مرحله په مرحله ئې عملي كړي، او ځينې ئې دغه غربي نظريات د زور او خشونت په ذريعه عملي كوي، او ځينې نور ئې بيا كوښښ كوي چې خلكو ته ئې ښايسته كړي، تر څو ئې په خپله ومني، خو هدف د ټولو يو دی.
ديني علماء پدې اړه دوه ډلې دي: يوه ډله ئې هغه دي چې ددغې طبقې په خلاف ئې سخته جګړه پيل كړې، هغوئ كافر ګڼي، اوله هغوئ سره ئې هر ډول مقاطعه اعلان كړې. او ددغو بې دينه نظرياتو او فرهنګ د اسبابو او ريښو دلټولو هڅه هم نه كوي.
هغوئ د دغې اسلام دښمنې طبقې د احوالو د تغيير او اصلاح هڅې هم نه كوي، پداسې ډول چې له هغوئ سره ناسته ولاړه ولري، او د دين په اړه ددغې طبقې له زړونو څخه نفرت لرې كړي، چې پدې ترتيب د

هغوئ په زړونو کې د ایمان د کومې پاتې ذرې په سالمو او مؤثرو اسلامي ادبیاتو پالنه وکړي، له هغوئ څخه هیڅ مال، قوت، او منصب ونه غواړي، خو مخلصانه لاربنوونه ورته په حکیمانه ډول تقدیم کړي.
بله ډله بیا هغه علماء دي چې لدوئ سره مرسته کوي، په مصالحو او منافعو کې ورسره شریك دي، له دنیا څخه ئې استفاده کوي، پرته لدې چې په دین کې څه گټه وررورسوي. نه د دعوت غم کوي، او نه د عقیدې، نه په دین باندې غیرت لري، او نه هم د هغوئ د اصلاح اراده، او نه هم له هغوئ سره په دغه نږدیوالي کې د کوم رسالت خاوندان دي.
خو دریمه ډله چې هغوئ باید له دغه وضعیت څخه دردمن وي، او دا هم مني چې دغه طبقه خلك داسې مریضان دي چې د تداوي او شفا وړتیا هم ورکې شته، هغوئ ته په مهربانۍ دعوت ورکړي، او په مخلصانه نصیحت ورته خپل حکیمانه پیغام وروړاندې کړي ډیر لږ دي.
هغه طبقه خلك چې د غرب نظریات ئې منلي دي دین او ددین چاپریال سره ئې هیڅ تړاو نشته، له دین نه لیرې، او له هغه څخه په ویره کې اوسیږي، او نور هم له دین څخه لیرې کیږي، او په هر هغه څه پورې چې په دین پورې تړاو لري پسخند او مسخرې کوي. د هغې ډلې مسلمانانو دښمني چې له دوئ سره په جگړه اخته دي دوئ نور هم د سختې جگړې خواته بیا ئې. او هغه مسلمانان چې په د دین زعامت کوي او غواړي چې حاکمیت ددغې بې دینې طبقې له واکه وباسي، او دواړه سره د زعامت پخاطر په سیالۍ اخته دي، د هغوئ دغه دښمني ددې سبب شوې چې د غربي نظریاتو منونکي نور هم له دین سره کینه وکړي، او ورڅخه په ویره کې شي. په انسانانو کې دا فطري خبره ده چې له هغه چا سره کینه وکړي چې غواړي دنیا له دوئ څخه واخلي، که ئې ایمان هم یوائې په دنیا وي. او له هغه چا سره کینه وکړي چې غواړي حکومت او واك ترې واخلي. پداسې حال کې چې دوئ خپل

پايښت هم يواځې په حکومت او واك کې ګڼي. او له هغه چا سره هم کينه وکړي چې غواړي له مادياتو او خوندونو ئې بې برخې کړي، پداسې حال کې چې پرته له مادياتو او خوندونو بل نه پيژني هم نه.

اسلامي نړۍ نن داسې يوې ډلې داعيانو ته ضرورت لري چې له دنياوي مقاصدو خلاص وي، او د دعوت لپاره اخلاص ولري، له هر هغه څه ليرې وي چې خلکو ته دا تصور ور پيدا کوي چې کيدی شي د دوئ مقصد بهماديات، او يا د خپل ځان، خپل قوم او يا خپل تنظيم لپاره د حکومت غوښتل وي. دغه دعوتګر بايد د خلکو د ذهن او نفس هغه روحي او رواني عقدې ليرې کړي چې د غرب فرهنګ او د ملايانو غلطيو ددغې طبقې غلط فهميو، د علم کموالي، او له اسلام او د هغه له چا پريال څخه ليرې والي د دوئ په ذهنونو کې ايجاد کړې دي.

او دغه کار د ليدنو کتنو، ملګرتياؤ، خبرو اترو، د ليکنو د تبادلې، او د سفرونو او ملاقاتونو، د اسلامي مؤثرو ادبياتو، شخصي روابطو، پاك نفسۍ، اخلاقي لوړتيا، د قوي شخصيت په لرلو، له دنيا څخه په زهد، د خوندونو په پريښودلو،او د انبياؤ او دهغوئ د خلفاؤ د اخلاقو په تمثيل سره تر سره کړي.[1]

---

[1] علامه ندوي رحمة الله عليه په دغه فقره کې د غربي فلسفو د منونکو (مرتدانو) د علاج لپاره د يوې سوله ييزې، علمي، دعوتي، عاطفي او صوفيانه مبارزې طرحه وړاندې کوي، دغه طرحه په خپل ځای او خپل وخت کې په نظري ډول يوه سمه طرحه ده، خو دا چې علامه رحمة الله عليه دغه مقاله لسګونه کلونه مخکې د هماغه وخت فکري، سياسي، اجتماعي او نظامي وضعيت په نظر کې نيولو سره ليکلې وه، او په هغه وخت که دغو مرتدينو له يوې خوا له اسلام څخه په عملي ډول د وتلو لاره نيولې وه، خو له بلې خوا ئې د اسلام او مسلمانانو په خلاف د کفر تر بيرغ او قوماندې لاندې پوځي جګړه نه وه پيل کړې، بلکه په منافقتونو، تزويرونو، رياکاريو او درواغو به ئې له مسلمانو ولسونو سره د خوا خوږۍ دعوی هم کوله، نو ځکه ئې ندوي صاحب ددغه ډول فکري انحرافونو د علاج لپاره د فکري وسائلو توصيه کوي، دا چې اوس دغه حاکم مرتدين په علني ډول د کفر تر بيرغ لاندې، او د کفر په صف کې د کفارو د اهدافو د تحقق لپاره په ټوله اسلامي نړۍ کې د اسلام پر خلاف په يوه بې رحمه پوځي جګړه اخته دي . اوله اسلام سره ئې د هر ډول مذاکراتو دروازې بندې

دغه ډول خلکو تل د اسلام خدمت کړي، په اموي دولت کې د پنځم راشد خليفه (عمر بن عبد العزيز) څرګنديدل د همدغه اسلوب او طريقې نتيجه وه، او همدغه تاريخ يو ځل بيا په هند کې د مغولي بادشاه جلال الدين اکبر په وخت کې تکرار شو، هغه چې د اسلام په خلاف را پورته شوی ؤ او تصميم ئې نيولی ؤ چې پر هند د اسلام له څلور پيړۍ حکومت وروسته يوځل بيا هندوستان د ((برهمي)) جاهليت په لور ور وګرځوي، خو ددغه حکيمانه دعوت په برکت، او د مجدد الف ثاني د با حکمته شخصيت په هڅو چې اسلام ته ئې په اخلاص بلنه کوله، او په اسلام، او د اسلامي دعوت په فقه ښه پوهيده، او همدارنګه د هغه د شاګردانو په کوښښونو هند يوځل بيا تر پخوا هم په قوي، او په ښه ډول اسلام ته را وګرځيده. وروسته د (اکبر) پر تخت داسې بادشاهان کښيناستل چې په تقوی او د اسلام په مينه کې يو تر بله غوره وو، ترديچې د هند پر تخت داسې څوك کيښناست چې د اسلام او د اصلاح تاريخ ئې په ياد، او کارنامو ښايسته شو، او هغه (اورنګ زيب عالمګير) ؤ، هغه چې (فتاوی هنديه عالمګيريه) هم هغه ته منسوب ده.

---

کړی دي، په ښکاره اعلانوي چې په هيڅ ځای کې او په هيڅ ډول ورته د اسلام حکميت، او دشريعت تطبيق د منلو وړندی، او که څوك ئې د حاکمولو هڅه کوي هغوئ بايد په بې رحمانه ډول ووژل شي، او يا له صحنې ليري شي . نو په دغه صورت او په دغه ډول وضعيت کې ښائي ددغو مرتدينو چې ندوي صاحب هم ورته مرتدين وا ئې هماغه علاج وي چې ابوبکر صديق رضي الله عنه د خپلې زمانې د ارتداد دله منځه وړلو لپاره کارولی ؤ . خو دا پدې معنی نده چې د غربي فکرمنونکي دې ټول په يوه ډبره وتلل شي . کيدای شي چې ځينی کشران، او ناپوهان ئې اوس هم د شکوکو، شبهاتو، غلط فهميو ښکار شوي وي، او يا د کفري هيوادونو، او نظامونو د تيرايستونکو تبليغاتو تر تأثير لاندې راغلي وي، چې لدغه ډول فکري ګمراهۍ څخه د هغوئ د را ويستلو لپاره لاس وراوړدول بيا هم د اسلامي فکر د پلويانو او مخلصو داعيانو فريضه ده .    (ژباړونکی)

ددغه ارتداد مقابله کول داسې یوه فریضه ده چې یوه ورځ ځنډ هم نه مني، نن ورځ د اسلامي نړۍ ځواکمن هیوادونه، او غوره بچیان د ارتداد له یوې قوي او خطرناکې څپې سره مخ دي، دغه د ارتداد څپه د مسلمانانو د عقیدې، اخلاقو، او ارزښتونو په خلاف یو پاڅون او بغاوت دی، او که اسلامي نړۍ خپل دغه شته چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته په میراث پرې ایښي، او مسلمانو نسلونو هغه په خپلو منځو کې ساتلي، او د اسلام اتلانو له هغو څخه د دفاع په لاره کې قربانۍ ورکړي له لاسه ورکړي، بیا نو د اسلامي نړۍ بقا له منځه ځي. دغه موضوع باید د ټولو هغو خلکو د توجه او اهتمام وړ وګرځي چې د اسلام غم ورسره دی.

(پــا ی)

# د کابل مسیحي پوهنتون

American University

## تاریخي پس منظر

د اسلام له پیل راهیسې غربیانو تل هڅه کړې چې اسلامي هیوادونه تر خپل تسلط لاندې راولي او د اسلام حاکمیت له منځه یوسي. دهمدې هدف لپاره ئې اول صلیبي جنګونه شروع کړل او د القدس د نیولو په بهانه ئې څوسوه کاله په مسلسل ډول لښکرې راتهولې کړې او دلته ئې په لکونو مسلمان ووژل، خو دغه هدف ئې ترلاسه نه کړای شو لکه چې (ګارډنر) وایې:

((صلیبي جګړو ونشو کولای چې القدس دتل لپاره د مسلمانانوله ولکې وباسي او د اسلامي نړۍ په زړه کې یو مسیحي دولت جوړ کړي)). نوموړی زیاتوی: (صلیبي جګړې دالقدس د نیولو په نسبت زیاتره د اسلام د له منځه وړلو په نیت ترسره کیدلې)[1].

وروسته بیا همدغه صلیبي جګړې د استعماري جګړو په شکل کې پیل شوې چې ظاهراً ئې امپریالیستي او اقتصادي بڼه درلوده چې په نتیجه کې ئې تقریبا ټول اسلامي هیوادونه لاندې کړل، او د یوې اوږدې مودې لپاره ئې مسلمانان محکوم و ساتل، او شریعت ئې د زور په وسیله د هغوئ له سیاسي او اجتماعي ژوندانه څخه لیرې کړ. که څه هم دخلکوپه زړونو کې ئې ځای درلود.

خو کله چې د شلمې پیړۍ په پیل کې آزادي غوښتونکو حرکتونو په نتیجه کې د اروپائي استعمار ټغر په ټولیدو شو نو انګریزانو په خاص ډول له دوهمې نړیوالې جګړې وروسته خپل استعماري نقش امریکا

[1]- له کویټ څخه خپریدونکې دالمجتمع مجله (۲۰۰) یمه ګڼه د (الجامعة الامریکیة بیروت مرکز لنشاط المخابرات والسفارة الامریکیة) مضمون.

ته ور وسپاره. ځکه چې نور نو د انګریزانو ستوری په لویدو او د امریکا ستوری په پورته کیدو وو.

امریکایانو چې د اروپایانو د استعماري دور دحاکمیت له مشکلاتو څخه درس اخستی وو نو ئې د اسلامي هیوادنو د نیولولپاره یوه بله طریقه او ستراتیژي وضع کړه چې بنسټ ئې د کلیسا په کوښښونو او تعلیم ولاړوو. امریکا مسیحي مبلغینو ته وظیفه ورکړه چې په اسلامي هیوادونو کې چې زیاتره ئې لاتر هغه وخته د اروپایانو تر استعمار لاندې وو د مکتبونو، کالجونو او پوهنتونونو د تاسیس له لارې داسې یو نوی نسل وروزي چې یوازې په نامه مسلمان وي خو نور ئې له اسلام سره هیڅ همدردي نه وي. دین، فکر، اخلاق، فرهنګ او د ژوند پنه ئې امریکایي وي. تر څو دغه نوي نسل ته له فراغت څخه وروسته د هیوادنو چارې وروسپارل شي. او د اسلامي هیوادونو مستعمره ساتلو ته داخل د Westernization (د غربي ګرځولو) په شکل کې دوام ورکړي.

کلیسا په اسلامي هیوادونو کې داسې تعلیمي مراکز او اداري جوړې کړې چې په حقیقت کې د صلیبي استعماري جګړو داهدافو د ترسره کولو لپاره د جګړې جبهې وې، خو په ښکاره ئې د (تعلیم)، (انسانیت)، او (ترحم) نعرې پورته کولې.

لطفي لیفونیان ارمنی منصّر وایي: (اروپایي دولتونو چې په صلیبي جګړو کې ماتې وخوړه نو وئې غوښتل دمسلمانانو په خلاف یوه بله صلیبي جګړه داخل د تعلیم او تبلیغ له لارې روانه کړي، او دا ځل یې کلیسا ګانې، مسیحي تبلیغ، مکتبونه، پوهنتونونه او شفاخانې په کار واچولې. او په زرګونو مسیحي مبلغین ئې په اسلامي نړۍ کې خواره کړل. )[1]

[1]- له کویټ څخه خپریدونکي دالمجتمع مجله (۲۰۰) یمه ګڼه د (الجامعة الامریکیة بیروت مرکز لنشاط المخابرات والسفارة الامریکیة ) مضمون .

د امریکا دغه استراتیژي ډیره کاریګره واقع شوه، ځکه چې داخل نه یوازې دا چې په اسلامي هیوادونو کې خلکو له دوئ کرکه نه کوله، بلکه په خپلو مصاریفو ئې خپل اولادونه دهغوئ مخې ته د زده کړې لپاره کښینول. او دنوي نسل مستقبل ئې مسیحي مبشرینو(تبلیغیانو) ته وروسپاره.

## مسیحیت د تعلیم تر پردې لاندې

کله چې امریکائې پروټستانټ مسیحي مبشرین Missionary له مراکشه نیولې تر اندونیزیا پورې په اسلامي نړۍ کې خواره شول، وئې لیدل چې په اسلامي نړۍ کې خلک د مسیحیت منلوته تیار ندي، بلکه په مسلمانانو کې د اروپایې استعمار د ظلمونو له امله د مسیحیت په خلاف کرکه نوره هم زیاته شوې ده، او په ځینو سیمو کې چې لاتر هغه وخته د عثماني خلافت تر کنټرول لاندې وې حکامو هم د مسیحیت د خپرواوي مخالفت کاوه. ځکه نو امریکایي مسیحي مبلغینو لاندې دوه مهم کارونه وکړل:

**اول:** خپل فعالیت ئې په هغو سیمو کې پیل کړ چې له پخوا راهیسې مسیحي اقلیتونه ورکښې موجود وو لکه (لبنان) او (مصر)، او دغه سیمې ئې د نورو سیمو لپاره پدې بهانه د فعالیت مراکز وګرځول چې ګواکې دوئ د دغو محلي مسیحیانو لپاره کار کوي. او څوک باید وربااندې اعتراض ونه کوي.

**دوهم:** خپلې پروژې ئې د بهترینو تعلیمي مراکزو په شکل کې پیل کړې چې د تدریس او نظم په لوړو معیارونو ولاړ ول. ددې کار نتیجه دا شوه چې تر یوې مودې وروسته د سیمې په مسلمانانو کې هم د شتمنې طبقې خلکو خپل اولادونه په دغو تعلیمي مراکزو کې شامل کړل. دوخت په تیریدلو، د پرله پسې کوښښونو او په محلي حکامو کې د نفوذ او تاثیر د پیداکولو په نتیجه کې دغه مکاتب د عالي

تحصيلاتو په لوړو مراکزو بدل شول چې ځينې يې بيا وروسته د American Universities(امريکايي پوهنتونو) په شکل کې راڅرګند شول، چې په دې کتاب کې ئې دځينو معرفي دلوستونکو په خدمت کې وړاندې کيږي.

# د امريکايي پوهنتونونو لپاره د اسلامي نړۍ د مهمو مراکزو انتخاب

امريکايي مبشرينو د پوهنتونونو د تاسيس لپاره داسې سيمې انتخاب کړې چې له يوې خوا پکښې په خلاص لاس فعاليت وکولی شي او له بل لوري دغه سيمې د سياسي، اجتماعي، اقتصادي، او ديني اهميت له مخې په خپلو شاوخوا سيمو تاثير ولري. تر څو دغه تاثير دامريکايي فعاليتونو د خپريدو لپاره هم ممدواقع شي. او دغه سيمې (لبنان)، (قاهره) (استانبول) او اوس (کابل) په ښه شوي چې د هرې سيمي داهميت په اړه په لاندې ډول څو کرښې وړاندې کيږي.

لبنان – بيروت:

د امريکايي پوهنتون د تاسيس لپاره د لبنان اهميت په دې کې وو چې له يوې خوا د مديترانې د سمندر په غاړه اروپا ته مخامخ پروت دی. او امريکا ورته د سمندر له لارې مستقيمه لار لري. او له بلې خوا هلته په بيروت کې له پخوا راهيسې نامسلمان اقليتونه لکه (ماروني مسيحيان) (درزيان) (ارمنيان) او (اسماعيليان) اوسيدل، چې دامريکايي فعاليت لپاره ئې ښه زمينه برابروله. او تر دې هم مهمه خبره دا وه چې له لبنان څخه سوريه، عراق، فلسطين، اردن، او دعربو جزيره په ښه ډول تر مسيحي فعاليت لاندې نيول کيدای شوه.

قاهره:

د مصرهیواد چې له یوې خوا د مدیترانې د سمندر په غاړه پروت دی، او له بل لوري د آسیا او افریقا د دوو بر اعظمونو تر منځ د پله حیثیت لري. د الازهر د پوهنتون او د مصر د تاریخي، سیاسي، مرکزیت دلرلو له امله ئې د ټولې شمالي او مرکزي افریقا لپاره د یوه علمي او فرهنګي مرکز حیثیت غوره کړی ؤ. ددې ترځنګ د نولسمې پیړۍ په آخر او د شلمې پیړۍ په اول کې د(محمد علي) حاکمې کورنۍ چې د غرب په لوري ئې مخه کړی وه مصر له عثماني خلافت څخه جلا کړی ؤ. نو غوښتل ئې په مصر کې هرڅه د غرب په فرهنګ عیار کړي، ددې ټولو ترځنګ لومړی د فرانسویانو او بیا وروسته دانګریزانو د استعمار په زمانه کې د مصر ځایي مسیحیانو (قبطیانو) هم ښه وده کړې وه، چې دې ټولو د امریکایې مبشرینو لپاره د مسیحیت او غربي تعلیم د خپرولو او د امریکایي پوهنتون د پرانستلو ښه زمینه برابره کړې وه

استانبول:

استانبول چې تقریبا پنځه پیړۍ په ترکیه کې د اسلامي خلافت مرکز وو، او په دنیا کې د ښکلو مساجدو دلرلو له امله د(منارو)، ښار بلل کیده، او عثمانیانو له هغه ځایه یوه لوی اسلامي خلافت اداره کاوه، او هره خوا ئې فتوحات درلودل. ان تر دې چې په شرقي اروپا کې ئې هم ډیرې سیمې فتح کړې وې. خو په پای کې د یهودي او مسیحي توطیو له امله له زوال سره مخ شو. ددغه خلافت مرکز استانبول هم د امریکایي مبشرینو لپاره د تعلیمي فعالیتونو لپاره په زړه پورې ځای ؤ. ځکه ئې هلته هم لومړی د (رابرټ) کالج تاسیس کړ چې وروسته بیا د سیکورلر ترکیې په زمانه کې په امریکایي پوهنتون تبدیل شو.

افغانستان کابل:

افغانستان چې د تاریخ په اوږدو کې د اسلام دیوې پخې کلا او دجهادونو او قربانیو هیواد ثابت شوی، او د تل لپاره ئې خلک د ټینګ ایمان په قوت دنړۍ د لویو لویو ځواکونو په مقابل په میړانه دریدلي، او د دښمن زوال ئې هم دهمدوئ له خاورې شروع شوی ډیر اهمیت لري. او دا هر څه ځکه شوي چې د دې خاورې خلک د تل لپاره په ایمان، شریعت، اسلامي فرهنګ، ملي او اخلاقي ارزښتونو ټینګ پاتې شوي، او دپردیو رنګ او فرهنګ ئې ندی قبول کړی. دهمدغه فطریت او خالصتوب له امله ئې و کولای شول چې دخپل ستر جهاد په نتیجه کې څوارلس سوه کاله وروسته هم د اسلام د اولې زمانې په څیر یو اسلامي نظام قائم کړي. چې دا کار دغرب او په راس کې ئې د امریکا لپاره چې د((ګلوبلایزیشن)) په نامه ټوله دنیا په خپل خم کې رنګول او تر خپل بیرغ لاندې درول غواړي د منلو وړ نه وو. نو ځکه ئې دخپلو صلیبي ملګرو په ملتیا د افغانستان په خلاف لویه صلیبي جګړه پیل کړه، او د کابل تر نیولو سمدستي وروسته ئې په دغه ښار کې هم د یوه امریکایي پوهنتون بنسټ کیښود چې نور تفصیلات به ئې لږ وروسته ذکر شي.

# ولې په اسلامي نړۍ کې امریکایي پوهنتونونه؟

هسې هم د غرب او بیا په خاص ډول د امریکا په پوهنتونونو کې په زرګونو داسلامي نړۍ ځوانان درس وایي او له میحط څخه ئې تاثیر هم اخلي، نو په اسلامي نړۍ کې د امریکایي پوهنتونونو د جوړولو څه ضرورت دی؟

ددې پوښتنې ځواب لاډیر دمخه په بیروت کې د امریکایي پوهنتون مؤسس Denial Bliss په کال ۱۸۶۲م کې داسې ورکړی ؤ: (په لبنان کې د عالي تحصیلاتو دیوې لویې ادارې جوړول پدې خاطر ضروري دي چې اکثره د اسلامي نړۍ هغه ځوانان چې دغرب او امریکا په پوهنتونونو کې تحصیلات پای ته رسوي هغوئ بیرته خپلو وطنونو ته نه راګرځي چې دلته له امریکایي مبلغینو سره مستقیمه مرسته وکړي. بلکه هماغلته په غرب کې په کارونو او وظائفو مصروفیږي. خو ددې پر خلاف د (سیمون کالهون) د مکتب فارغان چې په ۱۸۳۵ م کې ئې په لبنان کې جوړ کړی وو ټول عملاً د مسیحي مبلغینو په مکاتبو کې د استاذانو، مبلغینو او اداري پرسونل په حیث په اسلامي هیوادونو کې په کار لګیا دي)[١]. همدغه وجه ده چې امریکایان او امریکایي تعلیمي موسسې دلته په اسلامي هیوادونو کې د عالي تحصلاتو خپلې ادارې پرانیزي.

## په اسلامي هیوادونو کې د امریکایي پوهنتونونو اهداف

مخکې ترهغې چې په اسلامي هیوادونو کې دمشهورو امریکایي پوهنتونونو تفصیلات وړاندې کړو غوره ګڼو په عمومي ډول په اختصار سره هغه اهداف او مقاصد یاد کړو دکومو دترلاسه کولو لپاره چې دغه پوهنتونونه جوړیږي او په ملیاردونو ډالره ورباندې مصرفیږي.

---

[١]- (التبشیر و الاستعمار في البلاد العربیة) د ډاکټر مصطفی الخالدي او ډاکټر عمر فروخ ګډ تالیف ۹۶ - ۱۱۰ صفحې پوري.

## اول هدف– د مسلمانو هيوادونو سياسي قدرت تسخيرول:

امريکايي پوهنتون په اسلامي هيوادونو کې په هغو ډگرونو کې شاگردان روزي چې سبا وکولای شي د هيواد د تعليم، سياست،اداري، اجتماع، اقتصاد، فرهنگ، او پوځ د توجيه او قيادت صلاحيتونه تر لاسه کړي. ترڅو امريکا د دوئ له لارې په اسلامي هيوادونو کې سياسي قدرت تسخير کړي. او د خپلې خوښې نظامونه ورکښې جوړ کړي. تاريخ او تجربې ثابته کړې چې د امريکايانو دغه منافق شاگردان د اسلام او اسلامي قوانينو او احکامو په له منځه وړلو کې تر اروپايانو او امريکايانو هم ډير ماهر او سخت زړي دي.

امريکايي پوهنتون په ډير مهارت او په سيستماتيک ډول د مسلمانو ځوانانو د Brainwash (مغز وينځلو) عمليه تر سره کوي. فکر او ذهن ئې دغرب د اصولو، قوانينو، فرهنگ او اخلاقي ارزښتونو په بنسټ ورجوړوي. او په مقابل کې اسلام ورته په دروا‌غو او تزوير د نامعقوليت، بيرته پاتې والي، قساوت، وينوتويولو، او خشونت دين معرفي کوي. چې تر فراغته وروسته په زرگونو دغه ډول ځوانان د ټولنې او نظام په لوړو مرکزونو او منصبونو د لوړو صلاحيتونو خاوندان کيږي، خو د اسلام له عقيدې، اصولو، اخلاقو، فکر، او فرهنگ څخه نه يوازې دا چې بې برخې وي، بلکه په ټول شدت او قساوت د هغو د له منځه وړلو لپاره د حکومتي او مدني ادارو له لارې په کار هم لاس پورې کوي. دخپلې ټولنې د ټولنيزو او تاريخي ارزښتونو په خلاف بغاوت کوي، او د پرديو د قوانينو په تطبيق مصروف شي.

## دوهم هدف– د نوی نسل مسيحي کول:

امريکايي پوهنتون په نيويارک کې د پروټسټنټ Protestant مسيحي طائفې د مرکزي کليسا له خوا جوړيږی، تمويليږي، او چلول کيږي. له همدې امله ئې تر ټولو ستر هدف هم د مسلمانو ځوانانو

مسيحي کول دي. او دا نورتهول فعاليتونه ئې د همدې هدف لپاره د وسائلو په ډول استعماليږي، چې تفصيلات به ئې لږ وروسته ذکر شي. دغه هدف په ښکاره ډول د قاهرې د امريکايي پوهنتون د تاسيس د وثيقي په دوهمه ماده کې داسې ذکر شوی وو: **(دقاهرې د امريکايي پوهنتون له اهدافو څخه يو دا دی چې دمصر او شاوخوا هيوادونو ځوانانو ته مسيحي روزنه تقديم کړای شي. او بيا په لوړه سويه ديوه پوهنتون له لارې تولې اسلامي نړۍ ته مسيحي اخلاق او سلوک په عمل کې معرفي کړای شي).**[1]

## دريم هدف- داسلام د حقانيت په اړه ځوان نسل شکمن کول:

امريکايي مبلغينو ته دا هم څرګنده وه چې مسلمانان مسيحيت نه مني، که هر څومره ئې عقيده کمزورې هم شي. له همدې امله ئې د مسيحيت د بديل په حيث دنوي نسل د اسلام د حقانيت په اړه د شکمنولو پروسه د مسيحيت لپاره د مقدمې په طور په خپل پروګرام کې شامله کړه. او د اسلام په اړه د ډول ډول شبهاتو او شکونو په مطرح کولو ئې د ځوانانو په اسلام بې باوره کول پيل کړل، چې په نتيجه کې ئې ځوانان د (Existentialism) الحاد او اخلاقي بې بندوبارۍ په لور راکاږل، چې پدی حالت کې که ځوانان مسيحيان نشي نو مسلمان هم نه پاتې کيږي. او د اسلام لپاره دهيڅ خد مت کولو ته تيار نه وي، چې دا بيا په خپله د مسيحيت لپاره يوه فتح ده. ددغه هدف لپاره دوئ په خاص ډول د با نفوذه او په قدرت کې د شريکو کورنيو او اشخاصو زامن ترکار لاندې نيسي، ځکه چې هغوئ په موروثي شکل قدرت کې پاتې کيږي.

[1]- له لندن څخه خپريدونکې دالبيان مجله (۱۸۰) يمه ګڼه، د (اهداف الجامعة الامريکية بالقاهرة) دډاکټرې (سهير البيلي) دکتاب لنډيز.

## څلورم هدف: د مقاومت د فکري سرچينو وچول:

امريکا يان او اروپايان چې په څومره اندازه له جهاد او جهادي حرکتونو څخه په ويره کې دي تر هغو زيات له اسلامي ويښتابه او د د ویٔ په خلاف د مقاومت له فکري سرچينو څخه په ويره کې دي. ځکه چې دوئ وايي چې له مجاهدينو سره په وسله او عصري ټکنالوژۍ مقابله کيدلای شي، خو له هغه معنوي او فکري قوت سره چې دجهاد تر شاد مجاهدينو دروزلو او ددښمن دور معرفي کولو لپاره په کار اخته دي او ګام په ګام د غرب او امريکا حرکت څاري، او جهادي حرکتونو ته مناسبه فکري، سياسي، اعلامي او پوځي استراتيژي تشخيصوي، او د تطبيق پړاوونه ئې ورته ټا کي، له هغوئ سره دوسلې په زور مقابله نشي کيداى. دهغوئ د فعاليت د کمزوري کولو لپاره بايد په محلي سطحه په اسلامي هيوادونو کې امريکايي تعليمي او فکري اداري جوړې شي. او د سيمي خلک ورکښې دڅيړونکو، څارونکو، او تحليل کوونکو، په حيث پکار وګومارل شي. او همدارنګه د جهادي فکردله منځه وړلو لپاره په سيمه يزه سطحه طرحې او پلانونه ترتيب شي. او د موجودو شرايطو او حالاتو په نظر کې نيولو سره کار وربانديې وشي.

د دغه ډول اشخاصو روزل، او بيا د دولتونو په مختلفو ارګانونو کې په کار ګومارل د امريکا يې پوهنتون له مهمو اهدافو څخه ګڼل کيږي. د قاهرې امريکايي پوهنتون په سيمه کې د آسيا او افريقا د ډيرو اسلامي او جهادی حرکتونو په هکله څيړنې کړي. او تر يوه حده ئې ځينې اسلامي مفکرين اوجهادي شخصيتونه په بيلا بيلو ډولونو په خپلو لومو کې را ګير کړي هم دي. همدغه سيمه ييز اشخاص او اداري بيا د جهاد او مجاهدينو په اړه ځوانان په شک کې اچوي، او ذهنونه ئې مشوش کوي. او دجهاد د مشروعيت او افاديت نظريه تر پوښتنې لاندې راولي.

## پنځم هدف: په محلي سطحه د غربي کمپنيو لپاره په امريکايي طريقه د پرسونل روزل:

دا چې اسلامي هيوادونه په مجموعي ډول په غرب کې دصنعت، اقتصاد، او تجارت د پرمختګ له امله د غرب لپاره په استهلاکي مارکيټونو تبديل شوي دي. او د اسلامي هيوادونو اقتصاد د غرب او امريکا د multinational (ګڼ ملتيزو) کمپنيو په منګولو کې لويدلي، او حتی چې ډيرحکومتونه ئې په اقتصادي لحاظ لاندې کړي هم دي، دغه ټولې کمپنۍ په اسلامي هيوادونو او په خاص ډول په هغو هيوادونو کې چې دوئ ئې نيول غواړي په زرګونو داسې مامورينو او مسلکي پرسونل ته ضرورت لري چې په غربي ډول د عالي اداري اومسلکي مهارتونو خاوندان وي. ترڅو دغرب استعماري او استثماري کمپنۍ په ښه ډول وچلولی شي. او په عين وخت کې په ډيره زيرکتيا دې خبرې ته هم متوجه وي چې ټول هغه اقتصادي او تجارتي فعاليتونه چې ګټه ئې ښايي د جهاد او اسلام لپاره وکارول شي وده ونه کړي، او له بيلابيلو خنډونو او بنديزونو سره مخ شي، ترڅو له منځه لاړ شي. ددغه ډول پرسونل تيارول هم د امريکا يي پوهنتون له مهمو اهدافو څخه ګڼل کيږي.

## شپږم هدف: په اسلامي هيوادونو کې د ژوند غربي ډول Western style of Life رواجول، او په مسلمانانو کې د امريکايې مصنوعاتو د استهلاک او استعمال روحيه تقويه کول:

امريکا دخپل فرهنګ له صادرولو مخکې کوښښ کوي چې په اسلامي هيوادونو کې يوه غربي ډوله دژوند بڼه رائج کړي. تر څو خلک د ژوند په هر اړخ کې امريکايي او غربي مصنوعات وکاروي. چې په نتيجه کې ئې اسلامي نړۍ د غربي مصنوعاتو لپاره په يو لوی مارکيټ بدله شي، ددي کار لپاره امريکايي لويې کمپنۍ لکه (Ford) او (General

(Motor او نوري کمپنۍ په لویه پیمانه له امریکایي پوهنتون او USAID سره مرستې کوي، ترڅو په شرق کې امریکایي پوهنتونونه د دوئ لپاره د فرهنګي کمپنیو په حیث دمارکیټ زمینه سازي وکړي. چې پدې کار سره به له یوې خوا دمسلمانانو اجتماعي، فرهنګ ورتبدیل کړي. او له بلې خوا به په اسلامي نړۍ کې د صنعت مخه ونیسي. او هم به دغرب د اقتصادي پرمختګ لپاره پراخه زمینه مساعده کړي.

# امریکایې پوهنتون مسیحي پوهنتون دی

په هر اسلامي هیواد کې امریکایي پوهنتون یو مسیحي پوهنتون وي چې په نیویارک کې د پروټستنټ عیسایې فرقې دلویې کلیسا (Presbyterian) لخوا تاسیس او اداره کیږي. ددغو پوهنتونو اعلی مشورتي بورډ یو دی چې غړي ئې د پروټستنټ عیسایانو لوی مشران، دلویو کمپنیو مالکان، ملی تاجران او د تعلیم او اجتماعي علومو متخصصان تشکیلوي. په اسلامي هیوادونو کې هر امریکایي پوهنتون اساسا د مسیحیت د خپراوي لپاره جوړیږي، او دا نور هرڅه ورکښې د وسایلو په حیث کارول کیږي.
کله چې په کال ۱۸۶۲ میلادي کې د لومړي ځل لپاره فیصله وشوه چې په بیروت کې د (سوریې انجیلي فاکولته) په امریکایي پوهنتون ونومول شي، او ددغه نوي پوهنتون لپاره امریکایې لوی مسیحي مبلغ Denial Bliss د لومړي رئیس په توګه وټاکل شو، تر ټاکل کیدو وروسته ئې په کال ۱۸۶۳ میلادي کې له لویو مسیحي مشرانو سره د مشورې لپاره نیویارک ته لاړ او هلته یې په مرکزي لویه کلیسا Presbyterianکې یوه وینا واوروله چې په یوه برخه کې ئې راغلي وو: (... شرق زمونږ دیني تعلیماتو ته اړتیا لري، هلته باید تورات او انجیل (بایبل) یو دائمي تدریسي کتاب وګرځول شي). او د بیروت د

امریکـایي پوهنتـون د رسـالت پـه اړه ئـې وویـل: (.... د بیـروت امریکایي پوهنتون باید د مسیحي کتابونو له لارې په آسیا او افریقا کې له میلونونو انسانانو سره زمونږ رابطه قائمه کړي. او هم باید په هغوئ (مسلمانانو) د مسیحیت نعمت ولوروي). [1]

همدا راز د پوهنتون تاسیسـي اداري فیصله وکړه چې د پوهنتـون هر استاذ باید د مسیحي دین مبلغ وي.[2]

په کال **۱۹۰۹** میلادي کال کې چې کله د پوهنتون یوې ډلې مسلمانو محصلینو د پوهنتون کلیسا ته په اجباري شکل د مسلمانو محصلینو دور وستلو پـه خلاف احتجاج وکړ، او د پوهنتـون لـه اداري څخه ئـې غوښـتنه وکـړه چـې مسـلمان محصـلین بایـد پـه زوره د پوهنتـون پـه مذهبي مراسمو کې شریک نـه کړای شي، پـه ځواب کې ئې دپوهنتـون اداري یوه اعلامیه صادره کړه چې په څلورمه ماده کې ئې راغلي وو: **(د بیـروت امریکـایي پوهنتـون یـو مسـیحي پوهنتـون دی. دمسـیحي ملت په مصاریفو جوړ شوی دی، او ددې لپاره جوړ شوی چې انجیـل ئې په تعلیمي نصاب کې شامل وي، تر څو د مسـیحي دیـن منـافع او ښـیګڼې د هـر زده کـوونکي مخـې تـه کیـږدي.، هـر څـوک چـې پـدې پوهنتون کې شاملیږي باید تر شاملیدو مخکې په هرڅه غور وکړي چې پـه پوهنتـون کـې بـه څـه ورڅخـه غوښـتل کیـږي)** همـدا ډول د پوهنتون مشورتي بورډ اعلان وکړ چې: **(امریکـایي پوهنتـون خلکـو ته د تورات او انجیل د حقایقو د زده کړې لپاره جوړ شوی تر څو پدې کار سره پوهنتون د مسیحیت د رڼا یو مرکز وګرځي، او ددغې رڼا په**

---

[1]- (التبشیر و الاستعمار في البلاد العربیة) د ډاکټر مصطفی الخالدي او ډاکټر عمر فروخ ګډ تالیف ۹۶ – ۱۱۰ صفحې پورې.

[2]- (التبشیر و الاستعمار في البلاد العربیة) د ډاکټر مصطفی الخالدي او ډاکټر عمر فروخ ګډ تالیف ۹۶ – ۱۱۰ صفحې پورې.

**خپلولو خلکوته وصیت وکړی).**[1] په همدغه اساس تر کابل ۱۹۲۲م پورې تورات (عهد قدیم) رسما دپوهنتون په نصاب کې شامل وو او ټولو طلابو ته به تدریسیده.

## محتاطانه شروع:

دا چې دغه مسیحي پوهنتونونه په اسلامي هیوادونو کې جوړیږي مؤسسین ئې په شروع کې ډیر احتیاط کوي چې له اولې ورځې د مسلمانو ولسونو حساسیتونه راونه پاروی. ځکه نو په لومړي قدم کې محصلین له مسیحي تعلیماتو سره نه مخ کوي. پدې هکله د بیروت د امریکایي پوهنتون مؤسسDenial Bliss وایي: (**د تاسیس په لومړیو کلونوکې مونږ خپل تنصیري کارونه په احیتاط سره تر سره کول، تر څو د پوهنتون له ټینګیدو څخه مخکې د عثماني خلافت غضب راو نه پاروو). خو وروسته به بیا ټول شاګردان په مسیحي عبادت او د یکشنبې دورځې په سرویس مجبوریدل)**[2].

## ولی ئې نوم امریکایې پوهنتون American University دی؟

همدغه ډول مسیحي پوهنتون په هر اسلامي هیواد کې د امریکا د پروټسټنټ مسیحي فرقې دلوی مرکز (N.Y. Presbyterian) له طرفه جوړیږي. او ددې لپاره ئې له نامه سره د مسیحي ټکی نه لیکل کیږي چې په اسلامي هیوادونو کې ئې په ضد حساسیت راونه پاریږي.

---

[1]- له کویټ څخه خپریدونکې دالمجتمع مجله (۲۰۰) یمه ګڼه د (الجامعة الامریکیة بیروت مرکز لنشاط المخابرات والسفارة الامریکیة) مضمون.
[2]- (التبشیر و الاستعمار في البلاد العربیة) د ډاکټر مصطفی الخالدي او ډاکټر عمر فروخ ګډ تالیف ۹۶ – ۱۱۰ صفحې پورې.

په مصر (قاهره) کې هم چې امريکايي پوهنتون جوړېده نو د پوهنتون د مشورتي دبورډ دمشرانو تر منځ د نامه پر سر اختلافات پيداشول. ځينو ويل چې نوم ئې بايد په ښکاره ډول (مسيحي پوهنتون) وي. ځينو نورو ئې ويل نوم ئې بايد (د مصر او نږدې ختيځ لپاره د مسيحي زده کړې امريکايي مؤسسه) وي. او يوې دريمې ډلې ئې ويل چې نوم ئې بايد (د قاهرې دمسيحي کالجونو ټولنه) وي. په آخر کې په ۱۹۱۷ م د دسمبر په مياشت کې د نامه دتعيين لپاره د بورډ داعضاؤ ترمنځ انتخابات وشول چې په نتيجه کې ئې دپوهنتون لپاره د A. U. Cairo (د قاهرې امريکايي پوهنتون) نوم غوره شو. او دا ځکه چې د مخکنيو نومونو په هکله د مصر په حکومت کې ځينې مهمو شخصيتونو اعتراض درلود. خو له دې هر څه سره سره بيا هم دمشورتي بورډغړي دغه پوهنتونونه په خپلو منځو کې (مسيحي) پوهنتونونو په نامه يادوي.[1]

# د بيروت امريکايې پوهنتون

د بيروت امريکايي پوهنتون په اسلامي نړۍ کې تر ټولو لومړی پوهنتون دی. دغه پوهنتون په تيرو ۱۴۳ کلونو کې د اسلامي نړۍ دخطرناکو پيښو په بهير کې عمده نقش لرلی. د مسيحيت د خپرولو ترڅنګ ئې په غربي او اسلامي نړۍ کې د سيکولريزم Secularism) ) د خپراوي او حاکمولو په لاره کې هم ډير کار کړی. په غربي نړۍ کې د عثماني خلافت د را پرځولو لپاره د(عربي نشنلزم) هڅې هم له همدې ځايه پيل شوې وې. دهمدې پوهنتون فارغان ول چې عربي نړۍ ته ئې د غرب د افکارو او نظريانو د راواردولو چارې ترسره کړې.

[1]- په (مجلة التربية المعاصرة ) ۴۹ ګڼه کې د ( الجامعة الامريکية والتبعية الثقافية ) په عنوان د دکتور کمال نجيب بحث.

ددغه پوهنتون تاثيرات يوازې په عربي کې نړۍ منحصر پاتې نشول. بلکه د سيمي نورو هيوادونو ته ئې هم سرايت وکړ. ان تر دې چې په افغانستان کې هم په لس ګونو افغانان چې (۷) اوه تنه ئې اوس يوازې د کرزي په کابينه کې وزيران دي هم له همدې پوهنتون څخه فارغ شوي دي.

د امريکا لخوا د افغانستان په نيولو کې چې د چاتر ټولو لوی لاس وو، او تر اشغال وروسته ئې ټولې چارې هم دهغه لخوا پرمخ بيول کيدې يعنی (زلمی خليل زاد) هم د همدغه پوهنتون فارغ التحصيل دی.

دغه پوهنتون د سيمې د نورو امريکايي پوهنتونونو لپاره دمورحيثيت لري. او د آسيا او افريقا په اسلامي هيوادونو کې د پروټستنټ مسيحي فعاليت لپاره تعليمي او اکاديميک پلانونه هم په همدغه پوهنتون کې جوړيږي. ددغه پوهنتون لپاره زمينه سازي په کال **۱۸۳۵** م کې هغه وخت شروع شوه چې امريکايي مسيحي مبلغ (سيمون کالهون) په بيروت کې دنجونو او هلکانو لپاره يو عصري مکتب جوړ کړ. دغه مسيحي مکتب د سيمه يزو مسيحيانو د اولادونو ترڅنګ د مسلمانانو اولادونه هم جذب کړل. د مسيحي معلمينو د ښې توجه او پراخو وسايلو له امله دغه مکتب ښه وده وکړه او ښه ډير شاګردان يی فارغ کړل، چې په مسيحي ادارو، او تعليمي مراکزو کې په کار وګومارل شول. د (سيمون کالهون) د مکتب د شاګرانو ښې نتيجې له نيوريارک څخه د راغليو مسيحي مبلغينو د ډلې مشران هر يو Denial Bliss، او D. William tomson په بيروت کې دعالي تحصيلاتو د يوې ادارې جوړولو ته وهڅول. دغو دواړو خپل راپورونه او وړانديزونه د نيويارک لوئې کليسا Presbyterian ته د مشورې لپاره يوړل. پدې کاربانديدې درې کاله يعنې له **۱۸۶۲** څخه تر **۱۸۶۵** ميلادی پورې مشورې وشوې او ترتيبات ورته ونيول شول. اوهم استاذان ورته تيار کړای شول. په **۱۸۶۵** م کې Denial

Bliss دپوهنتون لپاره رئیس وټاکلی شو. او بیا په **۱۸۶۵** م کال کې دغه امریکایي پوهنتون افتتاح شو. د پوهنتون نصاب، ژبه، اداره، استاذان او هر څه امریکایي ول. د نصاب په ترڅ کې انجیل، (بایبل) د تدریسي کتاب په حیث مقرر شو چې پوره **۵۷** کاله یعنی تر **۱۹۲۲** م کال پورې ئې په علني شکل دوام درلود. که څه هم چې وروسته ئې مسیحي زده کړه او مذهبي مراسم اختیاري وګرځول. خو د پوهنتون اداري محیط او استاذان ئې داسې برابر کړي وو چې په نتیجه کې ئې شاګردان په خپله مسیحیت ته مائل شي. او همدا د دوئ اصلي هدف هم ؤ. پدې هکله د پوهنتون یوبل رئیس (Penrose) چې په **۱۹۴۸** کال کې چې کله پدغه وظیفه وټاکل شو په همدې مناسبت ئې په خپله افتتاحي وینا کې وویل:

**(دلائلو په اثبات ورسوله چې تعلیمي ادارې هغه ترټولو مؤثرې وسیلې وې چې امریکایي مبلیغنو په سوریه او لبنان کې دمسیحیت د خپرولو لپاره وکارولې، او دهمدې غرض لپاره د بیروت د امریکایي پوهنتون رئیس هم د امریکا د پروټسټنټ مبلغانو له جملې څخه ورته غوره شوی ؤ)**[1]

د اوسنۍ عربي نړۍ ډیر چارواکې چې خپل هیوادونه او ولسونه ئې د امریکا په غلامي مجبور کړي، هم دهمدغه پوهنتون فارغان دي. او همدوئ دي چې په ټوله عربي نړۍ کې ئې د شریعت د تطبیق مخه نیولې ده. او هر هغه څوک چې د غرب له تسلطه څخه د آزادۍ او د اسلام د حاکمیت خبره کوي دهمدغو چارواکو او دهغوئ لخوا د جوړو شویو قوانینو پر بنا اعدامیږي، بندی کیږي، او یا دوطن پریښودلو ته مجبوریږي.

---

[1]– له کویټ څخه خپریدونکې د (المجتمع) په مجله کې د (لماذا الجامعة الامریکیة الآن) بحث ۱۹۸۷ / ۹ / ۲۵.

# د قاهرې امریکایې پوهنتون

د قاهرې پوهنتون هم په عربي نړۍ کې د پروټسټنټ مبلغینو Missionary د فکر زیږنده دی. ددغه پوهنتون نظریه په لومړي ځل په مصر کې امریکایي مسیحي مبلغ (چارلز واټسن) Charles Watson چې په مصر کې د مشهور امریکایي مبلغ (اندرواټسن) André Watson زوی وو په ذهن کې راوټوکیده.
(چارلزواټسن) چې لادمخه ئې په مصر کې د کوچینانو او ځوانانو د مسیحي کولو په هدف تعلیمي فعالیتونه شروع کړي ؤ ددغه پوهنتون لپاره پلان جوړ کړ. او دغه پلان ئې بیا په کال ۱۹۱۴ م له ځانه سره نیویارک ته یووړ، ترڅو هلته ورباندې په لویه کلیسا کې د امریکایي پوهنتونونو مشورتي بورډ غور او بحث وکړي. دهمدې کال د دسمبر د میاشتې په دیرشم تاریخ د کلیسا دکلنۍ اجتماع په ترڅ کې ددغه پوهنتون موضوع هم وڅیړل شوه. د بحث په جریان کې د خپلو وړاندیزونوپه سلسله کې Charles Watson د Presbyterian له مشرانو څخه وغوښتل چې د پوهنتون دتاسیس په لومړۍ مرحله کې باید د پوهنتون په محصلینو مسیحي مراسم او عبادت لاژمي ونه ګرځولی شي. تر څو خپل کارونه دمسلمانانو د حساسیتونو له پارولوپرته په اطمینان سره تر سره کړای شي.[1]
د پوهنتون د طرحي تر منل کیدو وروسته له ۱۹۱۴ م څخه تر ۱۹۲۰ م پورې په قاهره کې د پوهنتون لپاره د ودانۍ جوړول، د ځینې ودانیو اخیستل، او نور تر تیبات تر سره شول. او د ۱۹۲۰ م کال د اکتوبر په پنځه لسم تاریخ امریکایي پوهنتنون لومړی د (لنکولن د شرقي زده کړو کالج) په نامه پرانستل شو چې وروسته ئې نوم د

---

[1] – الجذور التاریخیة لارسالیات التنصیر في مصر. دکتور خالدنعیم صفحه ۸۵ – ۹۲ .

قاهرې امریکایي پوهنتو ن A.U. Cairo شو، او چارلز واټسن ددغه پوهنتون د لومړي رئیس په توګه و ټاکل شو، چې بیا تر **۱۹۴۵** پوری په همدې وظیفه پاتې شو.[1]
د قاهرې امریکایي پوهنتون په هغه وخت کې یوازې د امریکا د کلیسا ګانو په مرسته چلیده. خو اوس د نړیوالو مسیحي مؤسسو په مرسته خپل کارونه پرمخ بیایي.
امریکا په مصر کې خپل پوهنتون ته تر ټولو زیاته توجه کوي. ځکه چې په مصر کې له یوې خوا د الازهر پوهنتون وجود لري چې تر زرو کالو ئې زیات اسلامي علومو ته خدمت کړی، که څه هم چې اوس د نورو تعلیمي ادارو په څیر د یو سیکولر حکومت تر کنترول لاندې دی. خو بیا هم د اسلامي علومو تر ټولو لویه مؤسسه ګڼلی کیږي.
له بلې خوا د معاصرو اسلامي حرکتونو پیل هم د شلمې پیړۍ له اوایلو څخه دامام حسن البناء د ((الاخوان المسلمون)) په شکل کې شوی ؤ چې وروسته بیا په بیلا بیلو فکري او جهادي بهیر نو کې سره خواره شول، خو په مجموع کې ټولو ئې دا هڅه کوله چې شرق دغرب له تسلط څخه خلاص کړي، او د اسلام د حاکمیت لپاره زمینه برابره کړي.
مصر ته د امریکا دجدي توجه یو بل سبب ښائي د القاعدې په جهادي تنظیم کې د مصري مجاهدینو لویه ونډه وي چې تقریبا د قیادت چارې هم همدوئ سمبالوي، دا ټول ددې عامل ګرځي چې امریکا دې تر بل هر عربي هیواد مصرته ډیر پام وکړي.

[1]- الجذور التاریخیة لارسالیات التنصیر في مصر. دکتور خالدنعیم صفحه **۸۵** – **۹۲**.

# د ترکیې داستانبول امریکایي پوهنتون

د ترکیې او دهغې د اسلامي اهمیت په اړه مخکې یادونه وشوه. د ترکې له استانبول څخه تقریباً پنځه سوه کاله عثماني ترکانو په اسلامي نړۍ کې لوی اسلامي عتماني خلافت اداره کاوه چې د غرب لپاره د منلو وړ نه وو، اروپایانو په ترکیه کې د اسلامي خلافت د له منځه وړلو لپاره د سلګونو کلونو لپاره هڅې وکړې. د شرقي اروپا دفتحه شو ولایتونو خلک ئې د بغاوت لپاره راوپارول. مسیحي ارمنیان ئې دجنګ لپاره وهڅول، او ډیر څه ئې وکړل چې خلافت له منځه یوسي. خو تر هغه ئې هڅې کامیابې نه شوې چې تر څو ئې د ترکیې دولس او نظام په داخل کې داسې خلک تیار نه کړل چې له اسلام څخه ئې کرکه لرله، د اسلامي شریعت دله منځه وړلو لپاره ئې په منظم ډول کار کاوه، او په ترکیه کې ئې د اسلام پر ځای د غربي قوانینو او ژوند بڼې دتنفیذ لپاره کار کاوه.
په ترکیه کې دخلافت د راپرځولو اصلي مجرمین ټول هغه کسان وو چې یا خو ئې په غرب کې زده کړې وې. او یا په ترکیه کې له غربي افکارو او نظریاتو څخه چې غربي مکاتبو او تعلیمي ادارو خپاره کړي ول متاثره شوي ول. دغو مجرمینو ترکیه له اسلام څخه محرومه کړه. اسلامي خلافت ئې لغو اعلان کړ، او دهغه پر ځای ئې سیکولر ترکیه رامنځته کړه. په اسلامي شعایرو ئې بندیز ولګاوه. څلریشت کاله مسلمانو ترکانو اذان وانه ورید. همدومره موده دترکیې مسلمانان دحج د فریضې له اداکولو منع کړای شول. مدارس وتړل شول، مساجد په موزیمونو تبدیل شول، اسلامي حجاب ممنوع اعلان شو. او د اسلام د بیا حاکمیت لپاره هر ډول هڅې جرم وګڼل شوې. او

بالاخره له **۱۹۲۴** م څخه تر اوسه د ترکيې واکمن په مسلسل ډول يو په بل پسې هڅه کوي چې ترکيه په سياسي او نظامي لحاظ د اروپا يو جز وګرځوي، خو اروپايان ئې لاتر اوسه ورسره نه مني چې ترکيه دې په اورپا يي اتحاد کې شامله شي. ځکه چې هغوئ وايې په ترکيه کې لاتر اوسه پورې اسلام شته.

په ترکيه کې ددغه ډول وضعيت د را منځته کولو لپاره چې کومو جهتونو کار کړی ؤ په هغو کې يو هم د استانبول امريکايي پوهنتون دی. ددغه پوهنتون لپاره امريکايي مسيحي مبلغينو له ډير پخوا راهيسې کار پيل کړی وو. کله چې په **۱۸۳۱** م کې د امريکايي مسيحي مبليغينو Missionary لومړۍ ډله ترکيې ته راغله نو ددغه ډلې د مشر په کورکې يو زوی وزيږيد چې نوم ئې وربانـدې (قسطنطين واشنګټن) کيښود. تر څو ئې خلکو ته د قسطنطنيې (استانبول) او واشنګټن ترمنځ د رابطې او وحدت د سمبول په حيث تلقين کړي.[1] دې ډلې په ترکيه کې ډيروخت تير کړ، او دکلونو په تيريدلوئې په استانبول کې د يوې مسيحي تعليمي ادارې د تاسيس لپاره زمينه برابره کړه.

په کال **۱۸۶۳** م کې مشهور امريکايي مسيحي مبلغ (هاملين) دنيويارک له لوی سرمايه دار(روشيلډ) يهودي سره مشوره وکړه ا ورته وئې ويل: (**ترکانو د استانبول د نيولو لپاره ترجنګ دمخه** (روملي) (**د استانبول ترڅنګ يوځای) کې خپله پوځي قرار ګاه او عسکري کلا جوړه کړې وه، چې وروسته ئې بيا له هماغه ځايه د قسطنطنيې مسيحي امپراطوري ونړوله. زه به هم په همدغه ځای** (روملي) **کې يو**

[1]- (المدارس العالمية الاجنبية- الاستعمارية، تاريخها و مخاطرها ) تاليف : بکر بن عبدالله ابوزيد صفحه ۱۳ .

**ثانوي مکتب (لیسه) جوړوم، تر څو له همدې ځایه د ترکانو عثماني خلافت ونړوم)**[1]

روشیلډ هم ورسره ومنله. هماغه وو چې لومړی هلته یو ثانوي مکتب جوړ شو چې وروسته بیا د استانبول د (رابرټ) په کالج بدل شو. او په پای کې ورڅخه د اوسنۍ ترکیې امریکایي پوهنتون جوړ شو.

ددغه امریکایي پوهنتون د دیني هویت په اړه مشهور مسیحي مبلغ او د بیروت د امریکایي پوهنتون لومړۍ رئیس Denial Bliss وایي: **(د ترکیې د رابرټ کالج (اوسنی امریکایي پوهنتون) یو مسیحي کالج دی. تعلیم، نصاب، او تعلیمي محیط ئې په ښکاره مسیحي دی. ځکه چې مسیحي مبلغینو جوړ کړی. او دهر وخت لپاره به ئې رئیس یو مسیحي مبلغ وو).**

# په افغانستان کې د مسیحي فعالیت پس منظر

د برطانیې لخوا دهند تر نیولو وروسته په افغانستان باندې پر له پسې حملې هم ددې لپاره وې چې افغانستان هم د انګلیسي امپراطورۍ برخه وګرځوي، او دلته هم دخلکو په ذهن او ژوند کې د غربي فرهنګ او مسیحي عقایدو دځای پرځای کولو لپاره کار وکړي. له همدې امله انګریزانو تقریبا یو سل او شل کاله مخکې انجیل پښتو ته ترجمه کړ، اود پښتنو په سیمه کې ئې خپور کړ. خو داچې پښتانه په دین ټینګ ولاړ خلک دي انګریزان ئې دښمنان او دهغوئ دین ئې کفر ګاڼه، نو ځکه په هغه وخت کې ئې دعوت ډیر مؤثر نه وو.

وروسته بیا مسیحي مبلغین دغه حقیقت ته متوجه شول چې افغانان مسیحیت نه مني، نو ئې خپله د تبلیغ استراتیژي بدله کړه، او د

[1]- مخکنی مصدر .

ښکاره مسیحیت پر ځای ئې ددې سیمې په خلکو کې د اروپايي ژبو او فرهنګ رواجول پیل کړل. د اروپايي مسیحي مبلغینو د مقالو په هغه مجموعه کې چې (محب الدين الخطيب) مصري د (الغارة على العالم الاسلامي) يعني (پر اسلامي نړۍ يرغل) په نامه عربي ته ترجمه کړې مسیحي مبلغینو ته د توصیې په ډول داسې راغلي: (**پښتانه ډېر کلک خلک دي، د مسیحیت منلو ته نه تیارېږي. دهغوئ لپاره باید غربي فرهنګ او غربي ادبیات ددوئ په ژبه ترجمه او نشر کړو، تر څو په کراره کراره له مسیحي او اروپائي افکارو سره اشناشي**)[1]
همدغه وجه وه چې د امان الله خان په دوره کې د افغانستان دروازې د غربي فرهنګ او افکارو پر مخ نه یوازې خلاصې شوې، بلکه غربي لباس او فرهنګ هم په زوره په افغانانو وروتپل شو. دا چې وروسته بیا دغه وضعیت چپیانو او ورپسې کمونستانو په خپله ګټه وکاراوه، ځکه نو دکلیسا پر مخ په افغانستان کې دکار دروازه بنده شوه. او دا ځکه چې کلیسا د غرب نماینده ګي کوله، اوپه افغانستان کې حاکمیت دروسانو او دهغوئ د ملګرو په لاس کې وو. نو غربي کلیسا بیا د افغاني مهاجرینو په منځ کې په پاکستان او اورپا کې دمسیحیت دخپرولو فعالیتونه شروع کړل.

# د تنصیر درې دروازې فقر، جهل، مرض

فقر، جهل او مرض هغه درې دروازې دي چې مسیحي مبلغین د هغو له لارې اسلامي هیوادونو ته ورداخلیږي، او هلته دمسیحیت لپاره د انساني مرستو، تعلیم، او صحي فعالیتونو تر عنوان لاندې کار کوي. اوجګړې بیا هغه څه دي چې دغه دریواړه حالتونه منځ ته راوړي.

[1]- (الغارة على العالم الاسلامي) د محب الدين الخطيب او مساعد اليافي ټولونه او ترجمه.

افغانان هم د جګړې له امله هجرتونو ته مجبور شول. او په هجرت کې له فقر، بيسوادۍ او ډول ډول امراضو سره مخ شول، چې دې هر څه په افغاني کمپونو کې د غربي مؤسسو لپاره دکار دروازه خلاصه کړه. او دکار ترڅنګ دغو مؤسسو په پټه او ښکاره په افغانانو کې د مسيحيت دخپرولو فعاليتونه هم شروع کړل.
دمسيحيت دغه فعاليتونه دومره بربنډ شول چې په ۱۹۸۸ / ۸ / ۱۶ تاريخ په پيښور کې افغان کمشنرۍ ددغې کمشنرۍ د معاون (سيداحمد اختر) په امضاء په پاکستان کې ټولو غربي موسسو ته د مهاجرينو په منځ کې د مسيحي کتابونو او نشراتو د نه خپرولو په خاطر خبرداری صادر کړ. او دپاکستان دجزايي قانون د پنځه لسمې مادې مطابق ئې دا کار ديني سپکاوی وګڼه چې مرتکب ئې په بند، جريمې، او يا دواړو محکوميدلای شي. خو لدې سره سره بيا هم په مهاجرينو کې د غربي مؤسساتو لخوا مسيحي فعاليتونو دوام درلود. چې دا کار په هغه وخت کې افغان کمشنر ښاغلي (رستم شاه مومند) له الجهاد عربي مجلې سره د ۱۹۸۹ د فبروري د مياشتې په دوه پنځوسمه ګڼه کې هم تائيد کړ. او نوموړي دا هم زياته کړه چې پدې جرم د غربي مؤسساتو ځينې غړي له پاکستان څخه شړل شوي هم دي.[1]

# دانګليسي ژبې مراکز او د مسيحيت فعاليتونه

لکه مخکې چې يادونه وشوه د پخوانيو مسيحي مبلغينود توجيهاتو مطابق د غربي ژبو او د اروپايي او امريکايي فرهنګ د خپرولو په مقصد لاندې مؤسسو چې اصلاً په مسلمانانو کې د فکري بدلون لپاره

[1]- د الجهاد د عربي مجله دوه پنځوسمه ګڼه.

کار کوي په سلګونو د انګريزۍ ژبې د زده کړې مراکز او کورسونه پرانستل چې په لسګونو زره ځوانانو او پيغلو ته ئې د انګريزي ژبې ترڅنګ اروپا او امريکا ته د ورتلو فرصتونه هم برابرول. دغه مؤسسې په لاندې ډول وې.

١. International Rescue Committee: چې مخفف ئې I. R. C دی.

I. R. C يوه امريکايي خالصه کليسا ئي مؤسسه ده چې معنی ئې ده د نجات (خلاصون) نړيواله کميټه. نجات (خلاصون) انجيلي کلمه ده چې معنی ئې ده هر هغه څوک چې مسيحيت ومني هغه به له حساب کتاب او د آخرت له عذابه خلاص وي. ځکه چې دهغوئ د ګناهونو کفاره د د وئ په ګومان الله ﷻ د عيسی عليه السلام چې دوئ ئې– نعوذبالله – د الله زوی بولي په قرباني کولو سره مخکې ورکړی ده. چې دا پخپله يوه باطله او کفري عقيده ده.

د I. R. C مؤسسې د مهاجرينو په کمپونو او د پاکستان په ښارونو کې په سلګونو کورسونه پرانستل چې په پيل کې ئې استاذان هم په خپله اروپايان يا امريکايان ول، خو وروسته ئې افغاني استاذان تربيه کړل چې هغوئ بيا تر دوئ هم انګليسي ژبې ته ډير کار وکاوه.

I. R. C نه يوازې دا چې انګريزي ژبه اود هغې له لارې اروپايي او امريکايي فرهنګ خورا وه بلکه په پېښور کې ئې خپله مطبعه هم درلودله چې د سيدجمال الدين افغان د مطبعې په نامه ئې چلوله. او ددې ترڅنګ يې د مکاتبو د نصاب او د معلم د تربيې چارې هم په غاړه لرلې چې په بيلا بيلو وختونو کې ئې د معلم د تربيې سمينارونه هم تر سره کول.

٢. American center يوه بله فرهنګي مسيحي مؤسسه وه چې د پېښور په صدر کې ئې مرکز وو او د انګريزي ژبې ترڅنګ ئې نور فرهنګي او مسيحي فعاليتونه هم تر سره کول چې درس به پکښې اکثره د ښځينه امريکايي استاذانو لخوا ورکول کيده.

۳. British Council: – برټش کونسل بله فرهنګي مسیحي مؤسسه وه چې د برتانیې لخوا چلول کیده. د انګریزي ژبې د زده کړې تر څنګ ئې مجهزه کتابخانه، فلمي ننداتون او نور فرهنګي فعالیتونه هم تر سره کول.

۴. World Belief او Team دوه امریکایي مسیحي مؤسسې وې چې له هالنډې (زولاګ) او کاناډا یی World Belief مؤسسو سره ئې یوځای په اسلام اباد کې افغانانو ته دانګریزي ژبې یو لوی مرکز د (E. S. L) په نامه په G/9L سیمه کې چلاوه. دغه مرکز به په ښکاره ډول دانګریزي ژبې د کورسونو په پای کې فارغانو ته په پښتو او فارسي ترجمه شوي مسیحي کتابونه هم ورکول، او هم به یې په بیلا بیلو مناسباتو کې مسیحي فلمونه چې دعیسی علیه السلام ژوند به ورکښې تمثیل شوی وو شاګردانو ته د مشاهدې لپاره وړاندې کول.

۵. شلټرناو ا نټیرنیشنل: شلټرناو انټرنشنل هغه مسیحي مؤسسه ده چې عبدالرحمن پنجشیری ورکښې مسیحي شوی وو. دغې مؤسسې د ناصرباغ دمهاجرینو په کمپ کې د کونډو ښځو لپاره د حرفوي زده کړو مرکز درلود چې د حرفوي زده کړې ترڅنګ ئې د مسیحیت د خپرولو، او فحشا د ترویج لپاره هم په لویه پیمانه په مهاجرینو کې فعالیت کاوه. څو ځلې دکمپ مشرانو ته په اثبات ورسیده چې د شلټرناو مؤسسه د ناروا فعالیتونو ترڅنګ په مرکزکې په شاملو کونډو د (منع حمل) ګولۍ هم ویشلې، پداسې حال کې چې کونډې دغه ډول ګولیو ته هیڅ ضرورت نه لري. مهاجرینو څو څو ځله افغان کمشنرۍ ته شکایت وکړ خو د نوموړې مسیحي مؤسسې مشرانو د کمشنرۍ وینا ته هیڅ توجه ونه کړه، چې په نتیجه کې په ۲۶/۴/۱۹۹۰ تاریخ تقریبا لس زره مهاجرینو د کمکي اختر له لمانځه سمدستي وروسته ددغې مؤسسې په مرکز یرغل وکړ، او د مرکز هر څه ئې

له منځه یوړل، چې د شلتړناو د مؤسسې دهغه وخت د یوه چارواکي (میشال هیل) په وینا چې د الجهاد مجلې له خبریال سره یې ددغې دمجلې په اته شپیتمې ګڼې کې کړې وه وویل چې د دوی په ضد په دغه پاڅون کې شلتړناو انټرنشنل ته یو ملیون ډالره تاوان ور واوښت.[1]

همدغې د شلتړناو انټرنیشنل مؤسسې د طالبانو په وخت کې په پټه په پراخه پیمانه په کابل کې خپل تنصیري فعالیتونه شروع کړي ول چې د طالبانو د استخباراتو او امربالمعروف له لوري له زرګونو نسخو مسیحي کتابونو او نشراتو سره ئې مسؤلین ونیول شول، او د تحقیقاتو لپاره مجرمین محاکمو ته و سپارل شول، چې د خوشې کولو لپاره ئې د ملګرو ملتوپه شمول په لسګونو اداري او دولتونه په حرکت کې راغلل. خو دا چې هغو کوښښونو د شلتړناو د مؤسسې دغه مجرمین راخلاص نه کړای شول، نو ځکه امریکا خپل پوځي برید ګړندی کړ، او د استخباراتي معلوماتو په مرسته ئې دغه مسیحیت خورونکي په یوه غلچکې عسکري برید کې د غزني له ولایته را خلاص کړل.

د تعلیمي او مرستندویه مسیحي مؤسساتو تر څنګ امریکایي او اروپایي مسیحیانو له تیرو پنځه ویشتو کلونو راهیسې د پاکستان د مسیحي ټولنې په مرسته د افغانانو د مسیحي کولو لپاره په اسلام آباد، راولپنډۍ کې یوه مسیحي راډیو هم فعاله کړې چې په بیلا بیلو افغاني ژبو سهار او ماښام مسیحي خپرونې کوي. چې خپرونکي او نطاقان ئې ټول هغه افغانان دي چې مرتد شوي دي. دغې راډیو داسې یو ولس ته د مسیحیت خپرونې پیل کړي چې یو فرد ئې هم مسیحي نه وو، خو اوس ئې په سلګونو خلک مسیحیان کړي دي، البته دیادونې وړ ده چې دغه مرتدین ټول هغه پخواني سیکولر او

---

[1]- دالجهاد عربي مجله ۱۹۹۰ کال اته شپیتمه ګڼه.

کمونست عناصر دي چې مخکې يو ډول کفار ول، او اوس ئې بل ډول کفر منلی دی.
د راډيو ترځنګ په انټرنيټ کې هم هغو مرتدو افغانانو چې په علني ډول مسيحيان شوي دي ښه ډير فعاليتونه شروع کړي دي چې تلويزيوني نشرات هم ورکښې شامل دي.
په افغانستان باندې د امريکا او غرب له صليبي يرغل څخه وروسته خو په ښکاره ډول د افغانستان په خاوره کې کليساګانې هم جوړې شوې چې د يرغلګرو په پوځي اډو کې په کابل، قندهار، مزارشريف، ارګون، جلال آباد، هلمند، او بګرام کې موقعيت لري. په دغو کليساګانو کې د غربيانو ترځنګ د دوئ مرتدشوي افغان ملګري هم ديکشنبې دورځې د مسيحي مراسمو لپاره حاضريږي. دا څو کاله خو لا دکرسمس جشن هم په لويه پيمانه په افغانستان کې لمانځل کيږي، چې دغربي يرغلګرو ترځنګ افغاني مرتدين هم ورکښې په پوره دلچسپۍ برخه اخلي، او د کابل د ښهرنو د مرغ فروشۍ د کوڅې ځينې غرب ځېلي ګلفروشان ورته (کرسمس ټري) د کرسمس ونې هم د خرڅلاو لپاره برابروي.
يوه بله مهمه خبره پدې لړ کې دا ده چې امريکايان او اروپايان په جنګ کې د مستقيم دخالت له امله عامو افغانانو ته هم د دښمن په حيث ښکاری. نو ځکه ئې په پراخه پيمانه د مسيحيت د خپرولو چارې دجنوبي کوريا مسيحيانو ته چې دامريکايانو نږدې ملګري دي ورسپارلې دي.
دجنوبې کوريا پروټسټنټ کليسا په آسيا کی تر ټولو لويه کليسا ده چې تر امريکايی پروټسټنټ کليسا وروسته په نړۍ کې تر ټولو ډير مبلغين لري. چې يوازې (۲۰۰۰۰) شل زره تنه نارينه او ښځې ئې په بيلا بيلو مرستندويه او تعليمي مؤسسو کې په اسلامي نړۍ کې د مسيحيت په خپرولو مصروف دي.

د فرانسې د (ليبراسيون) ورځپاڼې د ۲۰۰۷ کال د جولای په مياشت کې راپور خپور کړ چې په ترڅ کې ئې راغلي وو: (د جنوبی کوريا د کليساگانو د انجيلي تبليغي ټولنې مرکز چې ددغه هيواد د پايتخت سيول دښار ترځنګ د (بوندانګ) په ښارګوټي کې موقعيت لري په ۲۰۰۶ کال کې (۲۰۰۰) دوه زره کوريايې مسيحي مبلغينو ته افغانستان ته د سفر لپاره د سياحت ويزې تيارې کړې چې يوازې (۱۵۰۰) يونيم زر تنه ئې دهمدغه کال دجون په مياشت کې افغانستان ته ورسيدل، او هلته ئې په شيعه ميشتو سيمو کې لکه باميان، مزار، دکابل کارته سخي، او قلعه شاده کې د شيعه ګانو په کورونو کې د مسيحيت دعوت شروع کړ[1] دغې ډلې تنکې مراهق هلکان هم له ځان سره بوولي ؤ چې داخلاقي فساد دخورولو لپاره ئې په کار اچول. دغه د سيسه هغه وخت بربنډه شوه چې دغه مسيحي مبلغين د سيمې دځينې پښتنو او سنيانو کورونو ته هم ددعوت لپاره ورغلل، چې خلک ئې په خلاف دمظاهرو لپاره راووتل. د توطيې تر رسوا کيدلو سمدستي وروسته د کرزي ادارې دغه مسيحي مبلغين د کوريا په سفارت کې راټول کړل او ازبکستان ته ئې وليږل. خو کله چې دخلکو غوسه سړه شوه بيرته ئې يوه برخه په کراره کراره افغانستان ته را داخل کړل.

د کوريا يي مسيحي مبلغينو بله رسوايي هغه وخت رامنځته شوه چې په ۲۰۰۷ /۷/ ۱۹ تاريخ ئې درويشت تنه دغزني په قرغه باغ کې د قندهار په لاره د طالبانو په لاس پريوتل. په پيل کې د کرزي ادارې هغوئ د خيريه مؤسسو کارکوونکي معرفي کړل، خو وروسته د کوريا حکومت او د يرغمال شويو مبلغينو کورنيو اعتراف وکړ چې ټول يرغمال شوي مسيحي مبلغين دي چې افغانستان ته د امريکايانو تر سوري لاندې د دعوت لپاره تللي ول.

---

[1]- دالصمود عربي مجله ۲۰ ګڼه .

تر ډیرو اوږدو مذاکراتو وروسته دیوې درنې معاملې، او دې تعهد په نتیجه کې چې ټول ملکې او پوځي کوریا یان به له افغانستان څخه وځي، نوموړی منصرین پرېښودل شول.
غرب او ملګرو ئې په افغانستان کې د مسیحیت د خپرلو لپاره په پراخه پیمانه کار شروع کړی چې ځینې افغاني شیعه ډلې، آغاخان فاونډیشن، او کیاني اسماعیلیه ئې دملګرو په حیث په فعالیت بوخوت دي. او پدې لاره کې د ډیرو مشکلاتو زغملو ته هم تیار دي.
**امریکایې لوی مسیحي مبلغ (زویمر) چې تقریبا پنځه دیرش کاله ئې په عربي هیوادونو اوهند کې د مسیحیت د خپرولو لپاره کار کړی په خپل کتاب Islamic world today) ) کې مسیحي مبلغینو ته د توصیو په ترڅ کې داسې لیکلي:**

۱. **مسلمانانو ته باید قناعت ورکړل شي چې مسیحیان د دوئ د ښمنان نه دي.**
۲. **مسلمانان باید لدوئ څخه د مسیحي شویو اشخاصو په ذریعه دعوت شي، ځکه چې دونې دغوڅولو لپاره باید د تبر لاستې دونې له شاخ څخه وي.**
۳. **مسیحي مبلغین باید دخپل دعوت د نتیجې دکمزورۍ له امله له مسیحي تبلیغ څخه ناامیده نشي، ځکه چې په مسلمانانو کې داروپایانو علومو او دښځو د آزادۍ طرف ته شدید میلان لیدل کیږي.**
۴. **انجیل باید د مسلمانانو په ژبو ترجمه او خپور شي.** [۱]

همدغه (زویمر) دهندوستان په کلکته کې د مسیحي مبلغینو په لوی کنفرانس کې خپلو کشرانو مبلغینو ته له مسلمانانو سره د تعامل لپاره مراحل داسې تعین کړل:

---

[۱]- الموسوعة المسیرة فی الادیان و المذاهب والاحزاب المعاصرة ۲ جلد تنصیر ۶۷۹ صفحه .

۱. کوښښ وکړئ چې مسلمانان د ښکاره مسیحیت منلو ته تشویق کړئ تر څو ستاسې ورونه شي.
۲. که مسلمانان مسیحیت درسره نه مني داسې حالات ورته جوړ کړئ او په داسې کارونو ئې اخته کړئ چې له اسلام څخه ووځي. که څه هم په مسیحیت کې داخل نشي. ځکه د اسلام سنګر خالي کول په خپله لوی هدف دی.
۳. که مسلمان له اسلام څخه وتل هم نه مني نو کوښښ وکړئ په اسلام کې دننه ئې فکر او نظر داسې ور خراب کړئ چې له اسلامي شریعت څخه کرکه ولري او هرڅه چې کوي د ګیډې او شهوت لپاره ئې تر سره کړي.

# د کابل امریکایي پوهنتون

امریکا په افغانستان باندي له پوځي یرغل سره سم یو لړ نورې هڅې هم پیل کړې چې پدې خاوره کې خپله بقا او د خپلو سیاستونو تنفیذ د اوږدې مودې لپاره تضمین کړي. هغوئ پدې پوهیږي چې حتماً به یوه ورځ د دوئ پوځونه له افغانستان څخه وتلو ته اړ کیږي. خو ددې لپاره چې دلته نظام او حاکمیت د مخلصو مسلمانانو لاس ته ورنشي نو له همدا اوس څخه ئې په افغانستان کې د داسې ادارو، ارګانونو، قوانینو، سیاسي ګوندونو او دمدني ټولنی په نوم اجتماعي جوړښتونو په جوړولو لاس پورې کړی دی چې سبا د اسلام مقابله وکړای شي.
ددغو نوو جوړښتونو او ارګانونو د پرمخ بیولو او ساتلو لپاره داسې کدرونو ته ضرورت دی چې د امریکایانو لخوا دهمدوئ په لاس او دهمدوئ په روحیه او فکر تربیه شوي وي. چې وروسته بیا د سیاستمدارانو، پوځیانو، فرهنګیانو، مدیرانو او اجتماعي شخصیتونو په شکل کې د امریکا لپاره ښه ځای ناستي ثابت شي،

او د تل لپاره دغه هیواد د غرب په تابعیت کې وساتي. اوهم د هیواد دروازې د هر وخت لپاره د مسیحیت او سیکولریزم پر مخ خلاصې و ساتي.
امریکایان په افغانستان کې دخپل مستقبل لپاره ډیرو کرزیانو، خلیلزادانو، اشرف غنیانو، جلالیانو، احدیانو، او دغه ډول نورو په امریکایې پوهنتون کې روزل شویو غلامانو ته ضرورت لري. ځکه چې بې فرهنګه ملیشې او لنډغر قومندانان د ډیر وخت لپاره دا ولس او هیواد نشي سمبالولی. نوځکه باید په لوړه سویه خلک وروزل شي.
ددغه ډول یو نسل د روزلو لپاره امریکایي حکومت او د پروټسټنټ کلیسا مشرانو په کابل کې دامریکایي پوهنتون پروګرام ترلاسه لاندې ونیو.
د کابل امریکایي پوهنتون هم چې په نیویارک کې د پروټسټنټ عیسایي مرکزي کلیسا Presbyterian لخوا اداره کیږي، جوړیدل ئې په ۲۰۰۳ / ۱۱ / ۷ تاریخ د کرزي داداري د هغه وخت دلوړو تحصیلاتو د وزیر (شریف فایز) لخواچې اوس ددغه پوهنتون رئیس هاکل شوی اعلان شول.
نوموړي اعلان وکړ چې دغه امریکایي پوهنتون به د کابل په دارالامان کې په اویا جریبه زمکه جوړیږي چې لاندې ځانګړتیاوې به ولري.

۱. د پوهنتون نصاب به امریکایې وي (یعنی هماغه نصاب چې په تیرو یا دوشویو امریکایي پوهنتونونو کې مقرر دی.
۲. د تدریس ژبه به انګریزي وي.
۳. استاذان به ئې ټول امریکایان وي. نوموړي لا د آزادۍ د راډیو له لارې د توصیې په ډول دا هم وویل چې افغانان دې اصلاً په دغه پوهنتون کې د استاذ کیدلو کوښښ نه کوي ځکه چې د افغانانو علمي سویه ددې پوهنتون وړ نه ده.

۴. زده کړې به په دغه پوهنتون کې د ډالرو په مقابل کې تر سره کيږي .

پورتني مواصفات او شرايط كه هر يو په بيلا بيل ډول وڅيړل شي دا نتيجه په لاس راځي چې امريكايان د افغانستان د دائمي اشغال لپاره خطرناك پلان تر كار لاندې لري.

امريكايانو ددغه پوهنتون نصاب ځكه امريكايي انتخاب كړی چې افغاني نصاب د دوئ لپاره په مطلوبه سويه فكري غلامان نشي روزلی. افغاني نصاب كه څه هم سيكولر ته ورته نصاب دی خو بيا هم د افغانيت او وطنپالنې يو څه اثر وركي ليدل كيږي. د روسانو په ضد په جهاد كې هم وليدل شول چې دجهاد او مبارزې يو زيات شمير منسوبين د افغاني پوهنتونونو له انګړونو څخه راپورته شوي ول. امريكا نه غواړي چې تر دې وروسته دې هم پوهنتونونه دجهاد او اسلامي مبارزې سنګرونه وګرځي. بلكه ددې پر ځای غواړي چې د پوهنتونونو محصلين د تل لپاره له جهاد او اسلام سره خپل روابط پريكړي. او دا كار يوازې هغه وخت مكن دی چې تعليمي نصاب په مكمل ډول له اسلام او افغانيت څخه بې برخې وي.

د تدريسي ژبې په حيث د انګليسي ژبې انتخاب ددې لپاره دی چې امريكايان له يوی خوا د دی ژبې له لارې خپل منحط الحاد وهلی مسيحي فرهنګ افغانانو ته ورصادر كړي، او له بل لوري افغاني ژبو ته دنوې ټكنالوژۍ د علم د راتګ مخنيوی وكړي. كه داسې نه وي نو بيا خو د علم او ټكنالوژۍ دخپرولو تر ټولو غوره او اسانه لار دا ده چې ټول غوره او مفيد معلومات دې د افغانانو خپلو ژبو ته راوړل شي. لكه څنګه چې ايرانيانو او عربو داكار وكړ. خو امريكايان غواړی چې نوي علوم دې په يوه محدوده ډله كې چې د دوئ لخوا روزل كيږي منحصر پاتې شي.

تر كومه ځايه چې د پوهنتون لپاره د استاذانو دامريكايي والي خبره ده دا پدې خاطر نده چې افغانان پدې پوهنتون كې داستاذۍ سويه نه

لري، بلکه اصلي هدف ورکښې دا دی چې د پوهنتون استاذان بايد د بيروت، استانبول، او قاهرې د امريکايي پوهنتونونو په څير خالص امريکايي عيسائې مبلغين وي. ځکه چې پدې پوهنتونونو کې د استاذۍ مهم شرط هم همدا دی. او همدغه شرط د بيروت د امريکايي پوهنتون د ۱۹۵۴ م کال په داخلي لائحه کې په صراحت سره ذکر شوي دی. که داسې نه وي نو بيا خو همدغه افغاني استاذان څنګه د امريکا او اروپا په پوهنتونونو کې د تدريس وړتيا لري او دلته ئې نه لري؟

د ډالرو په مقابل کې زده کړه په افغانستان کې يوه بې سابقې خبره ده. په تيرو دريو لسيزو کې د جګړو او بهرنيو پوځي يرغلونو له امله دافغانانو اقتصاد د صفر نقطې ته راټيټ شوی. خلک د يوې مړۍ ډوډۍ د پيداکولو لپاره د وطن پرېښودلو ته اړ شوي دي دهمدې اقتصادي مشکلاتو له امله تقريباً ۸۰٪ ځوانانو تعليم ته شاکړې ده. خو امريکا بيا هم غواړي په دغه ډول حالاتو کې خلکوته تعليم د ډالرو په مقابل کې وړاندې کړي. ددې کار هدف دا دی چې په دغه مسيحي پوهنتون کې بايد اساساً هغه خلک داخله واخيستلای شي چې له ډالرو سره ئې سر اوکار وي. او د ټولنې په ډيرې لوړې طبقې پورې اړه ولري، او يا هم بايد هغه خلک ورکښې شامل شي چې له يې خوا امريکايانو ته دخدمت او جاسوسۍ په بدل کې له هغوئ څخه ډالر واخلي، او له بل لوري ئې د تعليم په بدل کې بيرته هغوئ ته ورکړي. چې پدې کار سره به ئې په يوه غيشي دوه مرغۍ ويشتلې وي. هم به ئې ځانته غلامان روزلي وي. او هم به ئې د کليسا لپاره ډالر ګټلي وي.

حقيقت دا دې چې امريکايان او نور غربيان هيڅکله نه غواړي چې افغانان دې دعلم او پرمختګ پر لاره روان شي. بلکه غواړي چې افغاني ځوانان دې ددوئ د غلامۍ په فکري جال کې ښکارشي او بس. که داسې نه وې نو بيا ولې په افغانستان کې له موجودو پوهنتونونوسره مرستې نه کوي چې هلته په پراخه پيمانه علم خور شي.

همدا اوس په افغانستان کې د کابل، ننګرهار، خوست، مزارشریف، قندهار،هرات، او کاپیسا پوهنتونونه مالي، تعلیمي، لوژستیکي، او فني مرستو ته شدید ضرروت لري. خو امریکایان له دغو پوهنتونونو سره ځکه مرسته نه کوي چې هلته افغاني ځوانان د افغانانو لخوا په افغاني روحیه دافغانستان د مصالحو لپاره روزل کیږي، او امریکا ته ئې هیڅ ګټه نه رسیږي. بلکه د افغانانو په خودکفا کیدلو کې د امریکایانو سرا سر تاوان دی. ځکه هغوئ غواړي افغانان د تل لپاره ځان ته محتاج وساتي.
امریکایان نه یوازې دا چې محلي پوهنتونونه نه تقویه کوي، بلکه په قصدي ډول کوښښ کوي نور پوهنتونونه دضعف او فلج په حال کې وساتي، تر څو د بهترینو استعدادونو د لرونکو ځوانانو توجه امریکایي پوهنتونونو ته راواړوي. د لبنان دجنګ په کلونو کې دبیروت عربي پوهنتون په مرموز ډول په بمونو والوزول شو، او د پوهنتون ټولو مجهزو لابراتوارونو ته په قصدي او دقیق ډول انفجار ورکړل شو، چې په هغه وخت کې ئې خساره شل میلیونه ډالره اټکل شوه. پداسې حال کې چې په همدغه ښار کې امریکایي پوهنتون ته هیڅ صدمه ونه رسیده.

# دامریکایي پوهنتون فاکولتې او تخصصات

امریکایانو دکابل په امریکایي پوهنتون کې هغه فاکولتې او تخصصات له سره جوړ کړي نه دي چې افغاني ټولنې ته ئې سمدستي ګټه ورسیږي، او د افغان جنګ ځپلي ولس ضرورتونه ورباندې پوره شي، لکه د طب، انجنیری، زراعت، او یا نورې صنعتي فاکولتې. بلکه ددې پر ځای امریکایانو هغه فاکولتې ور کښې پرانستې دي چې په اداري، فکري، فرهنګي، او اقتصادي لحاظ زمونږ ولس په امریکایي قالب کې راوستل غواړي چې ځینې ئې په لانـدی ډول دي:

### ۱. د سیاسي علومو فاکولته:

د سیاسي علومو فاکولتې د هر ولس لپاره د مستقبل سیاستمدارن او حکام تیاروي چې دیوې خاصې مفکورې په بنسټ دهیواد سیاسي نظام او بهرني روابط عیاروي، له خپل ملت او نورو ملتونو سره د تعامل داسې اصول وضع کوي چې د دوئ د مفکورې اهداف ورکې خوندي وي. د امریکایانو لپاره ددغه ډول فاکولتې شتون د دوئ د دائمي بقا تضمین ورکوي.

### ۲. د اقتصاد فاکولته:

دغرب ټول اقتصادي نظام په کپیټالستي (پانګه وال) بنسټ ولاړ دی چې سود، احتکار، او استثمار ئې مهم اصول دي. ددغه ډول اقتصادي نظام په مټ ئې د ټولې نړۍ اقتصادي منابع په خپل خدمت کې راوستلي دي. ددغه نظام د چلولو لپاره امریکایان هر ځای کې د پانګه وال (کپټالست)اقتصاد په اساس خلک روزي، تر څو د ټولې نړۍ اقتصادي چارې د دوئ په خوښه او طریقه روانې وي. دا چې افغانستان دلویو معادنو هیواد او د نړۍ د تجارت یو لوی معبر ګڼلی کیږي نو ځکه امریکایان ددې سیمې داقتصادي مستقبل دخپلولو لپاره له همدااوسه دلته خلک روزي.

### ۳. د ژورنالیزم فاکولته:

ژورنالیزم او میډیا هغه لویه او زوروره وسیله ده چې په ټولنو کې انقلابونه راولاړوي، نظامونه ړنګوي او پر ځای ئې نور راولي. ټولنې ته نوي نظریات او افکار ورمعرفي کوي، او یا یې افکار او عنعنات له منځه وړي، اود ټولنې د هر ډول اخلاقي جوړښت یا ویجاړتیا مسؤلیت په غاړه لري. له همدې امله په ننني نړۍ کې میډیا د تنفیذي، قضائي، او تقنیني قواو ترڅنګ دنظامونو څلورمه قوه بلل کیږي. دا چې افغاني ټولنه تر ډیره حده د غرب له لویدلو او بې دینه نظریاتو څخه لیري پاتې ده، اخلاقي او اجتماعي ژوندئې په اسلامي او ملي

بنسـتهونو ولاړ دی، او دهـرې بـې دینـې مفکـورې او بهرنـې یرغـل پـه مقابل کې دمقاومت همت او توان لري، نو له همدې امله امریکایانو او نورو غربیانو ته دغه وضعیت د منلو وړ ندی، کوښښ کوي دمیډیا او ژورنالیزم په ډګر کې هم داسې کدرونه رامنځته کړي چې وکولای شي د راډیوګانو، تلویزیونونو، اخبارونو، مجلو، او نورو وسایلو له لارې د افغانانو رابطه له خپلې ماضي سره غوڅه کړي او مستقبل ئې په سیکولر غرب پورې وتړي. همدا وجه ده چې په امریکایي پوهنتون کې د میډیا اوژورنالیزم فاکولتې پرانستل کیږي.

### ۴. د اداري علومو (منجمنټ) فاکولته:

دا فاکولته هم د امریکایانو لپاره دیو داسې نسل د روزلو کار ترسره کوي چې افغانستان د امریکایانو لپاره په امریکایي طریقه اداره کوي.

### ۵. د ښکلو هنرونو (هنرهای زیبا) فاکولته:

دغه فاکولته ددې لپاره جوړیږي چې دغرب د مبتذل فرهنګ د خپرولو لپاره زمینه برابره کړي. (ښکلی هنرونه) په غرب کې موسیقۍ، ګډا، رسامۍ، مجسمه سازۍ، سندرې ویلو، (ډمتوب) او دې ته ورته نورو کارونو ته ویلی کیږي. مسیحي مبشرین پدې پوهیږي چې تر څو مسلمانان په دین کلک ولاړ وي تر هغه نه مسیحیان کیږي. خو که ئې دغرب دژوند رنګ واخیست نو بیا ورته د مسیحیت منل هم څه سخت کار نه ښکاري.

### ۶. د ادبیاتو او تعلیم او تربیې فاکولتې:

دغه فاکولتې هم د امریکایي پوهنتون له مهمو فاکولتو څخه ګڼلې کیږي، تر څو ددغو فاکولتو په ذریعه د ټولنې افرادو ته غربي تربیه چې د مسیحي تربیې لپاره مقدمه ده ورکړل شي.

# د امريکايي پوهنتون غير نصابي فعاليتونه

امريکايي پوهنتون په ټولو هغو اسلامي هيوادونو کې چې شتون لري دخپلو نصابي او تدريسي فعاليتونو ترڅنګ يو لړ نور غير نصابي فعاليتونه هم لري. تر څو وکولای شي دهغو له لارې په پراخه پيمانه خلک تر خپل تاثيرلاندې راولي. ځينې دغه پروګرامونه ئې د ځيرنيزو پروژو په شکل کې او ځينې نور ئې بيا د اجتماعي پروګرامونو په بڼه کې وړاندې کيږي. چې ځينې ئې په مختصره توګه په لاندې ډول معرفي کيږي:

١. په پوهنتون کې د کليسا جوړول او په کليسا يي فعاليت کې هره ورځ د شاګرادنو شريکول

٢. ځوانانو ته د مسيحي فلمونو نمايش.

٣. لکچرونه: دټولنې دلوړې طبقې غړوته په بيلابيلوسياسي، اجتماعي، ملي او نورو موضوعاتو لکچرونه ورکول، او په غيرمستقيم ډول د اسلام په اړه دخلکوپه ذهنونوکي شکوک اوشبهات اچول.

۴. داسي سيمينارونه او کنفراسونه جوړول چې شرعي موضوعات لکه حدود ،حقوق او نور ورکښې د انساني عقل په تله تلل کيږي، او عقل ورکې د (وحيې) په مقابل کې دحق او د باطل د پيژندلو معيار ګڼل کيږي. تر څو لدې لارې په وحيې (قرآن او حديث) باندې د ټولنې د نفوذ لرونکې طبقې اعتماد متزلزل کړي.

۵. د ليبرال (له هر قيد او بند څخه آزاد) تعليم، (کوايجوکيشن (دنرو او ښځو ګډ تعليم)، په پوهنتونونو کې د سينماګانو د جوړولو، او په پوهنتونونو کې په مختلفو مناسبتونو کې هنري او موسيقي

اجتماعـاتو د جوړولـو پـه وسـیله د امریکـایي فرهنـګ د خپرولـو زمینه برابرول.

۶. د مختلفو تحقیقي او څیړنیزو پروژو او سروې ګانو په ترڅ کې د ټولنې دهغو عاداتو او عنعناتو څیړل چې په اسلامي هیوادوکې د غربي فرهنګ د خپریدلو مخنیوی کوي. امریکایي پوهنتون ددې کار لپاره بیلابیلو اکاډیمیکو اشخاصو او مؤسساتو ته پروژې ورسپاري او بیا ئې نتائج په امریکا کې له هغو ادارو سره شریکو ي چې د اسلامي هیوادونو په هکله د امریکا دحکومت بیلابیلو ادارو ته پالیسۍ او تګلارې جوړوي. او د لنډې او اوږدې مودې لپاره اهداف ورته تعینوي.

۷. دحکومتې ادارو د مامورینو او کار کوونکو لپاره دانګریزي ژبې اوږد مهاله او لنډ مهاله کورسونه جوړول تر څو وکولای شي لدې لارې هغوئ هم تر خپل تاثثر لاندي راولي.

## اقتصادي استثماري پروژې :

ددې لپاره چې په هر اسلامي هیواد کې امریکایي پوهنتون په مالي او اقتصادي لحاظ پخپلو پښو ودریږي او په نیویارک کې د مرکزي کلیسا (Presbyterian) په اوږو دروند بار نشي او یا د مالي وسائلو د کمښت له امله له سقوط سره مخ نشي په هماغو هیوادونو کې یو لړ ډیرې قوي اقتصادي پروژې هم په کار اچوي چې له یوې خوا دهغو هیوادونو اقتصاد په خپل کنټرول کې راولي، او له بلې خوا د پوهنتون دچلولو لپاره په محلي سطحه د تمویل سرچینې برابرې کړي. د مثال په ډول په مصر کې امریکایي پوهنتون د (سیون اپ) د مشروباتو فابریکه اخیستې وه. همدارنګه ئې په مصر کې د (پیرامایډ) په نامه مشهور هوټل چې د خارجي سیاحانو لپاره کاریده اخیستی وو. ددې تر څنګ ئې په قاهره کې د ښارې بسونو پروژه هم چلوله. همدارنګه ئې په مصري ښارونو کې په ډیرو مهمو ځایونو کې زمکې اخیستې وې چې وروسته به ئې بیا په ډیر لوړ قیمت او حیرانوونکې ګټې

خرخولې. ددې تر څنګ ئې د پوهنتون له چوکاټ نه د باندې د فکري تاثير ګذارۍ او اقتصادي ګټو لپاره په مختلفو ښارونو کې دکمپيوټر او انګريزي ژبې کورسونه هم پرمخ بيايي.
همدغه امريکايي پوهنتون په مصر کې د امريکا د پراختيا د نړيوالې مؤسسې (USAID) په مرسته د انساني نسل د تحديد لپاره دوه ميليونه مصري جنيه دحمل په مانعو ګوليو اولاړو چارو مصرف کړل.
اوس خبره دا ده چې که چيرې امريکايي پوهنتون په کابل کې هم خپلې پښې ټينګې کړي نو همدغه ډول به په افغانستان کې د هيواد په اقتصادي منابعو منګولې خښې کړي. او د مسيحيت دخپرولو لپاره به د افرادو د جوړولو تر څنګ دخپلو کارونو د پرمخ بيولو لپاره مالي وسائل هم د افغانانو له جيبه تر لاسه کړي تر څو زمونږ په خپله چاړه مونږ ذبح کړي.

## امريکايي پوهنتون او د C.I.A لپاره جاسوسي:

امريکايي پوهنتون دد ې ترڅنګ چې دمسيحيت او غربې کولو لپاره کار کوي، د امريکا دمرکزي استخباراتو له سازمان C.I.A سره هم پټ او ښکاره روابط لري، او په مسؤلينو کې ئې ددغه سازمان غړي ځای پرځای شوي دي. دمثال په ډول (کرستوفرثورن) د ۷۰ – ۱۹۶۰ ترمنځ لسيزه کې د قاهرې د امريکايي پوهنتون رئيس د C.I.A ايجنټ هم ؤ چې په مصرکې ئې ددغه سازمان لپاره کار کاوه.
او همدا ډول په بيروت کې د امريکايي پوهنتون يو رئيس (مالکوم کير) د C.I.A غړی و چې په لبنان کې ئې د دغه سازمان لپاره کار کاوه.[۱]

---

[۱]– ( مجله التربية المعاصرة ) ۴۹ ګڼه، الجامعة الامريکية والتبعية الثقافية د دکتور کمال نجيب بحث .

امريکائي پوهنتونونه په لاندې ذکر شوو ډګرونو کې د C. I. A لپاره فعاليتونه کوي:

١. د اسلامي هيوادونو په پوهنتونونو کې اسلام ته د توجه د ګراف معلومول، او دهغه د اسبابو، عواملو، مؤثرو جهتونو او شخصيتونو په هکله C.I.A ته د معلوماتو ليږل تر څو ئې دمخنيوي لپاره مناسب تدابير ونيول شي.
٢. په اسلامي هيوادونو کې د اسلامي تنظيمونو د فعاليتونو او نفوذ معلومول، او بيا دهغو په هلکه C.I.A ته راپورونه تيارول.
٣. د جهاد او جهادي مفکورې په اړه پراخې څيړنې کول، او نتائج ئې C.I.A ته سپارل.

# خاتمه

په تيرو پاڼو کې وليدل شول چې امريکايي پوهنتون يو خالص مسيحي پوهنتون وي چې کليسا ئې د خپلو ديني، استعماري، او اقتصادي اهدافو د تحقق لپاره په اسلامي هيوادونو کې جوړوي تر څو له يوې خوا د اسلامي امت د مخورو کورنيو بچيان دهغو له لارې مسيحيت ته دعوت کړي، او يا ئې لږ تر لږه په خپل جال کې راولي، او له بلې خوا د اسلام د خوريدو او حاکميت مخنيوی وکوي.
دغه هڅه اوکوښښ اوس په افغانستان کې هم د کابل د امريکايي پوهنتون په شکل کې روان دی. که چيرې ددغه ملت بادرده او يا احساسه ځوانان او اسلامي خوځښت ددغې لوئې فتنې مخنيوئ له همدا اوس څخه ونه کړي، نو کيدای شي چې دغه پوهنتون په افغانستان او سيمه کې د اسلام د مستقبل لپاره تر ټولو د لوی خطر په حيث رامنځته شي. دا چې ددغو کړښو ليکونکي ته ددغه پوهنتون د حقيقت، تاريخ او اهدافو په اړه يو اندازه هغه معلومات چې په بيلابيلو عربي هيوادونو کې د زده کړې او اوسيدنې په وخت کې د

